خروسچف د وعدې سره سم په لس بجې را ورسيد . ناصر ورته د مخې په دروازه کې ولاړ ؤ ، خو خروسچف دلته ښه بلد ؤ ، د شا له دروازې راننوت ، چې کاته مو هغه زمونږ شاته ؤ . وې ويل ، 'زه ډير خوشاله شوم تاسې راغلئ ، زما سودا وه . مونږ نه غوښتل تاسې په يوه کوچنۍ کشتۍ کې په مديترانه کې لاړ شئ . مديترانه له داسې خلکو ډکه ده چې غواړي تاسې د کبانو خوراک کړي' .

د خروسچف له خبرو نه څرګنده شوه چې د شوروي مشران د حالاتو له پرمختګ نه خوشاله وو ـ خو ويريدل هم . او يو ځل بيا د عربي ناسيوناليزم برياليتوب د زوړ مارکسستي تحليل سره جوړ رانغئ . هغه وويل : 'امپرياليستان پوهيږي چې د هغوی ربښتيني جنګ له تاسې سره دی . د هغوی له پاره تاسې د عربو د مبارزې سمبول ياستئ ! راځئ ستاسې د برياليتوب په هيله (په لس بجې) يو ګيلاس وڅکم . نه ! نن به زه وډکا نه څکم . نن زه مسلمان يم ! له دې وروسته څکل نه کوم . د عربو د مبارزې او د ټولو عربي مشرانو د روغتيا له پاره د ميوې شربت څکم !' دا وروستۍ خبره ډيره مهمه وه ، او پوره غور پرې شوی ؤ . له دې نه څرګنده شوه چې د شوروي مشرتا به د عربو سره د معاملو له پاره مصر د مرستو د يو مرکز په توګه ګڼلی دی ـ دا داسې يوه پريکړه وه چې دوی پخپله ونه شوه کولای پرځای يې کړي .



خبرې پيل شوې ، ما ياداشت اخيست . ناصر له خپل نظره حالات بيان کړل . ده وويل ، امريکايان اوبرتانويان به په بيروت او عمان کې د خپلو پوځونو په راښکته کولو بسنه ونه کړي ، دا به د کوم بل لوی کار له پاره تياری وي . ده وويل 'ولې زه دلته راغلم ، د دې له پاره چې ستاسې په ربښتيني دريغ پوه شم' .

خروسچف ځواب کې وويل : د ټولو نه لومړی زه تا ته دا ويل غواړم ، چې مونږ ډير قوي يو ، مونږ له هغه څه نه ډير قوي يو چې امريکايان فکر کوي . د دوی هغه سمندري کشتۍ چې د يو ليوني جنرال تر قوماندې لاندې يې مديترانې ته را ليږلې ده ، په آسانۍ سره له منځه وړل کيدی شي . مونږ داسې وسلې لرو چې د امريکايانو شپږم فليټ د هغوی د سورو پوځيانو په ويلې کيدونکي تابوت بدل کړو . خو اصلي خبره د وسلو نه ده ، د سولې او جنګ خبره ده . حالات ډير زيات خطرناک دي ، زما په فکر د قوي اعصابو خاوندان

په داسي حالاتو کي بريالي کيدونکي دي . زمونږ د وخت د زور د جنګونو د ټولو له غبنتلی اصل دادی چي د کمزورو اعصابو خاوندان به د ديوال خوا ته کيږي .

'مونږ اوس په داسي يوه لوبه کي نښتي يو چي ډيره چټکه روانه ده ، په دی کي بايد هر سړی چالاکه وي ، بيله دينه چي فکر وکړي هغه بل لوبغاړی څه کول غواړي ، داسي لکه څوك چي په تياره کي شطرنج کوي . د لويديځ باور خراب شوی دی . د عراق انقلاب هغوی بالکل وارخطاء کړل . ډالس له هيڅ نه خبر نه ؤ . هغه تل د دموکراسۍ او دين خبرې کوي ، خو د دين نه بيخي خبر لا نه دی . که هغه خدای چي دی يې عبادت کوي ، ربښتياوي ، نو زه بيا د هغه د دروغجن پريسټ (د عيسوی ملا برابر) نه هغه خدای ته ډير نږدي يم .

'اوس د بغداد تړون مات شوی دی ، آيا څوك له بغداد پرته د بغداد د تړون تصور کولای شي ؟ داسي نه ده ، بغداد به اوس د بغداد د تړون پرضد دريږي ؟ دا خبرې به د ډالس ماغزه خراب کړي . تاسې ته کيسه وکړم ، په ۱۹۵٦ کال کي په لندن کي ايډن ما او بولګانين ته څه وويل : که کله هم په منځني ختيځ کي د برتانيې د تيلو د را ايستلو کار له خطر سره مخامخ شي ، دوی به جنګ وکړي . هغه په خپلو خبرو پوره ټينګ ښکاريده ، اوس هاغه کار شوی دی . هيڅ شی د دغې ويرې د له منځه وړلو سره مرسته نه شي کولای . ما ورته وويل ، فکر وکړه ، عرب به په خپلو تيلو څه کوي . شوروي اتحاد د عربو تيلو ته ضرورت نه لري . مونږ خپله د خپل ضرورت نه زيات تيل را باسو . مونږ د عربو د تيلو د را نيولو ليوال نه يو ، خو تاسې د دغو تيلو را نيولو ته ضرورت لرئ . خروسچف زياته کړه ، خو تاسې فکر کړی دی چي د راليوونکو او غلو ترمنځ ډير توپير دی . لويديځ طاقتونه د تيلو را نيول نه غواړي هغوی غواړي دا تيل چور کړي . اوس ، د عراق انقلاب دغو تيلو ته خطر دی . زه د عراق د نويو مشرانو په هکله څه نه پوهيږم ، خو دا خبره ډيره مهمه ده چي دوی لويديځ ته ډاډ ورکړي چي د تيلو په کار کي به څه جنجال نه را پيدا کيږي . ته بايد په دی کار کي ډير پام وکړي . ستا فکر دی ، دا د اعصابو لوبه ده . مونږ په يوه ډيره جنجالي زمانه کي ژوند کوو . تل د هستوي جنګ ويره شته ، او د نويو پيښو سره لوی خطرونه را پيدا کيدي شي . که ته له دغو خطرونو نه سلامت تير شي ، ته به ډير تکړه يې . لويديځ بايد په دې خبره باوري شي چي ته تيارې دوی سره تفاهم ته ورسيږې . د خپل

بریالیتوب په وخت کې باید ځان ډیر نرم کړي، .

ناصر ووېل ، د خروسچف د تحلیل سره پوره موافقه لري . خو زیاته یې کړه ، د دې له پاره دا خبره مهمه ده څو لویدیځ د دې احساس وکړي چې شوروي دلته ګلک دریځ لري . ته تیار یې ، د مثال په توګه ، داسې یوه اعلامیه خپره کړې چې که چیرې لویدیځ په سیمه کې مداخله وکړي یا د مداخلې کولو ویره را پیدا کړي ، شوروي اتحاد د داسې خطرونو د عملي مقابلې د پاره هر ډول خطر ته تیاردی، ؟

خروسچف ووېل ، 'داسې کار به حالات نور هم خراب کړي ، ګرمي به زیاته کړي ، او ناڅاپه به بدې نتیجې را منځ ته کړي . د ګرمۍ درجه تیاره د جوش اندازې ته نژدې شوې ده . نوره یې باید خرابه نه کړو، .

ناصر ووېل : 'خو هغوی باید په دې پوه شي چې تاسې ټینګ ولاړ یاستئ،.

خروسچف ووېل : 'هغوی په دې ښه پوهیږي، .

تر یوولس نیمو بجو پورې په دې خبرې روانې وې ، او بیا خروسچف د سیاسي بیرو غونډې ته لاړ . وې ویل چې د غرمې ډوډۍ ته به بیرته راشي ، خو تر دریو بجو پورې را معلوم نه شو . بیا یې ووېل چې پریکړه موکړې ده د بلغاریې او ترکیې په سرحدونو کې د وارسا د تړون نمایشي پوځي عملیات زیات کړو . دغو عملیاتو ته به ډیر تبلیغات وکړای شي، فکر کوم دا به خپله اغیزه وکړي . مارشال ګریچکو به د نیم میلون په شاوخوا کې پوځونه تر خپلې قوماندې لاندې ولري ، خو باید دا خبره په یاد وساتله شي چې دا یواځې تطبیقات دي . او هغه ټینګار وکړ چې د عراق نوي مشران به پر ځای په دې برخه کې خپل رول په ښه توګه لوبوي او لویدیځ ته به لازم ډاډ ورکوي .

خروسچف په عراق کې د ناسیونالیزم په ناڅاپي زور اخیستلو اریان شوی ؤ ، په عراق کې ناصر ته په ډیره لوړه سویه او ډیره خوښۍ سره خلکو هر کلی کړی ؤ . هغه ووېل ، 'دا خلک ستا سړي دي، . بیا یې پوښتنه وکړه ، ته دوی ښه پیژنې ؟ ناصر ورته ووېل ، مونږ سره یې وختي اړیکې ټینګې کړي دي : مونږ د قاهرې نه خبر شوي یو چې له مونږ نه یې د پوځي مرستو غوښتنه کړې ده . مونږ هغوی ته په آسانۍ سره د هغوی د اړتیا وړشیان ورکولای شو څکه د برتانویانو د کانال په زړه اډه کې پوره اندازه کارتوس او وسلې شته چې د عراق د پوځ په کاریږي . مونږ د هوا له لارې د دې شیانو وروړل پیل کړي

دي ، او مونږ وختي په بغداد کې خپله نمایندګي پرانیتي ده» .

خروسچف له ناصر نه د عراق او نورو عربي هیوادونو د حالاتو په هکله خو را ډیرې پوښتنې وکړې ـ د ژبې ، دین ، رواجونو او د هاشمي کورنۍ او د هغوي د مذهبي حیثیت په هکله . په پای کې یې هغه پوښتنه را ویوسته چې تل یې په مغزو کې تاویده . وې ویل ، «آیا ددې امکان شته چې تاسې او عراق سره یو ځای شئ» ؟ ناصر ووېل: «زه نه پوهیږم ، خو دومره ده چې عراق به ځانګړا له ډیروستونځو سره مخامخ شي ، او یووالی باید په دغو ستونځو وړزیات نه شي . عراق د سوریې نه ډیر توپیر لري ، او د مصر او سوریې ترمنځ پوره لانجې شته . زما په فکر د مصر عربي جمهوریت به له عراق سره اړیکې ځانګړا ولري ، خو د دغو اړیکو ربښتیني شکل به د شرایطو او حالاتو په رڼا کې ټاکل کیږي ، او ګرانه ده چې زه یې د عراق د مشرانو سره له کتلو وړاندې بیان کړای شم» .

خروسچف په دې خبره خوشاله شو چې وایې وریدل د ناصر ځینو ملګرو د بغداد د تړون مرکزي دفتر نیولی دی . ناصر ووېل : «اوس به مونږ دا ټول اسناد قاهرې ته یوسو» . د خروسچف سترګې تیغې راووتې او د سیروف خولې او به وکړې .

په تړوکو ، لنډو کیسو او لطیفو ویلو سره د غونډې فضاء ښه شوه . ناصر ویلي ؤ، غوارې قاهرې ته په لاره په دمشق کې تم شي ځکه دا اصلاً د توپان مرکز ؤ ، او سیروف په تهران کې د روس د سفیر ځواب ته منتظر ؤ ، سفیر ته لارښوونه شوې وه که ضرورت شي ، شاه له خوبه را وینښ کړي ، او د خروسچف په نامه ترې اجازه وغواړې چې د ایران د هوا له لارې یوې روسې الوتکې ته د الوتنې اجازه ورکړي . په لس بجې د اجازې خبر را ورسید او مونږ جنوب ته د باکو په لور والوتو . هلته په هوایي ډګر کې عجیبه ننداره وه ، تطبیقات پیل شوي وو ، او پنځه شپږ سوه الوتکې وزر په وزر د هوایي ډګر په سرکونو ولاړې وې . مونږ د سهار چای څکلې ، د هوایي پوځونو یو جنرال راغئ او د تطبیقاتو له پاره یې د اعلامیې یو نقل را وښود ، چې په ډیرو مناسبو دراماییي الفاظو کې تیار کړای شوی ؤ .

په دمشق کې ناصر په دې خبره ټینګار وکړ چې بریالیتوب باید د درنښت او غوره مفکورې سره ملګرې وي . وي ویل چې شوروي اتحاد زمونږ ترشا

ولاړ دی ، او دی نه غوارړي له چا سره نانددرۍ وولي ، خو ډېر ژر لـه جنجال سره مخامخ شو . د قاسم مرستيال عبدالسلام عارف دمشق تـه د ناصر ليـدو تـه راغئ او دستي يې د يو ځاي کيدو خبره راپورته کړه . که څه هم قاسم او عارف دواړو د عربو د اتحاد په عمومي موضوع عقيـده درلـودلـه ، خو د تطبيـق او عملي کولو په سرېي د دواړو ترمنځ د نـظـر د بيلوالي له املـه څه رنګبدی را پيدا شوی ؤ ، عارف د ډېر ټينګ يووالي خبرې کـولې او قاسم يو ډول سست فدراسيون خو ښاوه . ناصر ، عـارف تـه وويـل چې د يـووالي خبرې مصنوعي دي . هغه په پوره يـووالي ، فـدراسيون يا بل کـوم شي ټينګار نـه کاوه . وې ويل چې دا داسې يوه خبره ده چې د اوس وخت له پاره بايد يوې خواته خوندي وساتله شي .



د خروسچف او ناصر د تفاهم سره سره د مصر او شوروي اتحاد تـرمنځ د نظرياتو بيلوالی ډېر ژر را څرګنـد شو . امريکايانـو د بهرنيو چارو د وزارت معين ويليام رونټري ، د حالاتو د معلومولو په يو بل ماموريت منځني ختيځ ته راوليږه ، او طبعاً دې کار بيا روسان بدګومانـه کړل . د ټولو نـه زياتـه د هغو اسنادو د نقلونو غوښتنه وه چې د بغداد د تړون لـه مرکزي دفتر نه مصر ته په لاس ورغلي وو . درې ورځـې پـرلـه پسې دا خبرې روانې وې چـې دغـه اسناد ورکړو ، که نه ، خو په پای کې دا پـريکـړه وشوه چې دا کار نـه شي کيدي . مسئله رښتيا د اصولو وه . که امريکايان خبر شي چې د دوی ټول سندونه شورويانو ته په لاس ورغلي دي ، هغوي بـه مصر د روسانـو يـو ګوډاګی وبولـي ، او راتلونکی کې به د واشنګټن سره هر ډول اړيکی خرابې شي . نو روسانو تـه وويل شول ، چې که څه هم د دوی دا غوښتنه به ونه منله شي خو پـه سندونـو کې د هرې هغې موضوع په هکله به دوی خبر کـړای شي چې د دوی د امنيت سره کار ولري . په دې فيصلـه باندې دوی خوشالـه نـه وو ، يو لوړ رتبه ډپلـومات نورالدين محي دينوف يې د حالاتو د ښه کولو له پاره قاهري ته را وليږه. په دې کې بريالي شو ، دده د ليدنې په ترڅ کې د لوړ بند د جوړولو د لـومړي پړاو د کار تړون هم وشو .

روسانو بغداد ته يو لوړ رتبه ډپلومات ګريګوري زيتسف د سفير پـه توګه راوليږه . دلته حالات تر ډېره د دوی د خوښې برابر روان وو . دوی لـه قاسم

سره نیغ په نیغه اړیکې ټینګې کړلې ، او هغه کې یې داسې یو ظرفیت وموند چې ګویا کولای شي د ناصر سره سیالي وکړي . کیدي شي ښایي له ناصر نه هم لوړ شي ، ځکه هغه ډیره زیاته په کمونستانو باندې تکیه کوله . د ده حکومت د ملي د موکراتیک ګوند ، د کردانو د دموکراتیک ګوند او د کمونستانو له اتحاد نه جوړ شوی ؤ ، چې دې ټولو د عربي متحد جمهوریت سره د عراق د نژدیوالي مخالفت کاوه . د فبروري پورې د یووالي ملاتړ کوونکي له حکومت نه وایستل شول .

امریکایان چې پوه شول د مصر او شوروي اتحاد ترمنځ اړیکې سمې پرمخ رواني نه دي ، طبعاً ویې غوښتل له حالاتو نه ګټه واخلي . کله چې ما د نومبر په لومړیو کې د امریکې سفیر ریمونډهیر ولید ، ما نه یې غوښتنه وکړه چې که دده د حکومت مرستې ته مو ضرورت وي . ما دا خبره ناصر ته وکړه ، هغه راته وویل چې که غنم را بانـدې وپلوري . دا کار مې وکـړ ، او په یو شو اروز کې د هو ځواب را ورسید . په را تلونکو شپږو کلونو کې مصر له امریکې نه د پنځه سوو میلونو ډالرو په ازرښت غنم ترلاسه کړل .

د امریکایانو سره پـه دغې معـاملـه بانـدې روسان خـبر وو ، او دا خبره د کمونستانو له خوا نوره هم وشار بله شوه چې ګوندې ناصر د باور وړسړی نه دی . د عربي هیوادونو کمونست ګوندونـه د نومبر د کلیزې پـه مراسمو کې د برخې اخیستلو له پاره مسکو ته تللي وو . هغوی غوښتنه وکړه شوروي اتحاد ولې د یو داسې سړي ملاتړ کـوي چې له امریکایانو سره مینه لري اوکمونستان بندیانوي ، پـه داسې حال کې چـې پـه عربي نړۍ کې یو بل قوي مشرشتـه چې غواړي د کمونستانو سره نژدې کار وکړي ؟

د نومبر تر مراسمو وروسته د سوریې غیر قانـوني شوي کمونست ګونـد یوه ابلاغیه خپره کړه ، په دې کې یې د عربي متحد جمهوریت رنګیدل وغوښتل چې ځای یې یو سست فدراسیون ونیسي . ځنګه چې دا د هیـواد او دولت د له منځه وړلو له پاره یو غږ ؤ ، نو خیانت او د هیواد ضد عمل وګڼل شو . د عربي متحد جمهوریت پـه دواړو برخو کې ډیر کمونستان بنـدیان شول ، پـه پورت ـ سعید کې د انګریزانو ـ فرانسویانو د ګډو تیري کوونکو پوځونو د وتلـو پـه مراسمو کې چې دوه کاله وړاندې کیدل د دسمبر په ۲۳ مه پـه خپله بیانیـه کې

ناصر کمونستان وغندل او هم یې د هغوی په ملاتړ کوونکو بد وویل او خپلو اوریدونکو ته یې تر غوږ تیره کړه چې څرنګه عربانو په اتفاق سره د ختیځ له لوری تیري کوونکو تاتارانو باندې بری ومونډ چې بغداد یې لاندې کړی ؤ اودسوریې خوا ته په وړاندې تګ کې وو .

نو د شوروي اتحاد سره د واده لومړۍ خوږه میاشت په تیریدو وه ، او د خولي ناندرۍ په پیل کیدو .



# دواده د لومړۍ خوږې میاشتې پای

د عربي هیوادونو د ځینو کمونستي ګوندونو په شمول ډیر هیئتونه د نومبر تر میاشتې وروسته په مسکو کې پاتې شول، ترڅو د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د یوویشتم کانګرس له پاره چې د ۱۹۵۹ کال په جنوری کې را تولیدونکی ؤ تیاری ونیسي . د جنوري په ۸ مه د ایتالوي کمونستانو تر سرپرستۍ لاندې د مصر د هغو پټو کمونستانو یوه غونډه جوړه شوه چې له مصر نه بهر ته تښتیدلي وو ، په دې کې پریکړه وشوه چې د دوی ټولې کوچنۍ ډلې دې د مصر په یو متحد کمونست ګوند کې سره را ټولې شي . دا لومړی حل ؤ چې په مصر کې یواځې یو کمونست ګوند شو ، او اعلان یې په مسکو کې په ډیر ویاړ وشو . خو یووالی یې تر یو کاله پورې هم پاتې نه شو .

خروسچف په خپل اوږد ریوټ کې یوویشتم کانګرس ته په عربي نړۍ کې د ملي آزادي بښونکو غورځنګونو په بریالیتوبونو باندې شاباسی ووایه ، او د ناصر او قاسم دواړو نومونه یې واخیستل . خو زیاته یې کړه : 'شوروي اتحاد د نورو هیوادونو په کورنیو چارو کې هیڅکله هم لاس وهنه نه ده کړې ، او نه د لاس وهنې نیت لري . خو د دې سره سره په دې هکله بې توپیره نه شي پاتې کیدي چې په ځینو هیوادونو کې د مترقي خلکو پرضد د کمونستي ضد څیرې تر ماسک لاندې لوبه روانه ده . څنګه چې په دې وروستیو وختو کې په عربي متحد جمهوریت کې د کمونیزم پرضد ځینې بیانیې خپرې شوې دي ، او په کمونستانو باندې ملامتي اچول شوې ده ، زه ، د یو کمونست په توګه فکر کووم دا غلطه ده چې په کمونستانو داسې تور لګول کیږي چې دوی د امپریالیزم پرضد په ملي مبارزه کې بې‌اتفاقي او کمزوري راولي . خبره بالکل ددې عکس ده . د استعمارګرانو پرضد مبارزه کې ترکمونستانو نور ثابت قدمه او وفادار خلک نشته. مونږ له دې انکار نه کوو چې مونږ او د عربي متحد جمهوریت ځینې مشران جلا جلا ایدیالوژۍ لرو . خو د امپریالیزم پرضد مبارزه کې ، د هیوادونو د سیاسي او اقتصادي خپلواکۍ په پیاوړي کولو کې چې د استعمار جغ یې د خپلو ورمیږونو نه غورځولی دی ، د جنګ او مبارزې ټولو خطرونو ته په ځانونو تیارولو کې ،

زمونږ او د دوی دریځونه سره یو شي دي، .

بیانو خروسچف مخ را واړاوه ، ترڅو د ناصر د هغې یوې خبرې ځواب ووايي چې دی یې ډیر ځورولی ؤ . ناصر غوښتل هر چا ته دا وښيي ، چې د لوړبند په جوړولو کې د روسانو د مرستې منل ، دا مفهوم نه لري چې مصر خپله خپلواکي له لاسه ورکړې وي ، هغه ویلي ؤ : 'مونږ د شوروي اتحاد سره مرستې کولو ته چمتو یو ، خو مونږ به هیڅکله هم خپله خپلواکي د ډالرو پرځای په روبلو خرڅه نه کړو، . په دې باندې خروسچف داسې تبصره وکړه : 'دوی وایي چې مونږ نه غواړو خپله خپلواکي په روبلو وپلورو . خو زه دوی ته دا وریادول غواړم چې مونږ هم خپلې مرستې په دوی په زور نه دي ورتپلې، .

ناصر ډیر ژر د دې خبرو ځواب ورکړ . ده په دمشق کې له هماغې برنډې نه خبرې کولې چې یو کال وړاندې یې له همدې ځایه د عربي متحد جمهوریت د جوړیدو اعلان کړی ؤ ، ده وویل : 'هو ، زمونږ ترمنځه یو ایډیالوژیکي توپیر شته . مونږ هیڅکله له دینه سترګې نه دي پټې کړې ، خو همدارنګه مونږ کومان نه کاوه چې دا به زمونږ ترمنځ د مرستو مخنیوی وکړي . مونږ تل په دې فکر وو چې زمونږ ترمنځ دوستي به د سوله یزو مرستو داسې یو مثال وي چې د بیلو بیلو ایډیالوژیولرونکي دوه هیوادونه ، په اندازه او قوت کې د لوی توپیرلرونکي، یوکوچنی او بل ستر طاقت سره دوستان دي . مونږ تل د شوروي اتحاد سره په دې خبره ولاړ وو چې د 'پانچشیلا اصولو، (پنځه اصول د باندونګ د کانفرس نه وړاندې په کولمبو کې تصویب شول ، دا د نړیوالو اړیکو د ساتلو او حدودو یو چوکاټ دی د ټولو نه مهمه برخه یې د هیوادونو ملي خپلواکۍ ته احترام او د یو بل په کورنیو چارو کې نه لاس وهنه ده). ته باید احترام وشي . خو مونږ پرون د خروسچف بیانیه واوریدله ، دا د دغې اصولو نه ښکاره سرغړونه ده . هغه په ډیره مهمه مسئله کې د لاس وهنې هڅه کړې ده . څلور میاشتې وړاندې ، په مسکو کې د پولنډ په سفارت کې ، خروسچف ویلي ؤ ، که زه په مصر کې کمونستان زندانونو کې اچوم دا بیخي زما کورنۍ مسئله ده . مونږ د کمونستانو پرضد جهاد پیل نه کړ ـ مونږ هڅه وکړه کمونستان د مصر او سوریې د اتحاد پرضد د تخریب کولو نه را منع کړو . که څه هم ښاغلی خروسچف کمونست دی خو دا کمونستانو ته کوم تقدس نه ورکوي . که ښاغلی خروسچف غواړي د هغو کمونستانو نومونه وریه یاد شي چې د همده د قضاوت له مخې بدخلک وو، زه به ورته د ستالین ، مالینکوف ، بیریا ، کاګانوفسکي ، ژوکوف ، مالوتوف او

په پای کې پخپله د بولګانین نوم واخلم . خروسچف ما ته څه ویل غواړي ؟ آیا په کمونستانو باندې برید کول روانه دي ؟ زمونږ هغوی بد نه ایسي - زما ځینې ډېر ښه ملګري کمونستان دي . مارشال تیتو یو کمونست دی ، زما ډېر ښه دوست دی . چاون لای کمونست دی ، زه ورته احترام لرم . او ښاغلی خروسچف خپله یو کمونست دی ، زه یې درناوی کوم .....



په عراق کې ؤ چې د ناصر او خروسچف ترمنځ اختلاف پیدا شو، د کمونستو ګوندونو برخه اخیستل او رول باید وازمول شي . د ۱۹۵۹ کال په لومړیو کې د عراق کمونست ګوند ډېر زیاتي کاوه . په درېمه نړۍ کې هرځای دا د کمونیستي ګوندونو خاصه ده چې کله دوي تـه د سیاسي فعالیت کوم سوری پرانیستل شي ، دوی په ډېر افراط سره له موقع نه هر ډول ګټې پورتـه کولو ته لاس اچوي . د سوریې د کمونست ګونـد په څېر ، عراقي کمونستانـو هم دا فکر کاوه د ځینې علتونـو له مخې بـه پـه اوږده موده کې شرایط د دوی پرضد شي ، او د هغوی د ژوندي پاتې کېدلو یواځنی چانس په دې کې دی چې سیاسي قدرت ونیسي . نو هڅه یې وکړه د قاسم نه راتاوشي او د ده د ژوند ټول امکانات تري ونیسي . په ټول هیواد کې یې خپلـو تبلیغاتـو ته زیاته پاملرنه وکړه ، آن تردې چې پـه خپل ګوندي اخبار کې یې د جعلي غلطو اسنادو د خپرولو پورې په څه شي ډېل ونه کړ . په دې کې ډېر استادانه او ماهرانه جعل د مصر د اردو ټولو منصبدارانـو تـه یو دستـور ؤ چې خپله د ناصر یوه بیانیـه هم پکې وه . پـه دې عبارت : 'د وسله والـو قـواوو عمومي قومانـدان ، د لوی درستیز دفتر . ٤٤ لمبر خاصه قومانـده ، د رئیس جمهور ناصر په لارښوونـه . مونږ نن غونـډه لرو ، د مصر د احساس له مخې په هغو پلانونو غور او څېړنـه وکړو چې هدف یې د خلیج نـه تر اتلانتیک پوري د یو هیـواد جوړول دي . هغه الوتکې چې پـه یو ساعت کې تل ابیب ته رسیدي شي تریپولي، خرطوم او ریاض ته هم رسیدي شي . هیله لرم د دغو اهدافـو د لاس تـه راوړلو له پاره د زور او قوې پـه کار اچولو ته اړنـه شم ، خو لکه څنګه چې تاسې پوهیږئ ، مونـږ خپله اردو ښه جوړه کړې ده او ترشاې مونـږ ټول امکانات را ټول کړي دي ترڅـو د مصر د مشر تا بـه لاندې د عربي نړۍ د یووالي له پاره ټولې اسانتیاوې برابرې کـړو . زمونږ وسله وال پوځونه یواځې د قاهرې پـه کوڅو کې د رسم ګذشت له پاره نه وو . هغوی چې په دې فکر دي یووالی په خبرو یا په تشویق سره لاس ته راځي ، په غلطه دي .

سیاستونو سره د هغوي د مؤسسو د ښه نظم د قدردانۍ سره ګډید له . دوي د لیبرل دموکراسۍ په ارزښت پوهیدل ، او خوښه یې وه چې په خپلو هیوادونو کې یې وده وکړي ، خو دا یو داسي شی ؤ چې تراوسه یې لا خپل خلک ورته تیار نه وو . برسیره پردي لویدیځ اوس هم د هغه پخواني حاکم پوړ سره پټ اوښکاره یو والی درلود چې دوي یې ځاي نیولی ؤ . د مرستو د غوښتني له پاره لویدیځ ته د ورګرځیدو سره سم دوي د جنجالونو سره مخامخ کیدل ، نو په رېړیدلو زړونو یې ختیځ لورته مخه کړه ، کمونستي نړۍ ته .

د دوي د لوريبدلون د ستونځونه خالي نه ؤ. د نویو مشرانو په ژوندکي ټول ګډ شوي عوامل چې د دوي شخصیت یې جوړ کړي ؤ ، له لویدیځ نه راغلي وو . هغه کتابونه چې دوي لوستلي وو ، تاریخ چې دوي زده کړي ؤ او فلمونه چې دوي لیدلي وو . هغه ژبې چې د مورنۍ ژبې سر بېره دوي زده کړي وي انګریزي او فرانسوي وي . روسي ژبه دوي ته یوه معما ښکاریده . دا خبره نا ممکنه معلومیده هغه ټول شیان چې دوي د کمونیزم په هکله اوریدلي وو ، پردوي یې اغیزي وي ـ بنده ټولنه ، د عقیدي او بیان بندیز او د ستالین د وخت ظلمونه . دوي یوه هم په دي باورنه درلود په مسکو کې دي د دوي خبري د الکترونیکي الاتو په واسطه ثبت شوي نه وي . بیا وروسته د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د شلم کانګرس را پوروتو هم ډېره اغیزه وکړه . عربانو نه غوښتل په دغي نوي نړۍ کې چې د دوي پرمخ یرانیتي وه ډېرورننوځي . دوي فکر کاوه لویدیځ د سیاسي آزادۍ ډېر څه لري چې دوي ته یې ورزده کړي او دایې تصور ؤ چې ختیځ د مساواتو او ټولنیز عدالت په هکله دوي ته یو څه درسونه ورزده کولی شي . خو په عین وخت کې یې غوښتل یو څه واټن تري وساتي .

په منځني ختیځ او توره افریقا کې به داسي یو مشر پیدا نه شي چې د شوروي میلمنو سره یا په شوروي کې د میلمستوب په وخت کې یې خپلې خبري په دي عبارت سره نه وي پیل کړي «د نظریاتي او ایدیالوژیکي توپیر سره سره» او دوي اکثره ښه خبرو چې د هغوي په هیواد کې کمونست ګوندونه موجود وو او د دوي په پرتله یې مسکو ته زیاته وفاداري درلوده .

خو سوسیالستي هیوادونو ملي مشرانو ته ډېر څه وړاندي کولاي شول . په لومړي پړاو کې هغوي له سیمي نه د لویدیځ امپریالیزم د شړلو په کار کې مرسته کولاي شوه. بیا ئې وروسته د هیواد په ابادولو کې . تقریباً هرځاي کې ورته

هغوي ټول چې په دې چرت کې تللي ، باید خپلې سترګې پرانیځي او د مصر وسله والو پوځونو ته پاملرنه وکړي . زه باور لرم نور عربي هیوادونه او مشران ورځ په ورځ د خپلو پوځونو له سره د تنظیمولو کار ته زیاتـه پاملرنه وکړي ترڅو تري د یوې وسلې په توګه د یووالي له پاره ګټه واخلو ، او په دې ډول زموږ پوځونه په دې بریالي شي ترڅو د خپلو سرحدونو هغې خوا تـه ځمکونه هم ساتنه وکړای شي' .

دا سندونـه ښایي د اسرائیلـو د جاسوسۍ ټولنـې یا د برتانیـې استخباراتـو ترتیب کړې وو . یوځـل وړاندې په اردن کې هم داسې یو کار هغه وخت شوی ؤ چې د مصر سره ددې هیواد اړیکې کمزورې وې ، د بغـداد له راډیو نه خپاره شوي وو ، او د شوروي د کارګرانو د اتحاد یې په اخبار ټروډ کې تکرار شوي وو .

عراقي کمونستان پوه شول چې د دوی د اهدافو په لارکې لوی خنډ پوځ دی. که څـه هم په دې کې پـه ورننوتلو یې څـه بریالیتوب ترلاسه کـړ ، خو د پوځي منصبدارانـو اکثریت ناسیونالستـان وو ، دوی غوښتـل یا عـراق بیخي ربتیني خپلواک وي ، که نه بایـد د عربي یووالي ملاتړ وشي . کمونستان په بغداد او خواوشا کې له پوځیانو نه دومره نه ویریدل لکه د هیواد په اطرافو کې چې تري ویریدل . د دسمبر په ۲۳ مه ناصر په پورت سعید کې خـبرې کولې ، ځینو پوځي منصبدارانو په موصل کې د چا یو یوه غونډه جوړه کړې وه چې د مصر د ۱۹۵۶ کال بریالیتـوب ونمانځي . د کمونست ګونـد سیمه یـز منشي کمال کازنجي دا موقع غنیمت وګڼله د مصر پرضد پـه خلکو کې څـه کاغذونه خپـاره کړي ، خو پوځي پولیسو دده موټر ودراوه او ټول کاغذونه یې تري واخیستل . هغه د منصبدارانو کلوپ تـه لاړ او شکایت یې وکـړ ، هلته دی د روغتیـا د وزیـر د ورور ډګرمن عبدالوهاب شواف سره چې د پنځم غونډ قوماندان ؤ مخامخ شو ، دا غونډ د دویمې فرقې پورې تړلی ؤ . ډګرمن شواف کاغذونه ولوستل ، د مصر او سوریې د اوسني یووالي پرځـای یې د یو فدراسیون سپارښتنه کولـه : 'ښه ، نو تـه غواړې عربـي متحد جمهوریت رنګ کړي ؟ همـداسې ده؟ کازنجي وویل ، هو ، بیا منصبدارانـو هغه بیرون وشاړه . (وروسته د ګډوډۍ پـه ورځو کې د یو منصبدار له لاسه پـه تښتاب کې ووژل شو ، هغه ورته ویلي ؤ 'هغه ځای ته بـه دې ولیږم چې د کوم ځای یې' .)

په موصل ، بغداد او نورو ځایو کې کمونستان لګیاوو په هر ډول تنظیمونو کې لکه د محصینو اتحادیه ، د سولې ډلې ، هغه ډله چې ځانونه یې ځوان دموکراتان

بلل، د کارګرانو د حقوقو د ساتونکو اتحادیه او د مشروطه دموکراتانو په اتحادیه کې ورننوځي . اوس کمونستانو د هغه څه په غند نه پیل کړی ؤ چې دوی ورته د 'شمال لښکرکښان' ویل ، او پنځم غونډ او دویمه فرقه به یې په نامه یادول . د کمونستانو په اخبار کې د جنرال قاسم په عنوان یو سرلوځی لیک خپور شو پکې غوښتنه شوې وه چې په دغو پوځي واحدونو کې د 'خاینو منصبدارانو' پاککاري وکړي .

بیا د ۱۹۵۹ کال د فبروري په وروستیو کې داسي اوریدل کیدل چې د کمونست ګوند تر لارښوونې لاندې د 'سولې د غوښتونکو' یوه مظاهره د مارچ په ۶ مه په موصل کې کیدونکې ده . څلور ریل ګاډي د یو شمیر بسونو سره د رفیع الدین له کمپنۍ نه کرایه شوي وو چې د بغداد نه موصل ته په اصطلاح د 'سولې مارش' کې برخه واخلي، خو موصل ته داسې اوازې را ورسیدې چې ریل ګاډي د وسلو او چاودیدونکو موادو نه ډک دي ، او خپله کمونستان په موصل باندې د 'برید' خبرې کوي . د دویمې فرقې قوماندان د پوځي استخباراتو سره تماس ونیو او پوښتنه یې تري وکړه ، چې د قاسم سره خبرې وکړي او ورته ووایي حالات ډیر خراب دي .

ډګرمن شواف فکر وکړ ښایي عمل کولو ته مجبور شي . په دمشق کې یې له ډګرمن سراج نه غوښتنه وکړه څه سوري پوځونه د دیرالزور له لارې راولیږي. سراج ورته وویل چې دا کار د کیدو نه دی ، نو بیا شواف د یو سیار خپروونکي واحد غوښتنه وکړه . دا ورته راولیږل شو ، او د مارچ په ۷ مه (لومړۍ لمبر ابلاغیه) خپره شوه چې د بغداد رژیم غیر قانوني دی ، او د یوې نوې انقلابي پوځي شورئ د جوړولو غوښتنه یې کوله . خو شواف په خپل حساب کې غلط شوی ؤ . ده فکر کاوه پوځي واحدونه به د ده برضد راپورته نه شي ، او دایي له یاده وتلي ؤ چې د عراق د هوایي پوځونو قوماندان یو کمونست ؤ . قاسم هوایي پوځونو ته قومانده ورکړه ، د ده د نیک مرغۍ له امله لومړی بم د موصل د پوځونو د قوماندانۍ په دفتر راولوید او شواف ټپي شو . هغه روغتون ته ویوړل شو او هلته د مارچ په نهمه یو کمونست نرس په برچه وواهه او ویې واژه .

په شمال کې اوس ملي ځواکونه بې تنظیمه پاتې شول ، ځینې وتښتیدل او څه تسلیم شول. عربي متحد جمهوریت له دوی سره هیڅ مرسته نه شوای کولای ، او کمونستانو خپلې بدلې اخیستلو ته بیې راوهلې وې . په عراق کې سر زورو ځواکونو ته پوره واک ترلاسه شوی ؤ . داسې ویل کیده چې د شپږو او اتوو

زرو کسانو پـه شاوخوا کې خلک په موصل کې وژل شوي وو ، په سلگونو يې د پاڅون په شکل کې ، خپلـو ځانو تـه قبرو نـه ايستلي او بيا يې ځانو نـه ويشتلي وو .

د دې ټولو سره سره شوروي اتحاد لـه قاسم نـه خپـل هـراړخيز ملاتړ جاري وساتـه ، د ۱۹۵۹ کال د مارچ پـه ۱۶ مه پـه مسکو کې د عـراق سره د اقتصادي او تخنيکي مرستو د تړون د لاس لـيک کـولـو پـه وخت خروسچف موقع مناسبه وليده او ناصر يې وچوخاوه . ده پوښتنه وکړه 'اوس بـه لـه مصر سره زموږ اړيکې څنګه وي ؟ زما په فکر د پخوا په شان به وي . موږ چې کله د عربي متحد جمهوريت سره اړيکې ټينګولې ، ښه پوهيدلـو چې ناصر کمونستي ضد نظريات لري . رښتيا ، موږ په دې فکر وو چې د ملي ازادۍ ښښې غورځنګ بـه د خلکو دموکراتيکو غوښتنو ته ډيره پاملرنـه وکړي او د هغوی سره به له نرمۍ نه کار واخلي ، څـکه دوی د ټولـو امپرياليستي ضد ځواکـونـو اتحاد تـه ضرورت لري ، خو له بده مرغه د دې پر ځای د دوی د آزادۍ غوښتني روحيه چقول کيږي . موږ د دوستانو په توګه دا ويل غواړو کـه دغـه پاليسي جاري وساتله شي، خامخا ناکاميږي . ناصر غواړي عراق په خپلې خاورې پورې وتړي . زه يې چې وينم هغه يـو تـنـد مـزاجـه ځـوان دی او د خپـل طاقت نـه زيات زور کوي' .

يوځل بيا دمشق د ناصر د ځواب ورکولو ځای ؤ . 'يـواځې عبدالـناصر احساساتي او تند مزاجه نه دی ، بلکې ټول عـرب همداسي دي' . دا خبره ناصر هلته يوې لوې غونډې ته د مارچ په ۲۲ مه وکړه . که دا تند مزاجه سړی نـه وای نو د مصر خاوره به د شوروي پرضد د راکټونو پـه اډه بدلـه شوې وای او د لويديځ پوځي اډې به د سوسيالستي او کمونستي نړۍ پرضد لـه دې ځايـه بريدونه کولای . په همدې تـودو مغـزو سره بايد موـږ د نويو خطرونو مقابلـه وکړو ، هماغسې چې موږ پخوا له خطرونـو سره مخامخ وو . موږ د کمونيزم د نويو ګوډاګيانو پرضد بريالي شو' .

دا يو کلک ګوزار ؤ . خو ناصر پام کاوه د روسانو نوم نيغ په نيغه وانخلي يـواځې د کمـونيـزم ګوډا ګيـان يې يـادول . هغه پـوهيده کـه دی غـواړي خپل استقلال وساتي ، نو داکار به دی د روس سره په لانجه کې کيباسي ، خو ده هيڅکله هم خپل هدف د لاسه ورنه کړ ، دا د عربي متحد جمهوريت او شوروي

اتحاد ترمنځ په عادي ډول د اړيکو ساتل ، او د عربي متحد جمهوريت موقف لوړ ساتل ؤ . د ده مطلب دا ؤ چې شوروي ورسره د يو برابر انډيوال په توګه اړيکې وساتي ، او ورسره اړيکې ونه شلوي . هغه به ويل 'تل خپل مطلب کوه' ، دا هغه کټور درس ؤ چې ده ته پوځي تاريخ زده کړی او ورښوولی ؤ .

اوس ده د شورويانو په وړاندې ډير پام کاوه . نو هغه په قاهره کې په عربي ژبه د يو کتاب د خپرولو اجازه ورکړه چې په هنګري کې يې د روسانو د ظلمونو کيسې کولې ، خو د مصر په د ننه کې ورته هيڅ ډول تبليغات ونه شول . هغه وکولای شو روسان په دې راضي وساتي چې دوی د يو مستقل عربي غورځنګ سره مرستو کولو ته ضرورت لري ، او کله يې هم د دوی غوصه راونه پاروله .

د ۱۹۵۹ کال د مې د ورځې په مراسمو کې په مسکو کې په خبرو او شعارونو کې بيخي د ناصر نوم وانه خيستل شو . مصر ته په شعارونو کې همدومره اشاره وشوه 'تل دې وي د عربي متحد جمهوريت د خلکو سره دوستي' ! روسي مشرانو اوس هم هڅه کوله په عراق کې حالات هضم کړي . په موصل کې د خلکو عام قتل د قاسم پرضد عکس العمل را پيدا کړی ؤ او دې يې ډير کمزوری کړی ؤ . د اکتوبر په ۷ مه د بغداد په عمومي جاده کې د بعث د ګوند د يو شمير غړيو په يوه بريد کې نژدې ؤ قاسم وژل شوای وای .



د ناصر دوه دوستان ، نهرو او تيتو د عربي متحد جمهوريت او شوروي اتحاد په دې وروستيو حالاتو خوشاله نه وو ، او غوښتل يې د دوی ترمنځ منځګړيتوب وکړي . تيتو روسانو ته د منځګړی په توګه هيڅکله هم د منلونه ؤ ، خو د ده انديښنه وه مبادا دکمونيزم په وړاندې د ناصر دريځ هغی دوستۍ ته ضررونه رسوي چې ده ورته ډير ارزښت ورکاوه . ناصر هغه ته څرګنده کړه چې دی نه په عمومي ډول د کمونيزم پرضد او نه د کمونيزم د پيروانو پرضد کار کول غواړي ، خو دی مجبور دی د هری هغې ډلې پرضد عمل وکړي چې دده پرضد په دسيسو کې لاس لري . همدارنګه تيتو لږ څه ويره درلوده . نهرو يو داسې دولتي شخصيت ؤ چې دواړو خوا وو سره يې خبرې کولای شوي ، هغه د خروشچف سره خبره راپورته کړه ، دا د ۱۹۶۰ کال په فبروري کې هغه وخت چې خروسچف هند ته تللی ؤ . خروسچف تينګار

وکړ چې شوروي اتحاد له عربي متحد جمهوریت نه هیڅ هم نـه غواړي ـ یا له بل کوم هیواد نه هم ځانګړې غوښتنې نه لري . ”مونږ نیت لـرو چې د عـربي متحد جمهوریت سره د برابرۍ او ملي حاکمیت ته د درناوي پر بنسټ خپلې اړیکې رواني وساتو ، دا خبره یې نهرو تـه وکـړه خـو هغه ولیـدل چې د عـربي متحد جمهوریت سره ناندریو نور ناپییلي هیوادونه را بیدار کړي دي .

په د واړو خواوو کې د کشش سره سره، نوې پیښې هم وشوي چې خوابدي یې زیاتـه کـړه . دا وخت پـه شوروي اتحـاد کې یـو زیات شمیر مصري محصلین په تحصیل بوخت وو ، زیات یې په انجنیري او تخنیکي مسلکونو کې . داسې پریکړه شوې وه چې په هیڅ ډول باید دوی د فلسفې ایډیالوژیکي زده کړي کورسونو ته مجبور نـه کړای شي . اوس د مصر پـه سفارت کې د محصلینو د چارو ځانګې تـه دشکایتونو را تلل پیل شول چې محصلین مجبوریږي د کمونستي فلسفې درسونو تـه حاضر شي . همدارنګه له دوی نه یو شمیر هغه امتیازونـه بیرتـه اخیستل شوي وو چې د خوشالۍ په کالونو کې یې درلودل . د مثال په توګه هغو نجونو چې په هستوي فزیک کې یې تحصیل کاوه ، پخوا یې لـه هلکانو نـه جلا خونې درلودې ، اوس یې دوه دوه یا زیاتې په یوه یوه کوټه کې ، د هلکانو سره په یوه تعمیر کې اچولې وې .

د پوهنې وزیر په دې هکله ناصر ته شکایت وکړ ، بیا هغه ما ته وویل چې د امریکې سفیر ریمونډهیر وګوره ، ورته ووایـه کـه کولای شي زمونږ د هغو ټولو محصلینو له پاره چې پـه شوروي کې سبق وايي ، پـه امریکې کې د تحصیل اسانتیاوې بـرابـرې کـړي ، تـرڅو هغوي ټـول لـه هغه هیواد نـه راوباسو . اوس د اکتوبر میاشت وه . په امریکې کې تعلیمي کال پیل شوی ؤ . ما هیرته کیسه وکړه ، ده را نـه د محصلینو د شمیر پوښتنه وکړه . ما چې ورتـه وویل ۲۰۰ کسه دي ، ده خپل سر په لاسونو ونیو او پـه سوچ کې شو . وې ویل ، ”مونږ غواړو دا کار وکړو ، خو څنګه به وشي“ ؟ په هر صورت پیغام واشنګټن ته ولیږل شو ، او درې ورځې وروسته ځواب را ورسید چې ټولو ۲۰۰ کسانو محصلینو تـه د امریکې پـه متحده آیالاتوکې ځایونـه موندل شوي دي ، هر یو کولای شي خپل تاکلی مسلک هلتـه ونیسي . د محصلینو د وړلو لـه پاره یوه ځانګړې الوتکه برابره شوه ، او هغوی د تبلیغاتو پـه لمبوکې امریکې تـه ورسیدل . دا ربښتیا هم د روسانو له پاره یوه ډیره ترخه ګولۍ وه چې له ستوني یې تیره کړه ، خو په رسمي ډول یې هیڅ ډول تبصره یا شکایت ونه کړ .



دوارو خوا وو هغو لار چارو پسی لټونه کوله ترڅو اړیکې بیرته عادي حالت ته را وګرځوي . د ۱۹۵۹ کال په جنوري کې د روس د انرژي وزیر اکناتي نویکوف د لوړ بند د لومړي پړاو د پیل کیدو په مراسمو کې د برخې اخیستلو له پاره قاهرې ته راغئ ، له ځانه سره یې د ناصر له پاره د خروسچف له خوانه یو مؤدبانه خاص لیک راوړ ، ساده یې لیکلي وو چې نوموړی وزیر به د ناصر په خدمت کې وي او هر ډول مسلې چې غواړي له ده سره دې پرې خبرې وکړي . د لیک سره یو معمولي سوغات هم راغئ ، د چاکلیټو یو بکس او د ماهیانو د هګیویو منګی .

ناصر تل غوښتل د شوروي د یو وزیر سره وګوري ، دی په دې خوشاله وُ چې د اسوان د مراسمو د پیل کیدو نه وړاندې له نویکوف سره خبرې وکړي . غونډه ترتیب شوه ، د فواید عامې وزیر موسیٰ عرفا چې د لوړ بند د جوړولو مسؤل وُ هم پکی برخه واخیستله ، په غونډه کې لیک او سوغات ناصر ته ورکړل شول . ناصر نویکوف ته وویل د اسوان مراسم دومره مهم دي چې دی غواړي د سروزرو د یو مدال په ورکولو سره یې ونمانځي . وی ویل 'غواړم یو مدال ښاغلی خروسچف ته ولیږم ، چې هغه یې بیا د مراسمو د نمانځنې په ورځ په تڼر وځړوي' .

ناصر له نویکوف نه پوښتنه وکړه چې د بند کار څنګه روان دی . نویکوف وویل : د ده په فکر د بندد لومړی او دویمې برخې د جوړولو ترمنځ ویش ډیره مصنوعي خبره ده ، او یواځې زمونږ جنجال او تاوان به زیات کړي : د مثال په توګه زمونږ نظر دا وُ چې په لومړي پړاو کې لویې لویې ډبرې واچوو ، په دویم پړاو کې چې د بند صندوق جوړ شي ، بیا دا ټولې ډبرې بیرته لیرې کړو . خو که دا دواړه پړاوونه سره یو ځای شي نو ډبرې به نیغې هغې ځای ته یوسو چې چیرته په کاروي' .

مصري انجنیرانو وختې دا محاسبه کړې وه چې دا کار به د لومړي پړاو په لګښت کې په سلوکی د ۲۵ - ۳۰ برخو زیاتوالی راولي . نو ناصر بیا نویکوف ته وویل چې د دوي په فکر هم په دوه پړاوونو باندې د کارویش بې ضرورته وُ . 'خو ایا ښاغلی خروسچف به دې ته تیاروي په دویم پړاو یې اوس خبرې وکړو ؟ زه په رسمي ډول دا غوښتنه کووم' . نویکوف اریان شو ، او وې ویل چې دی به له خروسچف سره ځان پوه کړي .

د جنوري ۹ مه د اسوان د مراسمو ورځ وه ، او تراوسه نويکوف ته د ناصر د غوښتني ځواب نه ؤ را رسيدلی . هغه په مصر کی د ځواب لـه پاره نور هم پاتي شو . سياسي بيرو د جنوري په ۱۷ مه غونډه وکړه . په دا بلـه ورځ نويکوف بريالی راغئ پيغام يې راوړ چي شوروي اتحاد د لـوړ بند د دويم پړاو د مالي لګښت د ورکولو پريکړه کړې ده . خروسچف غوښتنه کړې وه ، ځنګه چي وخت کم دی ، دا پريکړه بايـد د ده او ناصر ترمنځ د ليکونو پـه تبادله کولو سره تر سره شي . ځو ورځي وروسته په مسکو کی خروسچف دکوم سفارت ميلمستيا ته تللی ؤ . هلته يې وويل، 'مونږ له مصر سره د خپلو ناندريو نه تير شولو ، دا ټوله ناپوهي او د وخت ضايع کول ؤ' .



خو ناپوهي پای ته نـه وه رسيدلې ، کـه څه هم د جنجال بل دليل خپلـه شوروي اتحاد نه بلکی بلغاريه وه . د ۱۹٦۰ کال په جنوري کی صوفيې د ډرامې د ساز سره په سنګرتيا يو اعلان وکړ : 'يو لوئ مصري ناسيوناليست او د سولې او آزادئ جنګيالی ډګروال يوسف منصور صديق ، د پوليسو پـه لاس لـه سختې ځورونې وروسته پـه قتل رسيدلی دی' . دا اعلان ځو ځلې تکرار شو . ناصر دا اعلان ولوست ، پوښتـنه يې وکړه ، او ورته معلومه شوه چي سوچـه دروغ ؤ . ډګروال صديق د انقلاب پـه لومړيو کی د انقلابي پوځي شورئ غـړی ؤ ، بيا وروستـه چي يې اعتراف وکړ کمونست دی ، لـه ده نـه وغوښتل شول استعفئ وکړي . خو ده ترپايـه خپل تقاعد اخيست او د ناصر دوست پاتې شوي ؤ . ناصر ورته تيلفون وکړ ، او پوښتنه يې تري وکړه ، 'ته پوهيږې د صوفيې راډيو ستا پـه هکلـه څـه وايي' ؟ ډګـروال صديق وويل خبر نـه يم ، نو ناصر ورتـه وويل يو نقل به يې دروليږم . ناصر تري غوښتنه وکړه 'هغوی تـه ووايي چي دا ريښتيا نه دي' .

په دا بلـه ورځ ډګروال د بلغاريې سفارت تـه ورغئ . سفير نـه ؤ ، شارژ دافير ؤ ، هغـه تـه ډګروال يو ليک ورکړ چي دی ژوندی دی ، او ځورول شوی نـه دی ، غوښتنه يې تري وکړه د اعلان خپرول بند کړي ، 'ځکه دا د بلغاريې او د عربي متحد جمهوريت د خلکو ترمنځ اړيکو سره مرسته نه کوي' . سفارت ته د تللو په وخت کی د ډګروال ډير زيات عکسونه واخيستل شول ، او په دا بله ورځ دا کيسه په ټولو اخبارونوکی راغله .



سره له دې یوې خوا هم نه غوښتل ډیر جنجالونه را پیدا کړي ، او د شوروي اتحاد سره اړیکې پوره ښې شوي، د ۱۹۶۰ کال د مې د ورځې په تمانځنه کې د مصر هیئت مسکو ته وبلل شو . د هیئت مشري د هغه وخت د خلکو د شورئ رئیس انورسادات په غاړه درلوده . خروسچف د مې په ۳ مه دغه هیئت په خپل دفتر کې ومانه ، سادات ډیرې په ادب خبرې وکړې او خروسچف هم برابر مؤدبانه ځواب ویل پیل کړل . هغه خوښي ځرګنده کړه چې وې کولای شو د لوړبند د دوارو پړاوونو په جوړولو کې برخه واخلي ، دا داسې یوه پروژه ده چې امریکایي امپریالیزم ته یولوی تکان دی. مونږ ثابته کړه چې د امپریالستانو د برخې اخیستلو پرته هم کوچني هیوادونه لوئ لوئ کارونه کولای شي .

بیایې د امریکې د هر شي غند نه پیل کړه . د روس سړي له ځمکې نه راتاو شول ، امریکایي سړي لا تراوسه هڅه کوي . د شوروي نظام له امریکې نه ډیر پرمختللی دی ، او په ۱۹۷۰ کې به شوروي امریکې ته ورسیږي . 'امریکا ډیره غني ده : هغوی سرمایه داران دي . خو هغوی خپلې پیسې په څه لګوي؟ مونږ د امریکایانو په اندازه ماړه نه یو ، خو مونږ په پوهنه له امریکې نه زیاتې پیسې لګوو . زمونږ په هیواد کې هر سړی په برابره سویه تعلیم کوي . هغوی چې څه زده کول غواړي کولای شي وریایي ترلاسه کړي . مونږ ورته په پوهنتون کې ځای ورکوو، دا ستوګنې آسانتیا وې ورته برابروو . یواځې په کمونستي هیوادونو کې داسې کیږي . مونږ غواړو تاسې له ځانه سره یوځای بریالیتوب ته ورسوو ، خو تاسې کمونیزم نه غواړئ . ډیره ښه ، مونږ نه خپه کیږو . راتلونکې به درته ثابته کړي چې مونږ په حقه یو، .

په دې وخت کې سادات غوښتل په دې هکله څه ووایي چې هر هیواد حق لري خپل برخلیک او لاره پخپله خوښه وټاکي ، خو خروسچف نوبت ورنه کړ ، هغه تولې خو ابدئ او ګیلې چې د ده په د ننه کې یې وده کړې وه راتوی شوې. وې ویل : 'مونږ هم دا اصول منو' . مونږ تل دا وایو چې څوک د سوتې په زور سړی جنت ته نه شي بیوي . مونږ د نورو خلکو اصولو او نظامونو ته درناوی کوو . تاسې خپلواکي ترلاسه کړی ده ، او زه وینم ستاسی په سینو کې ناسیونالیزم په جوش راغلی ، خو ناسیونالیزم د خوشالئ معراج نه دی . ښایي تاسې داسې فکر وکړئ چې زه غوارم تاسې له عربي ناسیونالستانو نه په کمونستانو راواړوم . زه نه غواړم داسی وکړم ، خو د ستاسې په ځیرو کې وینم چې ستاسې

نه به ځيني په راتلونکي کې کمونستان شي ... تاسي عربانو پوهيدل پيل کړل ـ تاسي وويل چې سوسياليزم غواړئ ، خو نـه پوهيږئ چې دا څه شي دی . که ورتـه په علمي نظر وګورو ، سوسياليزم د کموليـزم لومړی پړاودی ، او د دې مطلب دادی چې تاسي لا لومړي پړاو ته هم نـه يی رسيدلي . تاسي نه پوهيږئ چې څه وايي . تاسي غواړئ سوسياليزم جوړکړئ ، لو بيا څنګه د کمونيزم پسې بد وايي؟ تاسي لا تراوسه د سياسي علومـو پـه الف وبا کې ياستئ . تاسي لا الف تـه نـه يې رسيدلي ـ سوسياليزم د انساني ټولنې د جوړښت د الف ، ب ، ت په کتار کې الف دی . تاسي چې وايې مونږ سوسياليزم غواړو بيانو څنګه وايې چې د کمونيزم ضد يو ؟ تاسي خپله ځانونـه يو ډيـر خـراب جنجـال سـره مخامخ کـړي دي . تاسې د امپرياليزم په کوم دام کې ورلويږی . زه تاسي خبروم ـ د زړه له کومي درتـه وايم ـ کمونيزم مقدس دی . مونږ غواړو د هر چا سره دوستان اوسو، خو د نورو نظامونو خوښول مونږ نورو خلکو ته پريږدو .

په دې شکل ډيرې خبرې وشوې . سادات اريان ؤ او غونډه په بې خوندی پای تـه ورسيده . د خروسچف د خبرو پوره راپور چې قاهرې تـه ورسيد ، ناصر پري په غوصه شو ويې ويل : 'که مونږ دا بې ځوابه پريږدو ، دی به فکر وکړي مونږ څملول شوي يو' . نو پريکړه وشوه سادات بايد ځواب وروليږي ، او زه يې بايد متن وليکم .

د سادات په ځواب کې دا خبره شوې وه چې پـه مسکو کې د عربـي متحد جمهوريت هيئت ته د خپل نظر د ښکاره کولو موقع نه وه ترلاسه ، په هر صورت نه مو غوښتل غونډه د ايډيالوژيکي بحثونو په مشاجره بدله کـړو ، 'خو مونږ فکر کوو ستاسي صميميت ته بايد پـه برابر صميميت ځواب وويل شي' . سادات د يو شمير کمونستي هيوادونـو سره د مصر ښو اړيکو تـه ګوتـه ونيـوه ، د کـمونيـزم د لويـو مشرانـو ، مارکس او لينن پـه درناوي سره يادونـه وشوه ، او تاسي هم د خپل هيواد له پاره لويځ کارونه تر سره کړي دي' . هغه زياته کړه 'ته بايد له ياده ونه باسي چې د اکتوبر انقلاب له ٤٣ کالو راهيسې سياسي قدرت پـه لاس کې لري . مونږ عربـي انقلاب يواځې اتـه کاله وړاندې پيل کړ ، او زيات وخت مو د امپرياليزم سره په ډغرو تيرکـړ ، د اقتصادي او روحي جنګ سره مخامخ يو ، او حتی د وسله والـو تيـر يو سره لاس وګريوان يو .... عربي ناسيوناليـزم چې مونږ پرې باور لرو ، نړی لاره نه ده . دا د ځمکنې پراختيا غوښتنې سره څه کار

نه لري ، دا د هغو خلکو يو غورځنګ دی چې کله تاريخ لري، په يوه ژبه خبرې کوي ، او پـه خپلو افکارو او غوښتنو کې سره يو دي . هغه چې تاوويل ، نـه غواړئ ، مونږ له عربـي ناسيونالستانو نه په کمونستانو واړوئ ، هيله لرم چې اوس او په راتلونکي کې بـه يې عملي کړئ . مونږ هم ستاسې پـه څېر باور لرو پـه پای کې بـه تاريخ د بيلا بيلو ايډيالوژيو ترمنځ فيصله وکړي ... يو شی چې زمونږ د انقلاب پـه هکله څرګند دی او مونږ په هغې افتخارکـوو دادی چې حتی پـه ډيرو خرابو وختو کې يې هم خپل حيثيت پاک ساتلی دی . دا د پاکـکاريو ، عامو قتلونو ، وژلو، اعدامونو، زندانونو او ډله ييزو کمپونو انقلاب نه دی .

"د کمونيـزم د صفت پـه هکله ـ مونږ عقيده نـه لـرو د بشر تاريخي تکامل تراوسه ښودلې وي ، چې يواځې دوه پړاوه شته ، سرمايه داري لومړی پړاو ، او کمونيزم وروستی پړاو . که داسې وي، نو د پرمختګ لاره بنده شوه . خو زمونږ په فکر د انسان د پرمختګ له پاره ډيرې لارې پرانيتي دي، دا د انسان په نوښت او نظرياتو پورې تړلې ده چې بيلا بيلې ايډيالوژۍ او تجربې يې ورتـه ورښيي .... ښاغلی چيرمين ، مونږ د دين پـه شمول په اخلاقي ارزښتونو عقيده لرو . زمونږ په فکر پرمختګ بايد په مادي او معنوي دواړو خواوو کې د ارزښت لرونکی وي . ترهغه ځايه چې د عربـي ناسيوناليزم خبره ده ، هيڅ داسې دليل نشته چې دا بـه په سوله کې ، زمونږ د کله ژوند د عقيدې خنډ شي .... مونږ پانګه والي نه منو، له دې امله نـه چې زمونـږ بد ايسي ، خو زمونـږ پـه فکر دا زمونـږ د خلکو د فطرت سره سمون نـه خوري ، زمونږ هيلې او ضرورتونـه نور دي . خو چې مونږ پانګه والي نـه منو ، د دې مطلب دا نـه دی چې مونږ ته يواځې کمونيزم را پاتې شو ، که څه هم په ځينو نورو شرايطو کې به کمونيزم څـه برياليتوب تر لاسه کړی وي ، د دې معنی نه لري چې ضرور به په دې شرايطو کې هم بريالی شي . زمونږ خلک بـه هيڅـکله هم ځانونـه يواځې په دغو دوو لارو کې بند نـه کړي . مونږ عقيده لـرو د بشر د هيلو افق د دغې دوو نريو لارونـه ډير زيات پراخه دی ، او زمونږ خلک ضرورت نـه لري ځانونه د ټولې نړۍ د غني علمي ميراث نـه وشکوي . برعکس مونږ فکرکوو مونږ له دې سره ځان ګډولای او مرسته ورسره کولای شو .

ښاغلی چيرمين ، لنډه دا چې تـه هماغسې غلطي کوې لکه پانګوال يې چې کـوي ، هغـوی هم دا دعوی کـوي چې لـه کمونيـزم پرتـه د پانګوالۍ بل سيال

څرګندیده‌چیرته چي‌لویدیځ دآزادي‌پانګه والۍ په نظام‌سره دوي‌ته څه ورښوولاي شي ، هلته د شوروي له تجربونه ډیر څه زده کوي ، ځکه شرایط یې د دوي د ټولني سره ډیر ورته دي . هغه به د قدرت او پلان د متمرکز کولو سره علاقه درلوده ، هغه به پوه شوچي په شوروي اتحادکي داسي سیمي شته له هغو ځایونو سره ډیر ورته والی لري چي دي ورسره لاس او ګریوان دي. نو تقریباً هر عربي مشربه چي شوروي ته لاړ یو ځل قزاقستان ته بیول کیده ، هلته به ورته ویل کیدل دا ځمکه داسي وه لکه ستا وطن چي نن دي ، خو اوس ته ویني چي بالکل بدله شوي ده او هغسي نه ده .

نو دا مشران به رښتیا تر ژوري اغیزې لاندي راتلل . د لویدیځ د انفرادي ازادۍ دوکتورین بیخي بې ارزښته کیدي نه شي خو ختیځ د مساواتو پر بنسټ د ولاړي ټولني په جوړولو بوخت ؤ ، داسي یوه ټولنه چي دوي هم هغسي غوښتله . د ختیځ قطب د راکش کولو قوه زیاته وه ، په نتیجه کي به ډیره ژر دومره قوي شوه چي دوي به پسري رښتیا خوشاله نه وو . نو دوي تل په دي هیله وو چي د ختیځ سره نژدي اړیکي وساتي خو لویدیځ ته هم خپلې لاري پرانیتي پريږدي .

د دي کار د پاره دوي مجبور وو چي د دواړو سترو قدرتونو لاري وڅیړي البته دوي سره ډیر توپیر درلود . لویدیځ د دریمي نړۍ د هیوادونو سره په اړیکو ساتلوکي داسي ښکاریده چي په ټولو ځوابونو پوهیږي . دا په پخوانیو استعماري اصولو ولاړو ، او په اوسنیو شرایطوکي کمزوري لارښوونې وي . په تیره بیا امریکایانو داسي فکر کاوه چي یوځل د یو هیواد په پولیسو او د جاسوسۍ په ټولنو کنترول پیدا کړي ، نور ورپسي خپله راځي . روسانو د لویدیځ سلوکونه څیړلي وو ، داسي یوي نتیجي ته رسیدلي وو چي دا نور هم ښه کیدي شي او هغه دا دي چي د دغسي هیوادونو وسله والو قواووته وسلې او تجهیزات برابر کړي او ټولنه صنعتي کیدلو ته تشویق کړي چي لومړنی کارګرپوړ (پرولیتاریا) وروزل شي . خو روسان هغه وخت ډیر اندیښمن شول ، په هغو هیوادونو کي چي دوي ورسره مخامخ ؤ په دي پوه‌شول دلته هرڅه د یو سړي په استعداد او ارادي پوري تړلي وو . په هر نوي ازاد شوي هیواد کي هغوي یواځي یو سړي لیده ، چي یا به هماغه سړي ؤ چي د آزادۍ غورځنګ یې رهبري کړي ؤ او یا به بل یو ؤ- ټول سیاسي تصمیمونه به هغه نیول ، د بهرنیو اړیکو ، او که د دفاع په هکله به وو . د ډیرې زړې ټولني نه نوې

نشته ـ دا غلطي دوی له مونږ سره د جنګ کولو له پاره د دلیل په توګه په کار اچوي په دې مفهوم چې د استقلال او خپلواکۍ لاره په پای کې کمونیزم ته رسیږي .



د ۱۹۶۰ کال په مني کی د ملګرو ملتونو عمومي غونډې، چې د خروسچف کاسترو ، مکمیلن او ناصر په شمول ډیرو دولتي او حکومتي مشرانو پکی ګډون کړی ؤ ، د ګتورې ډپلوماسۍ یوه بله موقع برابره کړه . د ناصر خوښه دا وه چې د شورویانو سره ناندرۍ نورې اوږدې نه شي . مونږ خپله خبره کړې وه ، اوس په کار وه اړیکې بیرته داسې حالاتو ته راوګرځي چې دواړو خواوو ته ګټوري وي.

خو خروسچف په نیویارک کی په عجیبه حال کې ؤ. د کانګو پیښو پوره تیاره جوړه کړې وه ، خروسچف داسې فکر کاوه چې د دریمې نړۍ اکثرو مشرانو لکه مو ډیبو کیتا ، سیکوتوري ، تیتو ، نهرو او ناصر په خپلو منځو کې یو ګډ بلاک جوړ کړی وي او د شوروي د نظریاتو ېې دومره ملاتړ نه کاوه . ناصر دوه ځلې له خروسچف سره وکتل ، یو ځل په نیویارک کې او بل ځل په لانګ ایلنډ کی د ملګرو ملتو په تولنه کې د شوروي د دایمي استازي په استوګنځي کی ، خو دا کتني د خوند نه وې ، ډیر وخت په زړو او نخوانیو اختلافاتو ضایع شو . ناصر خروسچف ته وویل چې دی په ملګرو ملتو کی په بوټ باندې د میزوهلو د پیښې ملاتړ نه کوي ـ همدغسې پیغامونه نهرو او تیتو هم خروسچف ته ورکړل .



# د اړیکو عادي کیدل

۱۹۶۱ د عربي متحد جمهوریت د رنګیدو کال ؤ ، خو دا کال په هیواد کې د ننه او بهر ډیر مثبت پر مختګونه وشول . د ۱۹۶۰ کال په جولای کې یو پنځه کلن پراختیا یې پلان پیل شوی ؤ ، او د ۱۹۶۱ کال د جولای په ۱۹-۲۰ مه یې د سوسیالیستي قانون جوړونې سره نیغه مرسته وکړه ، چې د ملي کولو د پاکې کارونه اود ځمکو د اصلاحاتو اقدامو نه پکې شامل وو . د پوهنې ، روغتیا او ټولنیزو ښیګڼو په برخو کې زیات پرمختګو نه وشول . په نړیواله سویه ، عربي متحد جمهوریت ، د کانګو په پرمختګونو اونورو ځایو کې په اصطلاح د 'کازا بلانکا د بلاک' د مشرانو په ډله کې وپیژندل شو ، د افریقا یې انقلابي هیوادونو ډله د 'مالاګاسي بلاک' ، د محافظه کارو دولتونو په مقابله کې چې اوس هم د خپل پخواني بادار فرانسې ترلاربښونې لاندې وو ، ولاړه وه .

په کور د ننه او بهر مصر د پرمختګ په لور روان ښکاریده ، ذ بلې خوا نه داسې خلک هم وو چې د کینې او دښمنۍ له امله یې تبلیغات کول چې ګواکې مصر د روس تراغیزې لاندې راغلی او د هغوی د وسلو په بادو سپور دی . نو لازمه موو ګڼله د هغه سوسیالیزم چې مونږ عملي کاوه او د کمونیزم ترمنځ چې مونږ نه مانه ، د بیلوالي روښانه کرښه وباسو . وروسته له ډیرو بحثونو ، له مانه غوښتنه وشوه چې د خبرو د نتیجو یو لنډیز برابر کړم اود اوو ټکو یو پروګرام ولیکم ، دا د غور او تصویب نه سمدستي وروسته خپور شو :

۱ - په ټولنیزه مبارزه کې د وینو تو یولونه ځان ژغورل ډیر ضروري دي . که ټولنیزه مبارزه په داسې شرایطو کې تر سره کیږي چې د دووسترو قدرتونو ترمنځ سیالۍ په هر ځای کې حالات خراب کړي وي ، یو د بل په وړاندې هرځای کې ولاړ وي ، په پرمختیا یې هیوادونو کې هر یو خپل پلویان روزي ، په داسې حالاتو کې د کورنۍ جګړې مخنیوی ډیر ګران او یا له امکانه بهروي . د پرمختګ اصلي لاره د پوره صلاحیت سره داسې جوړه شي چې د ضروري ټولنیزو او اقتصادي ، بدلونونو د راوړلو او عملي کولو له پاره که هر څومره بنسټیزهم وي سم نظم او اداره ولري .

۲ - شخصي او انفرادي ملکيت د احترام وړدی ، خو اندازه او حد يې بايد په غور او جديت سره ترڅارنې لاندې وي .

۳ - پانګې او ملکيتونه به د منلو وړ او مناسبې بدلې پرته د ملي کيدلو د تهديد سره نه مخامخ کيږي .

٤ - په ټولنه کی د افرادو رول ته پوره پاملرنه کيږي او اهميت ورکول کيږي ، يواځې د دولت رول مهم او د منلو يواځنی اصل نه دي .

٥ - د کمونيزم دکتورين - په روښانه الفاظو کی د ستالين دکتورين - چې د را تلونکو نه زيږيدلو نسلونو د خوشالۍاو سوکالۍله پاره د اوسنيو دري‌څلورو نسلونو قرباني او ځوروَل روا او قانوني بولي ، بالکل د منلو نه دی . د مصر خلک حق لري د خپلو ځوانيو تکليفونو او ځوريدنو بدله ورته ورکړه شي. د درلدو صنايعو دغوښتنې په هکله دروسانواستدلال د منلووړ نه دی . نوله دې امله ، په روان پنځه کلن پراختيايي پلان کی درندو صنايعو ته پاملرنه شوې ده ، خو د لومړنيو ضروري شيانو په برابرولو ډير لنګر اچوي ، مصر د دغو شيانو د توليدولو له پاره تيار دی . دا به په يو وخت کی د خلکو اړتياوې پوره کړي او د انفلاسيون مخه به ونيسي .

٦ - مونږ بايد د دوو ايډيالوژيو ترمنځ د يوې د نيولو په نرۍ لاره پورې ځانونه ونه تړو ، دا ايډيالوژي چې په نولسمه پيړۍ کی قالب شوي او اوس يې په اصطلاح د مقدس فرمان بڼه نيولې ، خو د قرآن شريف او انجيل معنوي قوت پکې نشته .

۷ - مونږ باور لرو چې يو ځل مو زوړ استثمار کوونکی (ځبېښونکی) پوړ يوې خواته کړ ، بيا د نورو پوړونو ترمنځ په پراخه پيمانه اتحاد جوړکړو ، د بشپړتيا يې پړاوونو په لړۍکې ، کولای شو د لږکيو د انحصاري‌لاسونو نه پانګه د ډيرکيو لاسونو ته انتقال کړو .

کيدای شي دې ځرګندونو شوروي مشرانو ته د شيانو په روښانه کولو کې مرسته کړې وي يا نه ، رښتيا يې دوی انديښمن کړل چې په مصر کی څه تيريږي. د جولای قوانين چې دوی تائيدول، د عربي متحد جمهوريت د ړنګيدلو د ليلونو ځنې يو ؤ . د بيلوالي نه وروسته ارتجاعي ځواکونو په سوريه کی قدرت ونيو ، او د سوريې کمونيست ګوند چې تل د اتحاد دښمن ؤ ، اوس

د بیلتون غوښتونکو سره ملګری شو ، نو مونږ د خالد بکداش عجیبه ننداره وکړه ، کمونیستان د مامون الجوز باري غونډې څمکه وال سره لاس ترلاسه نیولي ګرځېدل . د عراق کمونیست ګوند هم د عربي متحد جمهوریت د رنګیدو هرکلي وکړ ، څکه قاسم اوس د فرصت طلبانو د عجیب اتحاد پورې ورځ په ورځ تینګ تړل کیده . د بلې خوا نه د بیلوالي سره د مصر عکس العمل د یو زیات شمیر 'مرتجعینو او څمکه والو' د بندیانولو او د هغوي د ملکیتونو د سرکاري کولو او د داسې یو سیاسي نظام جوړولو سره چې (مرتجعین) تړې بیخي وتلي وي ، ملګري ؤ . د دې له پاره چې معلومه کړي چې په مصر کې څه روان دي ، شوروي اتحاد د څېړنې له پاره څینې کسان مصر ته راولیږل چې پکې د پراوډا مدیر ساتیاکوف هم ؤ ، او ما خپله الکسي ادژوبې او ښځه یې را دا د خروسچف لور را دعوت کړل چې پخپله وګوري ، دوی هم راغلل .

خروسچف د خپلې کورنۍ په هکله د کلکو احساسو خاوند ؤ ، دې کار به دی کله کله د جنجالونو سره مخامخ کاوه ، د هغه وخت د یوې کیسې نه څرګندیږي. الکونې د یو بریالي سفیر په توګه په مسکو کې د خپل وخت د پوره کیدو په پای کې له مسکو نه تلونکی ؤ ، د هغه د مخه ښې په مراسمو کې ورته خروسچف وویل ، 'زه د مصر پرمختګونو ته په درنه سترګه ګورم ، که څه هم زه ښه نه پوهیږم چې تاسې دا ټول کارونه څه ډول کوئ . په ایډیالوژۍ کې تاسې چیرته ولاړیاستئ ؟ مونږ رئیس ناصر ونه پیژندلای شو' . بیا نور هم صمیمي شو . وې ویل ، سفیر صاحب ، 'زه یوه پوښتنه لرم ، خو دا پوښتنه یواځې له تا نه کوم ، ناصر ته یې ونه وایې . ناصر ولې زما د کورنۍ په غړیو انتقادونه کوي ؟ الکونې اریان شو او وې ویل چې دی په دې خبره باورنه شي کولای . خروسچف وویل چې ده ته داسې راپورونه را رسیدلي دي چې مصریان فکر کوي ادزوبې یو وخت ډیر شراب وڅکل او د څه شي غوښتنه یې وکړه . الکونې وویل دی خبر دی چې ادزوبې د رئیس د یو ملګري میلمه شوی ؤ ، او د ناصر سره یې خوځلې لیدلي دي ، خو هیڅ باورنه شي کولای چې په ده به یې څه انتقاد کړی وي . خروسچف وویل ، ډیره ښه ، بس پریده یې . 'خو وعده ده چې ناصر ته به یې نه وایې' . الکونې ډاډه ورکړ خو ښکاره ده چې ناصر یې له حاله خبر کړ . بیا وروسته څرګنده شوه چې د سیاسي بیروځینې غړیو چې د خروسچف د زوم د زیات واک او قدرت نه په تنګ شوي وو ، داسې خبرې جوړې کړې وې

چې خپله یې زړه غوښتل ، خو دا ټولې خبرې یې په مصري مقاماتو را اړولې وې .



په ټول ۱۹٦۲ کال کې د مصر او شوروي اتحاد ترمنځ اړیکې اواري وې . شورویان د ټولنیزو اصولو د هغې ملي بڼې نه ډېر راضي ښکاریدل چې د ناصر له خوا د می په ۲۱ مه په یوه پنځه ساعتیزه بیانیه کې د عوامي ځواکونو جرګې ته وړاندې شوې وه . په دې بیانیه کې هغه د نویو عوامي ځواکونو په یوځای کیدو ټینګار کړی و چې د عربو د سوسیالیستي اتحاد نماینده وي . شوروي تیوریسن اولیانوفسکی د دغې اتحاد په منځ کې د یو نوي مترقي ګوند هسته د جوړیدو په حال کې لیدله .

خو شورویان تراوسه هم باوري نه وو چې مصر د کوترو په کوم تاخ کې کینوي ، نو دوی ته یې په ځانګړې سترګه کتل . د اوړي په اوږدو کې قاهرې سره د دوی نیغ په نیغه مخابراتي اړیکې رواني وې ، د هغو ټولو پیښو او پرمختګونو راپورونه یې رالیږل چې د دوی په فکر د مصر له پاره د زړه پورې وو . خو په مني کې دکیوبا پیښه وشوه ، او نور هر څه هېر شول . په پای کې په دې بریالي شول چې پاملرنه له کیوبا نه بلې خوا ته را واړوي ، او وګوري چې په منځني ختیځ کې څه تیریږي، دلته په یمن کې د یو جنجال سره مخامخ شول .

لکه چې لیدل کیدل شوروي اتحاد له پخوانه د یمن سره څه ناڅه اړیکې درلودل . اوس د عربي ټاپو دغه نری څوکه ، د نړۍ د تیلو د ټولو نه د لویو ذخیرو شاته پرته او د هند سمندرته د لارې په سر په څرګنده توګه د شلو د لسیزې پر تله د فوق العاده زیات اهمیت لرونکې وه . د ۱۹٦۲ کال د سپتمبر په ۲٦ مه انقلاب په صنعا کې پادشاهي راوپرځوله او کورنۍ جګړه یې توده کړه . په اکتوبر کې مصر د جمهوریت غوښتونکو پر خوا کلک ولاړ ؤ ، او یو ځل بیا چې روسان تیار شول دغو معاملو ته را مخه کړي ، بیا یې له مصر نه غوښتنه ترلاسه کړه ، چې یمن کې د جمهوریت غوښتونکو مرستې ته د پوځونو د لیږلو له پاره د ترانسپورتي الوتکو د برابرولو مرسته وکړي . درې ورځې وروسته غوښتنه ومنل شوه او د پوځیانو د وړلو لویو انتونوف الوتکو ، چې د امریکا یې ۱۳۰ سي الوتکو برابرې دي ، قاهرې ته په را رسیدلو پیل وکړ .

څه د پاسه څلور میاشتې وروسته یو بل عربي رژیم ، چې د شوروي اتحاد سره ډېر نژدې ؤ ، د سقوط د ډېر بد خطر سره مخامخ شو . د ۱۹٦۳ کال

د فبروري په ۸ مه جنرال قاسم د تلويزيون د ماڼۍ په ړنګيدو کې مړشو . د ناسيوناليستانو او بعث يوې ډلې سياسي قدرت ونيو ، او د کمونستانو نه د خونړۍ بدلې د اخيستلو په کار کې وړاندې لاړل .

دا ټولې پيښې روسانو ته اريانوونکې وې ، او په قاهره کې د کتونکو په نظر د دوی ايديالوژيکي ماشينري د راکرځيدو په حال ښکاريده ، نوي واقعيتونه چې را ښکاره کيدل هغه يې تحليلول ، د شوروي اتحاد په نيت او ځينو بنسټيزو پوښتنو ته د هغوی په ځوابونو پوه شول . هغوی رښتيا څه غوښتل ؟ دوی يواځې دلته خپل نفوذ زياتول غوښتل او که د لويديځ د نفوذ لاسونه يې له دې ځايه لنډول ؟ دوی په منځني ختيځ کې خپلې پښې ټينګولې او که دوی لکه چې بيا وروسته معلومه شوه يواځې د لويديځ سره له دې ځای نه د يوې ' کړۍ ' په شکل کار اخيست ؟ ممکنه وه هر ډول دغسې يوې نتيجې ته سړی ورسيږي .



د جنجالونو په وخت کې تل داسې وي ، اوليانوفسکې قاهرې ته راغئ . د هغه سره له خبرو نه څرګنده شوه چې دی او نور تيوريسنان اوس افريقې ته ډيره پاملرنه کوي ، هغه تر ډيرې اندازې د دې مفکورې ترتاثير لاندې راغلی ؤ چې اوس نږدې ۶۰ - ۶۵ وروسته پاتې هيوادونه يا د ملګرو ملتو د ټولنې غړي دي او يا لګيا دي غړي کيږي ، چې دا ډير مهم رول لرلای شي . دا هيوادونه د امپرياليزم په دښمنۍ کې سره تړل شوي وو ، او څنګه چې ده او ملګرو يې ليدل ، د پرمختګ له پاره يې غير سرمايه داري لاره نيولې وه . دا وروستۍ خبره ډيره مهمه اصطلاح شوه . په دې کې د مصر غوندې هيواد هم راتـه ، هغه چې ښودلې يې وه د کمونست کيدلو هيڅ نيت نـه لري ، د لينن د وخت هغې نظريې باندې ټينګ ولاړ وو ، د ختيځ خلک بيله دې چې د پانګه والۍ د پړاو نه تير شي مخامخ به سوسياليزم ته لاړ شي .

دوی ادعا کوله چې دا خلک د نړۍ د نفوسو په سلوکې ۶۵ جوړوي ، خو د نړۍ د توليد په سلوکې لس برخې . سوداګري په سلوکې ۲۵ برخې ، د کرنې او حيواناتو پيداوار په سلوکې ۴۰ برخې او د سروزرو په شمول د نړۍ د ذخيره شويو اسعارو په سلوکې ۱۲ برخې لري . د صنعتي هيوادونو د کارګرانو د توليد په پرتله د دوی د کارګرانو توليد يواځې په سلوکې ۸ برخې

او عايدات يې په سلوکی لس برخي دي. په دوی باندې د بهرنيو پوروڼو اندازه لس مليار ده ډالر او د زياتيدو په حال کی ده . صنعتي هيوادونه دلته په کال کی د ۷ نه تر ۹ ملياردو ډالرو پورې پانګه اچوي ، خو په ګته کی تري د ۱۷ - ۲۲ ملياردو ډالرو پورې وړي. د دې هيوادونو خام مواد او بشري قوه د نورو له خوا استثمارېږي ، ګرنه يې وروستـه پاتې ده او تخنيکي انقلاب تري د تيريدو په حال کی دی .

د دې ټولو نه چې اوليانوفسکی څه نتيجه واخيستله دا وه چې د دريمې نړۍ پـه اکثرو هيوادونو کی د يو رښتيني انقلاب لـه پاره ښه شرايط شتـه چې شوروي اتحاد يې بايد له نظره ونه باسي . دا داسې يو حالت دی چې د امپرياليزم ضد ناسيوناليزم بايـد وزيږوي ، خو دا بايد د خلکو ټولنيزو غوښتنو تـه ځواب ووېلی شي . دغه نوي رژيمونه بايد مترقي وي ، چې د عوامو لـه پاره پرمختيايي پروګرامو نه ولري . خو د اداره چيانـو پـه توګه بـه بورژوازي پـه دوی کی لوی رول لري . نو د ټولنيز پرمختګ يونوی شکل بايد ولټول شي چې د پخوانيو شکلونو سره پوره توپير ولري . دا به غير سرمايه داري لاروي ، د هيواد په اطرافو کی به په کارګرانو پورې تړلې وي او صنعت بـه د جوړيدو او ودې پـه حال کی وي ، او خامخا به يې د بورژوازۍ د ځينو عناصرو له خوا ملاتړ کيږي . د سوسياليستي هيوادونو (يا په بله ژبـه د شوروي اتحاد) مسؤليت دادی چې دا پروسه په شا راونه ګرځي . دابه څنګه کيږي؟ لومړی ، شوروي اتحاد بايد د پرمختګ له پاره غير سرمايه داري لارې تشويق کړي ، بيا هڅه وکړي د ناسيوناليستي مشرانو سره مرستـه وکړي او دوی پـه دې پوه کړي چې لـه دوی سره د سوسياليستي کمپ نه پرته بل څوک مرستې کولو ته تيار نه دي .

البته ، اوليانوفسکی په خپل تحليل کی وړاندې لاړ ، خو ستونځې شتـه . ډير دغسې نوي ملي مشران يواځې دي،په خلکو کی پوره ملاتړ نه لري او ژر له ميدانـه ايستل کيږي . بيا ځيني بورژوازان د عوامو د پرمختګ مخالف دي چې ترڅو د نړيوالې سرمايه دارۍ شريکان نـه شي ، نو د بيروکراسۍ لـه لارې خپل فساد خپروي . نور عوامل هم شته ، ديني ، قبايلي ، کورني - چې بايد په شمار کی ونيول شي - څکه دوی کولای شي د سوسياليزم شعارونه د خپلو ګټو له پاره په کار راولي . دا ډيره ګرانه ده چې د يو رښتيني او دروغجن رژيم توپير وشي . خو کمونستان بايد دغو ټولو عواملو ته پاملرنه وکړي او د دوی نـه

ګټه پورته کول زده کړي . دوی باید د خلکو په منځ کې کار وکړي ، او هغوی قانع کړي چې دوی (کمونستان) د ټولو نه زيات ملي خلك دي ، ډیر دموکراتان او د ټولنې تر ټولو زیات انقلابي ځواکونه دي . اوس د دې وخت دی چې ټول کمونستي غورځنګونه د ملي ځواکونو سره په ګډه کار وکړي او هغوی په دې قانع کړي چې د کمونستانو سره دښمني او د هغوي وژنه د ملي او ټولنیزې خپلواکۍ د ګټلو مبارزه کمزورې کوي ، او د ناسیونالیستانو او کمونیستانو ترمنځ هر ډول شخړې دوي د واړه دامپریالیستانو او مرتجعینو دا هدافو قرباني کوي .

اولیانوفسکی زیاتـه کړه ، کمونستان باید پـه دې پوه شي چې پـه دغسې هیوادونوکی محصلین ډیر مهم او فعال عامل دی ، خو دا د تجربې د نښتوالي له کبله ، ژر او پـه آسانۍ سره د انقلابي عمل له پاره د نورو منابعو له خوا په غلطه لاره روانیږي ، او د کار نه یې ناروا ګټې اخلي ، دا ټول د دوی د احساساتو او نه حوصلې له امله . د محصلینو د ظرفیت نه ناروا ګټه پورته کول پـه آسانۍ سره د پرمختګ مخه نیوي شي . نو کمونستان باید هڅه وکړي محصلین برخې اخیستلو ته تشویق کړي ، او د هغوی تجربو او مسؤلیتونو ته ښه پاملرنه وکړي .

اولیانوفسکی په پای کی داسې نتیجه واخیستله چې د دغو نويو رژیمونو ستونځې د خپلو هیوادونو د خلکو د ټولنیزو پرمختګونو لـه پاره د ښکاره پروګرامونو نشتوالی دی ، د امپریالیزم د خوشاله ساتلو سره میلان ، او د يو تنګ نظره ناسیونالیزم عملي کول پـه تیره بیا د بزګرانو او بې سواده خلکو پـه منځ کی ، چې دا ټول په آسانۍ سره په کمونستي ضد افکارو تعبیر کیدای شي . دا يو داسې شی دی چې کمونستان ورته باید ډیره پاملرنه وکړي . پـه افریقا ، اسیا او لاتینې امریکی کی د کمونستي ګوندونو تجربو وښودله، په کار ده کارګر پوړ ځان د غیر کارګري پوړنه جلانه کړي بلکی په ټولنه کی له دوی سره ډیرې کلکې او نژدې اړیکې وساتي .

اولیانوفسکی چې د شوروي اتحاد د کمونست ګوند راتلونکي کانګرس ته راپور برابراوه ، مصر یې 'د افریقې او اسیا د خلکو د امپریالیستي ضد مبارزې د لارښود، پـه نامـه یاد کړ . نو پـه تیوریکي لحاظ لېرتر لږه مصر بیا د دوی د رسمي ملاتړ نـه برخـه درلوده . داد 'پرمختګ د غیر سرمایـه داري لارې، يو ځلانده مثال ؤ ، او روسانو پـه پرلـه پسې توګـه پـه مصر د مشورو باران را

خوشي کړی ؤ چې نور څه باید وشي .

شوروي اتحاد دا وخت د دریمې نړۍ په ټولو هیوادونو کې ډیر فعالیت کاوه . سیمه یزو کمونستي ګوندونو ته دستور ورکړل شوی ؤ چې د اولیانوفسکي د راپور په رڼا کې باید د ناسیونالیستي ځواکونو سره ملګري شي ، او مسکو د ملي متحدی جبهې په شکل کې ددې کار سپارښتنه کوله . د مصر او سوریې حکومتونو (چیرته چې د عربي متحد جمهوریت تر ړنګیدو وروسته د کودتا ګانو لړۍ رواني وې) اوحتی عراق ته توصیه کیده چې د اولیانوفسکي د پروګرام له ښیګڼو نه ګټه واخلي . هغوی ته ربښتیا ویل شوي وو ، چې مشري باید د ناسیونالیستانو په لاس کې وي ، خو د مشرتابه شاته باید په لویه پیمانه سیاسي اتحاد ولاړوي ، البته کمونستان هم پکې وي . په دې کې د دواړو خوا ووګټې شته . دا نژدې هغه وخت ؤ چې د عربي سوسیالیستي اتحاد استازو د شوروي اتحاد د کدرونو په ښونځیو کې برخه اخیستل پیل کړل ، او آن چې مرکزي کمیټې ته به هم ورتلل .



خو دغو پرمختګونو په هغو مصري کمونستانو باندې ډیره بده اغیزه وکړه چې اوس هم لا په زندانونو کې وو . پیښو ته دوی په ډیرې ساده ګۍ کتل . هغه وخت چې د ۱۹۶۱ کال په پای کې د ډیرو پانګه والو ملکیتونه سرکاري شول ، دوی دا کار د دوو بورژوازي ډلو ترمنځ یوه ساده سیالي وبلله ـ هغوی لیدل ، د مصر د بانک ډلې چې ملاتړ یې د ۱۹۵۲ کال د انقلاب کوونکو کاوه ، د عبود پاشا ډله له منځه وړله . خو بیا داولیانوفسکي دراپور نقل دوی ته زندان ته د ننه په غلا ورووړل شو ، او هغوی خبر شول چې دوی دې ته سترګې په لاره دي چې د نا سیونالیستي غورځنګ سره به اوږه په اوږه په یوکتارکې ودریږي . یو ناڅاپه د مصر اهداف پرځان د انتقاد کولو یو ګبین شو ، او تر هغې چې د ۱۹۶۲ په مې کې نوي ملي اصول خپاره شول او نوی اساسي قانون عملي شو ، اکثره کمونستان له زندانو نه خوشي شوي وو .

خو سره له دې چې دوی هڅه وکړه ځانونه له نویو شرایطو سره برابر کړي ، د مصر کمونستان هیڅکله هم په دوی پوه نه شول . هغوی ترپایه د عربي سوسیالیستي اتحاد په مفهوم باور پیدا نه کړ ، دوی دا د 'طبقاتي مبارزې ملي کول' بلل ، نو منجمد یې کړ . هغوي بالکل د عربي ناسیونالیزم په طبیعت پوه نه شول ، او په دې چې څنګه هر عربي مشر د خپلو خلکو نه زیاتو

اوریدونکو ته خبری کوي . په دې خبره د دوی سر خلاص نه شو چې په مصر، سوریې او عراق غونډې هیوادونو کې بورژوازۍ تر ډیرې اندازې هغه خالیگا ډکه کړه چې د امپریالیستانو له تګه نه وروسته پیدا شوې وه . دوی ټولنیز، کلتوري او علمي هغه ټول میراث بې ارزښته گڼانه چې عربو ته دین وربښلی ؤ . دوی د عربو ـ اسرائیلو د لانجې او د دې نه د راپورته کیدونکو جنجالونو په اهمیت کې غلط شول . دوی تل دا احساس کاوه چې که څه هم په ښکاره د عربي ناسیونالیستانو او شوروي اتحاد ترمنځ د ورور گلوۍ اړیکې شته، خو د ناسیونالیزم د مخ لاندې یوه پټه کمونستي ضد غریزه پرته ده . همدارنگه دوی سره دا بدگوماني تل ملگرې وه چې دوی به د یو سترطاقت په توگه خپل نړیوال مسؤلیت ته زیات اهمیت ورکړي، نه د انقلاب د نماینده په توگه خپل مسؤلیت ته . د کیوبا ترلانجې وروسته هر یو مجبور ؤ لـه سره د شوروي د نیت نتیجه گیري وکړي . ناصر د دریمې نړۍ د مشرانوځني یو ؤ چې کاسترو ورتـه ویلي ؤ، روسانو له کیوبا نه د خپلو میزایلو د ایستلو په هکله له ده سره مشوره نـه وه کړی او دی لومړی ځل له فیصلې نـه هغه وخت خبر شو چې له راډیو نه یې واوریده .

هیڅ شي د ناصر دا نظر بدل نه شو کړای چې شورویان د عربي اتحاد په مفهوم نه پوهیږي، یا د عربو ـ اسرائیلو د شخړې پـه مطلب، یا دا چې ولې مصر هیڅکله هم کمونست کیدي نه شي، او له دې املـه ضروري وه چې هڅه وشي دوی د مصر په دریځ وپوهول شي . اوس چې د شوروي اتحاد سره اړیکې ښې رواني وي، هغه احساس کاوه چې دا بـه گټوره وي پـه واقعیتونو باندې د ټینگار کولو څه اشارې ورورسولي شي . د لوړ بند لومړی پړاو په ۱۹٦٤ کال کې بشپړ یدونکی ؤ . او ډیرې پیښې سره را یو ځای کیدلې چې قاهـره یې د دریمې نړۍ د پایتخت په توگه را ښکاره کوله . د ۱۹٦٤ کال په جنوري کې په قاهره کې د عربي هیوادونو د سر مشرانو غونډه کیدله، په جولای کې دلته د افریقا یې هیوادونو د مشرانو غونډه کیدونکې وه، او په اکتوبر کې د ناپیېلو هیوادونو د سر مشرانو غونډه را روانـه وه . روسانو غوښتل خلک پوه شي چې دوی غواړي د لوړ بند مراسمو ته 'یو لوړ رتبه هیئت' راواستوي . دا اشاره ورکړل شوه . آیا خروسچف خپله راتللو ته تیار دی ؟ په دوه ورځو کې ځواب راغۍ چې چیرمین صاحب غواړي را شي . بلنه واستول شوه او ومنل شوه .

اصولي پرمختللې ټولنې ته د انتقالي دورې تیرول حتمي دي ، خو ځانګړې خطرونه لري .

روسان په دې ټولو ښه پوهیدل ، بیا ئې هم پرله پسې هڅه کوله ترڅو دغه یو سړي داسي تنظیم جوړ کړي چي عمري اوږد کړي. هغوي دا خوب لیده چي د ناصر غوندي سړي به د خپل هیواد قنستنطین شي ، دکمونیزم نوي لاري ته به راواوړي ، او بیا به دغي لاري ته د خپل هیواد د ټولو خلکو د را اړولو کار وکړي . خو دا خوب له امکان نه لیري ؤ . کاسترو تر هغي کمونست نه ؤ چي د ۱۹۵۹ کال په لومړۍ ورځ سیاسي قدرت ته ورسید ، ژړبې رښا ولیدله او خپل خلک يې په هغه لاره روان کړل . دا کیسه ولي باید د یو ناصر یا قاسم له خوا تکرار نه شي؟ البته دا ددوي هیله وه چي یو لویدیځ مشر لکه ډالس به هرځلې په ناصر دکمونست ټاپه لګوله ترڅو د خلکو له خوا ورټل شي او کمونیزم خوا ته په نژدي کیدلو مجبورشي .

د شورویانو له پاره د مصر سره په ۱۹۵۵ کال کي د وسلو په معامله کي د اړیکو ټینګولو پیښې ډیر اهمیت درلود . دي کار نه یواځې د ستراتیژیکو دلایلو له مخي منځني ختیځ سیمي‌ته د شوروي‌ورننوتل تضمین‌کړل چي روس دیوي پیړۍ راهیسي غوښتل ، بلکي دي کار افریقا ته د روسانو د ورتګ لاره هم پرانیستله ترڅو د نړۍ په هره خواکي د ملی آزادۍ د غورځنګونو سره اړیکي ټینګي کړي . نو خامخا په ۱۹۷۲ کال کي د دي ځایه د شوروي په شاتګ د سیمه یزې اندازي نه زیات اهمیت درلود .

د ۱۹۷۷ کال په دوبی کي د دوي قدرت دلته څومره شړیدلی ؤ ، نه يې غوښتل داسي وشي . د مثال په توګه هغه وخت چي په ۱۹۷۶ کال کي کارتر د امریکي جمهور رئیس شو ، د ملګرو ملتونو د ټولني سرمنشي کورټ والدهایم د هغه نه غوښتنه وکړه د هغه د نړیوالو اهدافو د تشویق له پاره د ملګرو ملتو له ټولني زیاته کټه پورته کړي . ډاکتر والدهایم ټینګار وکړ د ملګرو ملتو د ټولني نه ستا د ویري څه ضرورت نشته ، هغه زیاته کړه د دریمي نړۍ اکثریت چي شوروي اتحاد به پخوا په اسانۍ سره ستا پر ضد په کار اچاوه ، نور نشته ، شوروي مشران هم پوهیدل چي داسي ؤ . هغوي په دي باور درلود هغه اکثره جادوګرۍ چي د دوي په نامه پوري تړلي وي ، اوس الوتې دي .

رښتیا له بهر نــه هغوي اندیښنه درلوده . کله کله به کامیابۍ ډیري اسانۍ راتللي ، خو کله به چي د هغوي د بخت ستوري په پورته کیدو شو ، شورویان

# الف درجه

شوروي مشر تا به غوښتل د لوړ بند د لومړي پړاو د کار د سرته رسیدلو مراسم ډیر شاندار وي . د افریقي ټول مشران په جولای کې قاهره کې سره را ټولیدونکي وو ، او د ناپیلو هیوادونو مشران په اکتوبر کې ، دوی به ټول د لوړبند لیدلو ته لیوال وي . دا به د مصر د یو بریالیتوب په توګه وګڼل شي، دا د دریمې نړۍ د ټولو هیوادونو له پاره داسې یو بریالیتوب دی چې د شوروي اتحاد په فني او مالي مرسته تر سره شوی دی .

زه خپله د مصر نه د خروسچف له کتنې سره ډیر نژدې په تماس کې وم . زه د مې د ورځې په مراسمو کې د برخې اخیستلو له پاره مسکو ته بلل شوی وم ، خو ما تـه دا بلنه تکراري غوندي ښکاریده چې مې پکې وړاندې ځوځلي کډون کړی ؤ . د اپریل په وروستیو ورځو کې د یمن مرکز صنعا کې وم ، د خپل اخبار له پاره مې د دې ځای د جنګ دحالاتو معلومات کاوه ، زه هلته وم چې د خروسچف د زوم ادزوبې له خوا راته چې د ازوستیا مدیر ؤ تیلفون وشو . غوښتنه یې را نـه وکـړه ، 'تـه ولې نـه یې راغلی ؟'، ما ورتـه وویل چې ما د مې د ورځې مراسم پخوا ځوځلي لیدلي دي . هغه وویل : 'دا خبره نـه ده . کیسه داسې ده چې ته باید مسکو ته راشي ، په مراسمو کې برخه واخلي ، دلته پاتې شي ترڅو لوي سړی (هغه بـه تل خروسچف لوی سړی بالـه) مصر تـه روان شي ، د هغه سره کریمیا ته او بیا په سمندرکې ورسره سکندریې ته لاړ شي . لوی سړی د مصر په هکله ډیرې پوښتنې لـري ، او هغه غواړي له داسې یو سړي سره خبرې وکړي چې مصر ښه پیژني ، په عربې نړۍ کې ښه بلد وي او رسمي سړی نه وي . نو مونږ ستا د رابللو سوچ وکـړ، . ما ورتـه وویل دا خو بالکل داسې یو شی دی چې ما پري فکر نه ؤ کړی .

اصلاً اوس زما له پاره ډیره ناوخته شوي و چې وکولای شم مسکوکې په مراسموکې برخه واخلم ، خو نیم ساعت وروسته یوه الوتکه د صنعا نه قاهرې ته روانه وه ، او ما پکې ټکټ اخیستی ؤ . بله ورځ سهار ډیر وختي زه قاهره کې وم ، هلته را تـه د ناصر منشي پـه هوایي میدان کې ولاړ ؤ چې زه بایـد مخامخ

د جمهور رئیس کورته لاړ شم . ناصر می ولیـد ، راته وی ویل چی فکر کوي زه باید یوځل مسکو ته لاړشم . په دوېمه لیدنـه کی ده ما تـه هغه موضوعګانې پـه لنډیز سره په ګوته کړي چی غوښتل یې له خروسچف سره پري خبرې وکړم .

د می د ورځې په ماښام ناوخته مسکو تـه ورسیدم ، هلته می پام شو چی د تېې خپل زیرکارت می هیر شوی ؤ . د هوایي میدان مقاماتو راته ویزه راکړه ، خو د روغتیایي اسنادو نشتوالي له جنجال سره مخامخ کړم . زه یې یوې تیتې ښځې ډاکترې ته په لاس ورکړم او هغې د سویتسکایا هوټل ته بوتلم ، راته وې ویل چی باید ۳٦ ساعته له خپلې کوټې نه ونه وځم ، خو وی ویل چی میلمانه درتـه راتلای شي . لومړنی سړی چی ما تـه راغی الکسي ادزوبې ؤ ، هغه را تـه ډاډ راکړ چی مشران د مصر نه د خروسچف لیدنې تـه ډیر زیات ارزښت ورکوي . د عربي نړۍ نه دا د ده لومړۍ لیدنـه وه ، او شوروي اتحاد د عربو له پاره ډیر څه کړي وو . دا به لومړی ځل وي چی دی د افریقا په خاوره کی پښه ږدي ، دی داسی یو سړی غواړي چی د ده د هرې پوښتنې ځواب وویلي شي ، نو ځان تیار کړه !، الکسي دا خبرې وکړی .

یو سړی چی د می د ورځې د مراسمو له پاره را غوښتل شوی ؤ ، احمد بن بیلا ؤ ، د الجزایر د انقلاب پیاوړی مشر ، خو هلته د ده دومره د زړه پورې هر کلی ونه شو . دومره وخت نه ؤ تیر شوی ، د شوروي مشرانو د تیرې کتنې پـه وخت کی غوښتل پـه رسمي ګـډه اعلامیه کی د الجزایـر انقلاب او د بن بیلا رول تـه اشاره وشي ، خو دوی تل له دې کار نـه ډډه کولـه . د دې انکار دوه دلیلـه وو . دوی دا تیـوري منلې وه چـی د الجزایـر خپلواکي د فرانسې پـه خپلواکۍ کي پټه وه ـ په بله ژبه ، دوی پـه الجزایر کی د میشتو فرانسویانو هغه دعویٰ منلې وه چی الجزایر د فرانسې د خاورې یوه برخه ده ، او د مدیترانې پـه دواړو خوا وو کی باید په یو وخت کی انقلاب وشي . همدارنګه دوی د دګول ډیـر زیات احـترام کاوه ، او د هغه سره یې تل د پامه ډکه ګـوزاره کوله . دوی فکر کاوه په اروپا کې داسې یو سړی ته ضرورت لري چی د امریکایانو په وړاندې دریدای شي . اوس دلته په مسکو کی بن بیلا رسمي میلمه ؤ ، د لینن په نظریاتي پوښښ کی پټ او شوروي اتحاد یې قهرمان باله .

ما یوه ورځ د بن بیلا سره پـه کریملین کی د سهـار چـای څـکلې . دی پـه هماغه اپارتمان کی ؤ چی ناصر به پکې اوسیده . راته وې ویل چی ده د خروسچف سره په خبرو کی په دوه ټکو زور واچاوه ـ اسرائیل او د عربو اتحاد . ده وویل چي

'ما د خروسچف سره یو نوی استدلال را وړاندې کړی دی ، او فکر کووم چې دی باید پری پوه شي . هغه دا چې اسرائیل بیله مرتجعینونه بل څه شی کیدي نه شي، ځکه دوی د امریکې او امپریالیزم سره ځانګړې اړیکې لري . لوړی هغه داسی ګومان کاوه چې اسرائیل به په منځني ختیځ کی یو مترقی ځواك شي ، خو ما ورته څرګنده کړه چې دا د دوی د فطرت نه مخالفه ده . دوی د امریکی سره له نامه نه تړل شوی دي . د بلې خوا نه عربي اتحاد بیله مترقي قوت نه بل څه نه دي ، ځکه دا د دوی د مشرانو غوښتنه نه ده بلکې د عوامو غوښتنه ده . حاکمان د عربي نړۍ د مصنوعي سرحداتو په د ننه کی ډیر امتیازونه لري خو عوام حالاتو ته په دې سترګه نه ګوري . یووالی یواځې او یواځې د خلکو له خوا کیدي شي' .

مونږ چې خبرې کولې خروسچف راننوت . ویې ویل : 'نو ته ناوخته را ورسیدې ؟ تا نه مراسم تیر شول' . ما ورته وویل چې هو ، همداسې ده ، خو ما د ګورکي په جاده او د مسکو په نورو برخوکی د خلکو مراسم ولیدل . بیایې وویل چې 'ښه ، اوس نورې خبرې نه کوو ، زه خپل دوست د رخصتۍ له پاره کریمیا ته بیایم ، هلته به سره وګورو ، د خبرو له پاره به کافي وخت پیدا کړو' .



دوه ورځې وروسته ادزوبې سهار وختي زه له هوټل نه بوتلم . هوایي ډګر ته لاړو ، هلته مو هغه ټول خلک ولیدل چې مونږ سره په کشتۍ کی تلل - د خروسچف ښځه نیناپتروفنا ، لوربې د الکسی ښځه رادا ، د خروسچف زوي سرګي او د هغه ښځه ګالینا ، د اذربایجان صدراعظم علي خانوف ، ګرومیکو ، مارشال ګریچکو ، د برق وزیر نیپاروژني ، د بهرنیو اقتصادي اړیکو وزیر سکاچکوف، د پراودا مدیر ساتیوکوف او لوربې تانیا چې د مسکو په پوهنتون کی د عربي په زده کړه بوخته وه . یلتا ته چې را ورسیدو بیا د موټرانو په کاروان کی د غرونو په منځ کی یو لوي کورته لاړو - لکه یوه لویه ماڼۍ داسې ؤ - د سمندر په غاړه د ښایسته باغونو په منځ کی . خروسچف ولاړ ؤ چې زمونږ هر کلی وکړي، پراخه جامې یې اغوستې وې ، د کمیس ګریوان یې پرانیتی او لویه شپو یې په سروه . ارامه او دوستانه فضاء وه - کورنۍ میله وه .

په ما د خروسچف سترګې ولګیدې ، ما یوې لویې ډبرې ته کتل چې هلته نژدې تري د سمندر په غاړه یو لوي د ښیښې تعمیر راګرځیدلی ؤ . ویې ویل :

'راځه ، زه يې درته وښيم چې دا څه شي دی' . د ځانـه سره يې بوتلم ، ومې ليد چې د لمبلو ډنډ دی ، د ښيښې تعمير پرې راګرځېدلی او ايرکنډيشن دی ، د کال په هر فصل کې پکې لمبا کيدای شوه ، که بهر واوره هم وي او که کنګل يا يخ بادهم . دا ډير عجيب تعمير ؤ ، له بستروډک ؤ ، جمنازيم ؤ ، د مساژ کوټه او نور شيان وو .

د غرمې ډوډۍ د کور په يوه برنډه کې وه ، خروسچف خپله د بزګرۍ ډيره ښه ميلمه پالنـه کوله ، د ميلمنـو د خوشالۍ له پاره يې هر څـه کول . په ډوډۍ خوړلـو کې زه د ده ترڅنګه ناست وم ، زمونـږ دواړو ترمنځ يو ترجمان ؤ . ويې ويل : 'راځه ، تياري ؟' دا ځل به زه ژورنالست يم ، زه به پوښتنې کوم ، نه ته'. ما ورتـه وويل . چيرمين صاحب ، زما پوښتنو تـه به هم لږ وخت راکوئ' . ويې ويل ، نه ، نه ، تينګاريې وکړ . 'پوښتنې به نه وي' .

د غرمې په ډوډۍ کې د يوکراين د کمونست ګوند لومړی منشي پيټرشلست هم ؤ . هغه څه چې زه اريان کړم د خپلـو ملګرو سره د خروسچف ګـوزاره وه ـ يو ډول نيمــه سختې ټوکې ، چې کله کله بـه ويرونکې وې . د مثال پـه توګه ، شيلست يوه مهمـه خـبره پيل کـړه : 'نيکولای سرګيويچ ! پـه مسافرت ولاړ شئ ، او د هيڅ شي انديښنه مه کوئ ! پـه يوکراين کې هر شی پـه ډيره اعلیٰ درجـه دی ! د غنمو فصل ...' دلته يې ډير اعداد ورکړل . خروسچف ورته په ځيروکتل ، ويې ويل : 'ملګريه ، داسې راتـه ښکاره شوه چې ګومان کـوئ زه له دې سفر نـه بيرته نـه راځم ، نو ځکه پـه ارقامو کې ډيـره سخا کوې . خو زه بيرته راځم ، او چې راغلم بيا به راته د دې ټولو ارقامو ښه محاسبه راکوي' . ټولو وخندل ، خو دا اسانه خندا نه وه .

په دا بله ورځ مونږ ټول په ارمينيا کې سواره شو ، د مسافـرو وړلـو يوه ډيـره لوکسه کشتۍ چې مونږ يې سکندريې ته وړلو . ماسپښين روان شو ، زه عمومي سالون تـه ورغلم ، هلتـه مې خروسچف وليـد . ويې ويل ، ما نـه غوښتل دلتـه راشم ، دلتـه ډيرکيکونه دي ، (پـه ميز هر ډول لوی لوی کيکونه ايښي وو ) . زياته يې کړه : 'زه بايد يو هم ونه خورم ، ځکه پرهيزيم . قاهرې ته چې ورسيدو ، هغوی ته به ووايې چې زه څه نه خورم' . په همدې وخت کې يې يو کيک خوړ . بيا که څه هم رادا غوښتل ، دی له خوراکه را منع کړي ، يو بل يې را واخيست . ترڅو چې پاڅيده ، شپږ يې خوړلي وو .

خبرې کيدې چې ماښام به ځنګه تيرو و ، خروسچف له ادزوبې نه وغوښتل

د هغو ټولو فلمونو لست راوړي چي په کښتۍکي وو . يو يې هم دومره خوښ نه شو ، خو په پایکي يې يو خوښ کړ چي نوم يې ؤ «لوغ دپلومات» . خپل د بهرنيو چارو وزير ته يې غږ وکړ : 'ګرومیکو ، مونږ يواځې ستا له پاره دا فلم ګورو' . بيايې ګرېچکو ته مخ ور واړاوه ؛ ويې ويل ، 'ته بايد ځان نيکمرغه وبولي ، 'د «لوغ مارشال» په نامه فلم نشته ، که واى ، هغه مولید' .

د ماښام د ډوډۍ پروخت ډېر زيات ارمينيايي براندي وخوړل شول . زه د خروسچف خواکې ناست وم او د لومړي ځل له پاره مې پام شو چي څومره په خوند ښوروا چښي . لومړى د خپلې پيالې نه يو غړپ په قابکې واړوي ، بيايې په قاب کې بيله کاشغې څکي . له ډوډۍ وروسته يې بيا راته يو سيګار وړاندې کړ .

بل سهار خروسچف د کښتۍ بهر تختې ته راووت ، لوىکميس يې اغوستى او يو دوربين ورسره په لاس کې ؤ . مونږ ته يې غږکړ ، راشئ . دا وخت مونږ باسفورس ته نژدې شوي وو ، او ما وليدلې چي دوه ترکي کښتۍ زمونږ په بدرګه کې يوه وړاندې او يوه وروسته روانې دي . خروسچف ګرېچکو ته غږکړ او دوربين يې ورکړ . ويې ويل ، 'دې بې عقلو خلکو ته وګوره ، دوى په دې غونډيوکې توپونه اينښي دي . خو دا د ماشومانو د لوبو شيان دي او بايد په موزيم کې پراته واى . مارشاله ! راته ووايه زمونږ نوي بمونه څومره طاقت لري ؟' ګرېچکو وويل ، 'متخصصين لاپه دې نه پوهيږي چي نوي بمونه څومره قدرت لري' . خروسچف ما ته مخ را واړاوه او ويې ويل ، 'اوس مونږ لرو قوي توغندي خو مونږ پري جرمني ونه ويشت ، ځکه دې کار به شوروي اتحاد مکروبې کړاى واى . رئيس ناصر چي زمونږ ميلمه ؤ ، هغه ته مو د اتومي چاودنې يو فلم وښود . خو هغه د ۱۹۵۸ کال ؤ . مونږ هغه وخت پري ويار کاوه ، خو اوس پري شرميږم . دا يواځې يوکوچنى شى ؤ ، دا زمونږ د اوسنيو لويو توغنديو په پرتله د يوې چونګښې په اندازه ؤ' . دا ټولې خبرې يې د يوکليوال بزګر په ژبه او شکلکولې .

کښتۍ ودريدله چي يو ترکي سمندري لوړ رتبه منصبدار راوخيژي او د ترکيې د حکومت د ښه راغلاست او ښو هيلو پيغام ورکړي . خروسچف ځان ناګاره واچاوه . ويې ويل ، 'امپرياليستان نه پوهيږي چي جنګ ناممکن شوى دى . ايزنهاور تر ډيره وخته په دې نه پوهيده چي زروي جنګ څه شى دى . يو عادي پوځي سړى ، هغه فکر کاوه چي دا به يولوى او ښه توپ وي . ډېر ناوخته ؤ

چې دی پوه شو چې د ډیرو بدلو وسلو د سیالۍ او لوبې سره مخامخ وو . زما په فکر لومړنی سړی چې د زروي وسلو په واقعیت پوی شو کینیډی ؤ . زه فکر کووم مکنامارا دی پوه کړ ' .

بیا وروسته چې مونږ هلته د کشتۍ په رستورانټ کی ناست وو او د غرمې د ډوډۍ نه وړاندې مو یو شی نیم څکل ، خروسچف بیا دا خبره را یاده کړه . ویې ویل ، 'اوس امریکایان پوهیږي چې د جنګ امکان نشته . سویز ورته درس ورکړ چې په زروي وسلو جواري نه کیږي . دا یو داسی خطرناك کار دی چې سړی یې تصور نه شي کولای . ډالس به خلک خطرناکو کارونو ته تشویقول - هغه به ټوله نړۍ له ویرې لړځولې وای، چې څه یې غوښتلای هغه به یې را نیولای وای او له اوبو به بیرته راوتلي وای . خو دا د مصر خلک وو چې میزیې په څټ واړاوه او خپله ډالس یې په اوبو کی واچاوه ، او بیا چې مونږ لندن او پاریس ته اخطار ورکړ ، د ډالس ما غزه خراب شول . د ده ملګرو چې څه کولای شول دا ؤ چې خپل سرونه سلامت بیرته وتښتوي .

'خو فکرکووم اوس امریکایان واقعیت ویني . کینیډي او مکنامارا د کیوبا د لانجې په رښتیني مانا پوي شول . هغوی ولیدل چې په نړۍ کی یو ځای هم د زروي وسلو نه پاك نه دی . امریکایانو تل دا خوښه کړې ده چې خپل جنګونه د نورو په ځمکه کې وکړي ، خو اوس هر څه بدل شوي دي . د نړۍ هرځای خلکو ته ښکاري .

ځیني خلک په دې پوی نه شول چې مونږ په کیوبا کی څه وکړه . هغوی خبر نه شول چې مونږ څه کول غوښتل هغه مو وکړه . مونږ امریکا و پوهوله چې دوی ته هم ضرر رسیدي شي . مونږ د کیوبا د ځمکې د تمامیت او انقلاب تضمین ترلاسه کړ ، او هغوی مو مجبورکړل چې متقابل عمل وکړي' . (کیدای شي د خروسچف مطلب د ترکیې د خاورې نه د ځینو امریکایي میزایلو لیرې کوونه وي .) 'جنګ هیڅکله هم خپل هدفونه لاس ته نه شي راوړای . خو یو شي ته دې بایـد تل ډیر پام ویړ هغه د ستر قدرت وقار دی . مونږ مجبور وو امریکایانو ته لاره ورکړو ، ځکه که چیرې د ستر قدرت حیثیت ته خطر متوجه شي بیا چې څه مخې ته ورشي هغه کوي . د ستر قدرت ټول کار د ده په حیثیت پورې تړلی دی .

'د جنګ نه امکان مونږ هغسې سولې ته نه رسوي چې یې غواړو ، خو دا کار داسی شرایط رامنځ ته کوي چې سوله پکې جوړولای شو . د یو د بل د له

منځه ورلوکته څه ده؟ ما يوځل ولوستل چي مکنامارا ويلي ؤ چي امريکا د زروي وسلو دومره ذخيره لري چي کولای شي څلورځلي دا نړۍ ورانه کړي. په شوروي اتحاد کي مونږ دغو وسلو ته ضرورت نه لرو. يوځل يې ورانول بس دي. ضرورت نشته چي نړۍ دې څلورځلي ورانه شي، يوځل بس دي'.

خروسچف يو ليمونيم کړ او په څيښلو يې پيل وکړ، ويې ويل، 'راځئ چي ډوډۍ ته ورځو'، هغه ليمو د دې له پاره خوړ چي خپله اشتهارا کمه کړي. سالون ته چي لاړ هم ده هماغسي خبرې کولې، او ما ته يې وويل چي تراوسه مې لا درنه يوه پوښتنه هم نه ده کړې، تول وخت خروسچف خبرې کولې.

ميز ته چي کيناست هم د ده خبرې رواني وې، په هماغه يوه موضوع. ويې ويل، 'دا تير جنګ، وروستنی ممکي جنګ ؤ. جنګ چي پيل شو مونږ ورته تيار نه وو، خو د جنګ تر پايه پورې مونږ خپل قوت دومره زيات کړ چي برياليتوب مو په برخه شو. جنګ چي ختم شو مونږ خپل لومړنی اتومی بم جوړ کړ، او بيا مو خپل لومړنی هايدروجني بم. زه چي کله د مرکزي کميټي لومړی منشي مقرر شوم او دزروي قوت دا خبرې مې واوريدې، څو ورځي خوب نه راتئ. بيا مې ځان قانع کړ چي کيدی شي مونږ هيڅکله هم دا په کاروانه چوو، چي په دې پوي شوم بيا خوب راغئ. خو د دې تولو سره سره مونږ بايد تياری ولرو. زمونږ پوهه د امپرياليستانو د غرور له پاره پوره ځواب نه دی. مونږ بايد هيڅکله هم بيا د نابېره بريد سره مخامخ نه شو لکه هټلر چي را باندې وکړ. ته پوهيږې هغه وخت په ستالين څه وشول. هغه چي د روس په خاوره باندې د جرمنيانو د تيري واوريدل، خپلې د خوب کوټې ته لاړ، او ځان پسې يې دروازه بنده کړه. په دا بله ورځ يې مونږ را تول کړو او راته ويې ويل، «ملګرو، هغه هيواد چي لينن جوړ کړی ؤ ختم شو!» دا خبره داسي وه لکه پر مونږ چي تندر راولويږي. بيا ګوند او خلک راپورته شول او مشران يې له ماتيدو وژغورل'.

دا تول وخت خروسچف اصلاً ماته خبرې کولې، ګريچکو او نورو تولو غوږ نيولی ؤ. د غرمې په ډوډۍ تقريباً تول وخت ده د جنګ د وخت خبرې وکړې او د هغه وخت په هکله چي دی په ستالينګراد کي سياسي آمر ؤ. ويې ويل، 'يوه ورځ مونږ له يو شمير بنديانو نه واوريدل چي جرمنان په پلانۍ ورځ د سهار په درې بجې بريد کوي. د هغه ځای مارشال فيصله وکړه چي د جرمنيانو تر بريد وړاندې بايد په هغوي بريد وشي. زه ورته ورغلم او ومې ويل.

«ملګری مارشال ، تاسې خپل برید څه وخت پیل کوئ» ؟ راته ویې ویل چې د ماخستن په نهو بجو . ما ورته وویل ، «ملګری مارشال ، د یو بزګر مشوره اوریدل غواړئ ؟ که تاسې رښتیا غواړئ هغوي ناڅاپه اریان کړئ نو باید لس دقیقې کم دري بجې پرې برید وکړئ . هغه وخت به د دوی ټول پوځ د برید له پاره ځای پرځای وي . هغوی به په خپلو ځایوکی وي او هره ګولۍ به خپل هدف وولي .» مارشال ما ته وکتل او ویې ویل ، «ملګری سیاسي آمره ، دا ډېره د هوښیارۍ نظریه ده . یو څه پکې شته . رښتیاهم دا کار په ګولو ارزي .» لکه څنګه چې ما ویل ، جرمنان هغومره اریان شول. ناڅاپي او اریانوونکی برید په جنګ کی ډېر مهم دی ، خو ددې له پاره چې دا ډېر په ځای او کاري وي ، باید قوي اعصاب ولرئ» .

هغه ما سپښین می خروسچف ونه لید ، خو بیا مو د ماښام په ډوډۍ سره ولیدل . مونږ ناست وو چې ښځه یې نینا راغله . زه ودریدم ، خو خروسچف راته بدبد وکتل . ویې ویل ، 'اوه' 'کینه ! تشریفاتي جنجالو نه راته مه پیدا کوه !' بیا یې د جنګ په هکله خپلې خبرې داسې جاري وساتلې لکه چې هیڅ شی نه وي شوی .

ویې ویل ، 'زما په ژوندکی خوشاله وخت هغه لحظه وه چې زمونږ پوځونه د اودر نه واوښتل او د جرمن خاورې ته ننوتل. ما چې دا خبر واورید په ډېره چټکۍ می هلته ځان ورساوه . زما هلته څه کار نه ؤ خو د جرمن خاورې ته د روسانو ورننوتل زما له پاره د بدلې اخیستلو یو عمل ؤ. زه پوهیږم چې دا د یو بزګر احساس دی ، خو مونږ لا تراوسه بزګران یو . او څوک چې د شوروي بزګرانو او کارګرانو ته په‌کمه سترګه ګوري باید پام وکړي چې زمونږ کارګران هم په اصل کی بزګران دي .

'د ماښامي نه وروسته به زه یو ډېر د زړه پورې شی د روښیم . دا د لوړ بند یو موډل دی چې د ټولا کارګرانو جوړ کړی دی . ته د ټولا په هکله معلومات لري ؟ ما ورته وویل ، نه . تا د تزار ، د ټولا د کارګرانو او وړوې کیسه نه ده اوریدلې ؟ ښه ، یو وخت د جرمني امپراتور غوښتل، د روس تزار ته یو تحفه ولیږي . سنت پترسبرګ ته یو هیئت د یو ډېرکوچني بکس‌سره را ورسید او تزارته یې وړاندې کړ . هغه بکس پرانیت ، خو څه شی یې پکې ونه موند . بکس خالي ښکاریده . بیا یې زړه بین راووړ ، ویې لیدل چې له سپینوزرو جوړه یوه وړه پکې وه . دا ورته ددې له پاره رالیږل شوې وه چې د جرمني د کسب

ګرو مهارت او پوهه ورته وښيي . تزار ډير په غوصه شو . ويې ويل ، «مونږ بايد د دوی ځواب تيار کړو» . د دربار ناظر پيشنهاد وکړ چې «دا بايد د ټولا کارګرانو ته ولېږو چې هغوی څه وايي .» دا کار يې وکړ . څو ورځې وروسته يو بکس راورسيد او د جرمني امپراتورته ولېږل شو . امپراتوربکس بيرته کړ ، زره بين يې را واخيست ، د سپينوززر ورړه يې وليده او خپلو درباريانو ته يې مخ ورواړاوه . ويې ويل ، «اوه ، تزار زمونږ د لوړ والي په منلو سره زمونږ ورړه بيرته راليږلې ده» .خو يو درباري يو قوي زره بين را واخيست او ورړه يې وکتله . چيغه يې کړه ، «اوه ، دې شيطانانو څه کړي دي» . امپراتور ته يې وويل : «د ورړې په پښوکې يې رکابونه اچولي دي» . خروسچف دا کيسه ډيره په خوند وکړه .

زياته يې کړه چې زه لا تراوسه په سياست کې بزګريم . خو د نن ورځې ځيني سياستمداران مسلې ډيرې جنجالي کوي ، ترڅو په دې ډول ځانونه داسې وښيي چې ګوندې دوی د کوم ځانګړي نسل نه دي او ځای يې څوک نه شي نيولای . دا ټول چټيات دي . زه هيڅکله هم خپل نيت له نورونه نه پټوم - خو تکليف دادی چې نور خلک زما په خو له باور نه کوي . په ۱۹۵۶ کال کې بلګانين اوزه برتانيې ته لاړو . ايډن را سره د منځني ختيځ د تيلو په هکله خبرې وکړې . هغه ووېل : «زه غواړم تاسې په دې پوی شئ چې د منځني ختيځ تيل مونږ ته د مرګ اوژوند ارزښت لري . که تيل بند شي ، يا يې د بنديدلو ويره پيدا شي ، مونږ جنګ کوو» . ما ورته وويل ، «صدر اعظم صاحب ، په ياد ولرئ چې منځنی ختيځ شوروي اتحاد ته ډير نژدي پروت دی ، که ته هلته جنګ کول غواړې ، او رښتيا جنګ پيل شي نو مونږ چوپ نه شو پاتې کيدای» . دا به ايډن ته اريانونکې خبره وه چې د هاغې کال په پای کې مو ورته اخطار ورولېږه . په هغه سفر کې يوه ورځ بلګانين د ايډن سره په موټر کې سور ؤ اوزه ورپسې په بل موټر کې د سلوين لوئيډ سره وم . سلوين لوئيډ راته وويل ، «يوې کوچنۍ مرغۍ راته په غوږ کې وويل چې تاسې د مصر سره دوسلو يوه بله معامله هم کړې ده .» ما ورته وويل ، «ما سره دوه کوچنۍ مرغۍ دي ، يوې راته وويل چې تاسې دوسلو يوه معامله د ايران سره کړې ده ، او بلې را ته وويل چې يوه دوسلو معامله مو د ترکيې سره کړې ده» . سلوين لوئيډ پوی شو چې د ده د کوچنۍ مرغۍ کيسې په ماڅه اغيزه ونه کړه ، نو د سفر تر پايه پورې يې خو له بنده کړه .

✻ ✻ ✻

بل سهار مونږ بیا بهر د کشتۍ تختې ته ورووتو ، دا ځل خروسچف د مصر په هکله خبرې پیل کړي . که څه هم ما ځان د ده هرې ممکنې پوښتنې تــه تیار کړی ؤ ، خو زه اعتراف کووم چې د ده لومړۍ پوښتنې ته تیار نه وم . پوښتنه یې وکړه . 'په مصر کی ریګستان څه ډول دی ؟ څومره برخه یې کړۍ'؟ ما ورته وویل چې پــه سلوکې څلور برخې کرو . بیا یې پوښتنــه وکړه ، 'کومــه طریقه په کار اچوئ' ؟ ما ورته په مصر کی دکرنې د طریقو په هکلـه خبره پیل کړه ، خو خروسچف زما خبره غوڅه کړه : 'دا ټول چټیات دي . تاسی خپل وخت ضایع کوئ . پوهیږي تاسې یو بل کار کولای شئ ؟ کیمیاوي کرنـه یې ځواب دی ! تاسی دا څیړلې ده ؟' ما ورته وویل ، نه ، نو بیا یې د یوې تجربې کیسه پیل کړه چې ده په خپلو سترګو لیدلې وه ، د ښیښو لوی لوی لوښي باید ولرئ چې د اوبو ډک وي ، په هغی کی څه کیمیاوي مواد واچوئ ، خاورې ته پکی ضرورت نشتــه . د اوبو خوځیدل د ودې د کار سره مرستــه کوي ، او څو اونۍ وروستــه خپل حاصلات اخلئ . د خروسچف پــه فکر دا تخنیک د نړۍ د ستونځې د اواري لاره وه . ما ورته په ریګستان کی د کرنې ستونځې په ګوته کړې . ده وویل ، تاسو ضرورت نــه لرئ پــه ریګ کی کرنــه وکړئ . 'خپل ریګستان د اوبو د لویو لوښو نه ډک کړئ ! ستا په فکر ناصر په دې پوهیږي'؟ ما ورته وویل ، 'فکر نه کووم'. خروسچف وویل : زه په دې هکله یو راپور او یو فلم لرم . زه به یې هغه ته ولیږم . دا به د لوړ بند نـه تاسی تـه ګټوروي . خپل ټول ریګ د اوبو دلوښو نـه ډک کړی او کیمیاوي مواد پکې واچوئ' ! ما خروسچف تــه وویل مونږ غواړو څمکه لـه ښورې پاکه کړو . ده وویل ، مونږ کرچانوف لرو ، هغه د علومو د اکاډمۍ غړی دی ، د ښورې نه د ځمکې د پاکولو د طریقو تحصیل یې کړی دی . خو دا کار ستاسې له پاره ګټور نه دی . دا ډیر قیمته دی . ښیښې او پلاستیکي د اوبو لوښي تاسې ته ټول هغه څه تیارولی شي چې تاسی ورتــه ضرورت لرئ'. هغه ورځ سهار ټول مونږ د کرنې په خبرو تیر کړ .

د غرمې د ډوډۍ نه وړاندې په څکلو لګیا وو، ما د خروسچف نه پوښتنه وکړه چې د ده پــه ژوند کی مهمې پیښې کومې دي - شخصي پیښې نــه ، بلکی هغه پیښې چې حالاتوکی یې پوره بدلون راوستی وي . لږ چوپ شو ، بیا یې راته پنځه مثالونه وویل - لومړی نړیوال جنګ او په شوروي ټولنه د هغی اغیزې ، شوروي اتحاد د زروي طاقت خاوند کیدل ، د جنګ نــه امکان ، ملي ازادي

په اریان شول چي عربان له دوي نه څه غواړي . آیا دوي یواځې د اویدیځ د مقابلې له پاره دي؟ چي عربان به پوه شول د خطر وخت تیر شو، نو شوروي دوستان باید په یخچال کي وساتل شي ! د ۱۹۷۳ کال د خندا وړماتې نه ډیر وړاندي شوریانو هڅه کړي وه د منځني ختیځ موقعیت او هلته خپل رول ښه وڅیړي . د خپلو د وکتورینو په رڼا کي د هغو ټولو وسیلو په کار اچولو سره چي یې درلودي ، دوي هڅه وکړه منځني ختیځ په خپل صحیح نظریاتي او تاریخي چوکاټ کي وګوري ، ترڅو دوي په دي بریالي شي هلته داسي سیاستونه پیاده کړي چي په نظریاتي بنسټ سم او په عمل کي بریالي وي .

عربي مشرانو هم خپله څېړنه کړي وه . هغوي همدومره خوښمن وو چي شوروي اتحاد هغو مره و پیژني لکه څومره چي شوروي د عربو د پیژندلو لیوال ؤ . دوی پوه شول چي د دغو نویومړموزو ملکرو سره د کار او عمل د اړیکو ټینګولو له پاره څومره زیار وګالي . دوي هم د دوستۍ د ټینګولو په فکر کي له شورویانونه کم نه وو ، هغوي د امکان تر اندازي هڅه کوله د خولې جنګ او نور جنجالونه را پیدا نه شي .

❋ ❋ ❋

هیڅ یو عربي مشر هم له ناصر نه نژدي او اوږدي اړیکي له شوروي سره نه درلودي هغه شورویان په هر حالت او هر ډول شرایطو کي لیدلي وو . دی د ستالین او د سوړ جنګ په زمانه کي قدرت ته ورسید ، او د برژنف او دیتانت په زمانه کي وفات شو . د دغو دوو وختونو ترمنځ د خوشالۍ او غم وختونه راغلي دي ، جنګ او سوله ، خوشالۍ او نا امیدۍ پیښي شوي دي . هغه د شوروي مشرانو سره په شخصي توګه هم اړیکي درلودلي ، نه یواځې د کریملین د مشرانو سره بلکي د نیپوروزني ، سکاچکوف ، نویکوف او اوستینوف غوندي تکنوکراتانو او د مالینوفسکي ، ګریچکو ، ګورشیکوف ، پاتسکي ، سوکولوفسکي ، روکوسوفسکي ، یعقوبوف ، روډ ینکو او زا خاروف غوندي مارشالانو او سمندري جنرالانو سره یې هم اشنایي درلوده .

د ناصر د پراخي او اوږدي تجربې له امله چي د روس د مشرانو سره یې درلوده نو د دریمې نړۍ ډیر مشران به مخکي له دینه چي د لومړي ځل له پاره به ئې مسکو ته سفر کاوه . یو ځل دده مشورې ته راتلل . د عربانو په څیر ، داسي خلک لکه د سوډان نمیري او د الجزایر بن بیلا ، دا د افریقي د نویو آزادو شویو هیوادونو مشران وو ، د ګانا د نیکروما ، د کانګولومبا ، د مالي سودیبوکیتا په ټاکلي موضوع باندي د ناصر مشورې ډیرې ګټورې بللې دي .

ښئونکي غورځنګونه ، او په ۱۹۵۷ کال کې د خلا د زماني سهار چې سپوتنیک او ګاګارین وختل .

'ستالین د روس پر خلکو باندي د جنګ په اغیزه پوي نه شو ، د جنګ نه وروسته دوي بل ډول ژوند غوښت . دوی د مصرف شیان غوښتل . هغو خلکو ته چې جنګ یې کړی ؤ باید د دی بدله ورکړل شوې وای . آن چې پانګوال لا د بدلې مستحق وو . بیوین چې د چرچل سره یو ځای کار کاوه هغه په دې پوه شو چې کارګران او د جنګ نه را ستنیدونکي پوځیان د جنګ نه وروسته د چرچل په څیر خلکو پسې نه ځي . هغوی به د ټولنیز نظم په بدلون ټینګار کوي . نو هغه په دې خبره کلک ؤ چې چرچل باید د بیوریج د پلان ملاتړ وکړي . دا په جنګ کې د میلیونونو کارګرانو د برخې اخیستلو نتیجه وه . بیوین یواځې سړی نه ؤ چې په دې پوی شو .

'مونږ چې زروي طاقت شو د امریکې انحصار مومات کړ . که مونږ دا کارنه وای کړی د امریکې د خوښې سولې سره به مخامخ شوي وای . دا به د زغملو نه وای ، ځکه د دې مطلب به دا وای چې ټولې نړۍ به د یو طاقت ترلاس لاندې ژوند کولای'.

بیا خروسچف د کلتوري چارو په هکله هم څه خبرې وکړې . ویې ویل ، 'زه د لوڅو تبلیغاتو په ښه د ادبیاتو په کار اچول نه خوښوم ، خو زه نه غواړم چې یو روښان فکر دې د پانګوالي نظریاتو پیخې وکړي . دې ته خلک وچ فن وایي - زه د دې له پاره وخت نه لرم . له بده مرغه زمونږ ځیني پیاوړي روښان فکران په دې ډول خپل روح په امپریالیستانو پلوري او بیا خپل ځانو نه پوره پلوري - لکه پاسترناک چې وکړه'.

د ماښامي نه وروسته مونږ خپلو کوټو ته لاړو ، لږه شیبه وروسته د خروسچف سکرتر زما کوټې ته راغئ چې غواړي دې . زه ورغلم ، دی د خپلې ناستې په کوټه کې ؤ . راته ویې ویل ، 'ښه : ما ویل چې په دې سفر کې به ناصر له ما نه څه غواړي' . ما ورته وویل چې مونږ د دوه سوو میلونو روبلو یو نوی پور غواړو . څه شی ؟ راپورته شو . ما ورته بیا وویل ، 'زمونږ د نوي صنعتي پرمختیایي پلان د پاره دوه سوه میلونه روبله' . خروسچف خپل ترجمان ته څه وویل، خو هغه ترجمه نه کړه . ما پوښتنه وکړه چې څه یې وویل . 'صبر ، صبر' ، خروسچف وویل . لږه شیبه وروسته د کشتۍ کپتان راغئ ، سلامي یې ووهله . خروسچف ورته یو څه وویل ، ما بیا له ترجمان نه د خبرو ترجمه

وغوښتله . را ته ويې ويل ، 'ملګرى واېې څنګه چې ستاسې غوښتنې يېخې دکېدو نه دي ، کپتان ته يې وويل چې بېرته يلتاته وکرځي' . خروسچف ما تـه وران وکتل . ويې ويل ، 'اوس رښتيا وايه ستا وروستۍ خبره څه ده'؟ ما ورته وويل ، 'چېرمين صاحب ، ما تـه د مذاکراتو واک نـه دى را کړل شوى . زه يواځې هغه څه تکراروم چې ما ته ويل شوي دي' . خروسچف وويل ، 'مونږ تاسى ته کافي پور درکړى دى . د لوړ بند لوښي او دويم پړاو ، او د صنعتي کېدلو له پاره يو لوى پور . دا ډېره زياته ده . سل ميلونه روبله بالکل بس دي' . ما ورته وويل ، 'چېرمين صاحب ، مهرباني وکړئ کپتان ته بېرته غږ کړئ' هغه پوښتنه وکړه ، 'ولې'؟ ما ورته وويل چې 'زه يوې کوچنۍ کشتۍ ته ضرورت لرم ، چې بېرته يلتاته لاړشم ، څکه که زه د دوه سوه ميلونو روبلو پرته لاړشم ، ناصر به له ما سره د هرکار د کولو نه ډډه وکړي' . خروسچف په ناخوښۍ سره وويل ، 'ډېره ښه ، ګورو به' .

ادزوبي راننوت او بيا ټول رستورانټ تـه لاړو . ويې ويل ، 'برانډي او وډکاشتبه ، او وسکى هم شتـه که غواړئ' . د کشتۍ يو منصبدار تـه يې ګوتـه ونيوه ، دا زمونږ ملګرى ، د کشتۍ سياسي آمر په کشتۍ کى د خوراکي شيانو مسؤل دى . مونږ داسى درانه ميلمانه لرو په کشتۍ کى د ټولو مسافرو له پاره هر څه پريمانه دي' . منصبدار يوې تکمې ته ګوتـه وروړه ، پـه الماړۍ کى هر ډول د څکلو شيان را ښکاره شول چې سړى فکر کوي . ادزوبي وويل ، 'تاسى بايد مصر ته ځانونـه تيار کړئ . هر ځاى چې ميلمستيا وي ، د هر شي سرشتـه به کوي' .



دا بلـه ورځ زمونږ د سفر څلورمـه وه ، او ارمينيا د مصر غاړې تـه را نژدې شوې وه . خروسچف او ما هغه سهار د عربو د يووالي په هکله اوږدې خبرې کړې وې . هغـه ټينګار کاوه چې پـه نړۍ کې رښتينى يووالى يواځې د کارګرانو يو والى دى . بيا ما يوه غلطي وکړه چې منع کړل شوې موضوع مې راپورتـه کړه . د خولې نـه مې ووواتـه ، 'چېرمين صاحب ، د کارګرانو يووالى بس نه دى . تاسى ځان او چين ته وګورئ . په دواړو هيوادونو کى پروليتاريا حکومت کوي ، خو تاسى خپلو منځو کى جوړنه ياستئ ، او زما پـه فکر ستاسى ورانى هم ناسيوناليستي احساسات وي' . خروسچف وويل ، 'اوه ، دا ډېره جنجالي مسئلـه ده . ډېره ښـه ، چېرمين صاحب ، خو تا د ‹لوى وطني جنګ› خبرې

وکړی ، او ودې ویل چی په لوړیو کی ګوند بریالی نه ؤ خلکو لوړی نوښت په لاره واچاوه او ګوند تـه یې د یووالي او قوت اخیستلو لاره آواره کړه' .
خروسچف وویل ، 'تـه سم نـه یې پوه شوی . خلک بیلـه تنظیم نـه هیڅ هم نـه شي کولای' .

بیا خروسچف پوښتنې پیل کړې تاسې ولې کمونیستـان بندیانوئ ، او دی دا خبره له ناصر سره څنګه راهورته کړي . ما ورته وویل چی 'ټول کمونستان اوس لـه بنده آزاد شوي دي' . بیا یې رانـه د بیلا بیلو موضوعګانو پـه هکلـه پوښتنې وکړې ـ اسلام ، په ټولنه کی د ملایانو کار ، د قاهرې د نفوسو اندازه ، مصر او نور عربي هیوادونـه ، چی ټول پـه یوه ژبـه خبرې کوي ، کـه نـه ، د عرب لیګ کار څه دی ، قاسم نه څه غلطی شوي دي ، او داسې نورې .

بل سهـار مونـږ رسیدونکي وو ، دا ماسپښین د کشتۍ پـه دفتر کې ما خپلې کوچنۍ راډیوکی د قاهرې خبرونو ته غوږ نیولی ؤ . هره خبرونه کی د خروسچف د را رسیدلو د تیاري خبرونه خپریدل ، ما چې خبرونـه اوریدل خروسچف راغئ او پوښتنه یې را نه وکـړه چی څه اوري . ما ورته په لنډیـز سره وویل . بیا ده وویل : 'یو شی دی ، خو نـه پوهیږم تا تـه یې ووایم که نـه . خو زه یو ریښتینی سړي یم ـ زه خبر شوی یم چی ستاسی حکومت لګیادی سرکونو او کوڅو باندي زما ستړی مشي تـه د خلـکو د راوتلـو مخنیوی کوي'. ما وویل ، 'د دې نه بـه لوي دروغ بیخي څوک پیدا نه کړای شي'. ده ګیله وکړه چی یاره خو ، داسی ښکاري چی دوی نه غواړي زما ښه هرکلی وشي'. ما ورته وویل ، یوه خبره بـه درته وکړم ، پـه ختیځ کی چی څوک د چا میلمه شي ، خلک چی څرنګه سلوک د میلمه سره وکړي ، دا پـه حقیقت کی د کور بـه سره سلوک دی . که د میلمه سوړ هرکلی وشي ، دا د کوربه سپکاوی دی ، نه د میلمه . هغه چا چی تا تـه دا خبره کړې ده ، د ختیځ د ټولنې نه بالکل خبر نه دی'. خروسچف وویل ، 'ښه ، وبه ګورو' .

په کشتۍ کی زمونږ په وروستي ماښامي کی خروسچف د یو لوی برانډي په راړولو پیل وکړ وروسته یې بل راواړاوه . راډا پرې اعتراض وکـړ : 'پلاره ، دا بس دی'. خروسچف وویل ، 'نیست ، نیست ، دا زما وروستی برانډي دی . سبا به زه مسلمان یم ، لکه ناصر' .

نن شپه مونږ ټول وختي ویده شو . سهار چی ما جامې بدلولې ، خروسچف

خپل ترجمان راولیږه چې هلته راشه . هغه ما ته پـه ځیروکتل ، ویې ویل ، 'ما درته پرون وویل چې ستاسې حکومت زما د هرکلي د کمزوري کولو هڅه کوي، اوس زه ددې خبرې ثبـوت لـرم . زما هرکلي تـه په سکندریه کې یواځې عامر راځي ـ ناصر به هلته نه وي . تاسې رسمي تشریفات کوئ ، ځکه ناصر د دولت رئیس دی ، او زه صدراعظم یم ! ما ورته وویل، 'دا نه.شي کیدي ، دا غلطه ده '. خروسچف ټینګار وکړ چې ما ته همداسې ویل شوي دي .

لږه شیبـه وروسته د مصر د اوبو پـه حد کې یوه کشتۍ زمونږ لیدو تـه را نـژدې شوه ، مارشال عامر پکې سپور ؤ . ناصر په بنـدر کې ولاړ ؤ . بـدګـوماني اواره شوه ، او خروسچف خوشاله شو . ټولو نه یې پوښتنه وکړه چې سفر څنګه ؤ ، پـه تیره یې بیا د دري ژورنالیستانو ادزوبي ، ساتیاکوف او مانـه ، چې ده مونږ 'اوږد پوزي سرزوري' بللو .

مونږ چې را ورسیدو هرکلی بې‌انـدازې ښه ؤ . دا یو ځانګړی هرکلی ؤ ـ د ناصر وقار په خپل عالي مقام کې ؤ ، او خروسچف اوس یوه افسانوي څیره وه ، نه یواځې په مصر کې . مونږ ټول په ریل کې قاهرې ته لاړو ، او بیا د موټـرو په کتار کې د قبې مانۍ تـه چې د خروسچف د استوګنې ځاي ټاکل شوی ؤ . چې هلته ورسیدو ، ما ترې پوښتنه وکـړه . 'ښه نو ، څـه فکرکوئ ، څنګه ؤ ؟، پـه سترګو کې یې اوښکې راغـلې . د ده په ژوند کې کله داسې هرکلی نـه ؤ شوی لکه د مصر خلـکو چې وکړ .



د جشنونو او مذاکراتـو د یو ډک پروګـرام ترتیبات نیـول شوي وو او یو شمیر ډیر مهم میلمانه را غوښتل شوي وو چې د اسوان پـه مراسمو کې برخه واخلي ، پـه دې کې د عراق جمهور رئیس عارف او د الجزایر بن بیلا هم وو ، دوی د داسې دوو هیوادونـو نمایندګي کوله چې د مصر سره یې په ګـډه د عربي یووالي مثلث جوړکړی ؤ .

د اسوان مراسم د خروسچف له پاره یوه ارزښتنا که تجربه وه ، خو د ډیرې ګرمۍ له امله ورتـه سترې کوونکې تمامه شوه . دا د مې میاشت وه او خروسچف د دې ځای د دغه وخت ګرمۍ تـه د ټینګیدونه ؤ . ناصر لنـډې خبرې وکړې ، بن بیلا هم لږې خـبرې وکـړې . د عارف وار چـې راغئ ، د قرآن شریف ډیـر آیتونـه یې وویل ، د خلکو له خوا یې تـود هرکلی وشو . ورپسې د خروسچف

وار ؤ یو شمیر مهم شیان یې وویل ، دا یې هم اعلان کړه چې سیاسي بیرو فیصله کړې ده ناصر او عامر ته د شوروي اتحاد د قهرمانۍ لقب او د لینن نشان ورکړي (مصر یې ښکاره الف درجې ته پورته کړ ) خو هغه باید دا کرښه په کرښه لوستی وای ځو سم په عربي ترجمه شي . البته دا په ډیرو ژباتو چک چکو او احساساتو سره بدرګه شو .

بیرته چې هوټل ته راغلو خروسچف بیا زمانه غوښتنه وکړه چې ورشم - هغه له مانه مننه وکړه چې د ده او ناصر ترمنځ منځګړی وم او په ارمینیا کې را سره ده ښه وخت تیر کړی ؤ . دی په هوټل کې په یو نیکرکی لوڅ ناست ؤ ، کوټه په ایرکنډیشن ښه یخه وه ، خو خروسچف پکې سخت خولې ؤ . ما نه یې پوښتنه وکړه : 'بیا به کله ناصر ما مجبور وي د ده د وزې سره وګورم ؟' ما پوښتنه وکړه ، 'کومه وزه ؟' خروسچف وویل ، 'عارف'. 'وګوره ، عارف - عارف - عارف !' د مصر یو اخبار ورسره ؤ ، ما ته یې راکړ . په دې کې دعارف یو عکس ؤ چې د ده په فکر د وزې په څیر ښکاریده .

دا بله ورځ ددمې وه ، خو په دې ورځ د عارف او خروسچف د خولې خولد بد شو ، دا مې په لومړي فصل کې بیان کړه .

د خروسچف سفر په سکندریه کې څو ورځې وروسته پای ته ورسید . دی او د ده ملګري د فاروق پاشا د اوړي په دیره ځای د راسل تین په مانۍ کې اوسیدل ، او ناصر څوکیلومتره لیرې د معموره په د مه ځای کې ؤ . یوه ورځ ناصر غوښتل خروسچف د راسل تین تر مانۍ پورې بدرګه کړي خو خروسچف وویل ځان مه په تکلیف کوئ . ناصر وویل ، 'ډیره ښه ، تا سره به خپل مرستیال ولیږم او زه به لیره د مه وکړم'. خروسچف پوښتنه وکړه ، 'کوم یو ؟' ناصر وویل ، 'ذکریا محی الدین'. خروسچف وویل ، 'آه ، دا هغه سړی دی چې کمونستان بندیانوي . ته یې ما سره سمبال ولیږه چې تولې پښتۍ یې ورماتې کړم' .

په معموره کې هغه ورځ د غرمې د ډوډۍ په وخت کې خروسچف ډیر خوشاله ښکاریده ، خو خپله هغه احساساتي خوا یې هم وښوده . په کافي او خوړو سره خبرې اترې کمې شوې ، او خلکوهغا خوا دیخوا بیلا بیلې خبرې کولې . خروسچف ناځاپه راپورته شو : 'تاسي چوپ شئ ! ډیره بې مزې غونډه ده ! موسیقي نشته ؟ تاسي بیخي نه پوهیږئ څنګه خپل ساعت تیر کړئ'. ګرومیکو ته یې مخ ورواړاوه . ویې ویل ، ته ساز کوه ، یو قاب یې ورکړ او د تنبورې په شان یې ټنګاوه . بیا یې ګریچکو ته مخ کړ : 'مارشاله ، ته ګډیږه' ! ګرومیکو قاب

واخیست ، خو له يي چينگه وه ، ګرېچکو اریان وکتل . بیا ناصر وويل ، 'راځئ تول بهر کافي وڅکو'.

د مي په ۲۵ مه خروسچف له مصر نـه روان شو . د هغه د تګ نـه یوه ورځ وړانـدې ناصر اعلان وکـړ چې شوروي اتحـاد مصر تـه د صنعتي پـروژو د جوړولـو د پاره د دوه سوه پنځوس میلونو روبلو اوږدې مودې پور ورکـړ . دې پور ، او ناصر او عامر ته مدالونو وښودله چې مونږ بیرتـه الف درجې تـه لاړو ، نو مونږ پوره دلایل درلودل چې خوشاله اوسو .

خروسچف د قاهرې د هوایي ډګر نه په الوتکه کې تئ ، د روانیدو نه لـږ وړاندې را تـه ادزوبـي وويل چې خسرمې له تا نه په هغه څـه چې تالیکلي دي خپه دی . زه اریان شوم ، څکه خروسچف تل زما سره په اړیکوکی ډیر مهربانه ښکاریده . ما تری پوښتنه وکړه ، 'څه خبره ده ؟' د هغه په هکله مي هر څه ډیر دوستانـه لیکلي دي' . ادزوبـي وويل ، 'هغه به يي درتـه ووايي' . نو زه د قبې مانۍ کې د خروسچف کوټې ته د هغه د مخه ښې له پاره ورغلم . ورته ومي ويل چې دا سفر زما له پاره ډیر خونـد ور ؤ . دا یوه تاریخي پیښه وه ، او زه پـه دې هکله پوره یوکتـاب لیکلی شم . دا زمـا له پاره یو ځانګړی امتیـاز ؤ چې ما سره ستاسې د کورنۍ د غړي په توګه سلوک وشو . خو الکسی را ته ووېل چې تاسې زما نـه په څـه خبره خپـه یاستئ' . خروسچف وويل ، 'هو دا هغه څـه دي چې تالیکلی زه بزګریم' . 'خو چیرمین صاحب ، تاسې د خپلې بزګرۍ په هکله تل په ډیـر افتخار خبرې کوئ !' 'خو تالیکلې چې زه داسې یو بزګریم لکه د دوستوفسکې پـه کیسه کې چې دی ـ ولې دې د تولستـوي د کیسې د بزګـر پـه نامـه نـه یم یاد کړئ ؟'

# د کوترو تاخونه او نوی مشرتوب

هغه وخت چې د شوروي اتحاد سره د مصر اړیکې ښې وې ، او داسې ښکاریده چې مصر هغه درجه ترلاسه کړي ده چې غوښتله یې ، د ۱۹٦٤ کال د اکتوبر په ۱۵ مه له کاره د خروسچف دلاس لنډیدلو خبر خپور شو . د هر بل هیواد په پرتله په مصر کې د شوروي د مشر د له منځه تللو خبر ډیر وارخطا کونکی ؤ . د مصر په هر کار کې هغه ځانګړی دریځ درلود . دا هغه سړی ؤ چې د سویز د شخړې په وخت کې یې په ځانګړې توګه لویدیځ وویراوه ، په دې وروستیو وختو کې ده دلته دوه اونۍ تیرې کړي ، د مصر خلکو به د ده څیره هره ورځ په تلویزون او اخبارونو کې لیدله . دوی ده ته د یو دوست او مرستندوی په سترګه کتل ، او د مسکو نه د یوې لنډې اعلامیې په خپرولو سره له کاره د ده لیرې کیدلو دوی په اندیښنه کې واچول .

سمدلاسه یوه ستونځه را پیدا شوه . فیلډ مارشال عبدالحکیم عامر د مسکو د کلنیو مراسمو له پاره چې د نومبر په ۷ مه نیته کیدل ، په رسمي ډول بلل شوی ؤ ، اوس دې ته یواځې دري اونۍ وخت پاتې ؤ . په دې ډیرې خبرې کیدې چې دی لاړشي ، که نه ، خو وروستۍ فیصله دا شوه چې باید لاړشي او نوي حالات په خپلو سترګو له نژدې نه وګوري ، ناصر بیا له ما نه غوښتنه وکړه چې ور سره لاړشم .

مسکو تـه په رسیدو سره د داسې جنجالونو سره مخ شوم چې هیڅ داسې یوه لاره می نه شوه پیدا کولای ترڅو د نویو حالاتو نه ځان خبر کړم . لاړم چې خپل پخوانی دوست د پراودا مدیر پاول ساتیوکوف وګورم ، خو هغه می پیدا نه شو کړای - یو نوی مدیر ، الکسي رومیانتسیف ، اوس د هغه په چوکۍ ناست ؤ . ما د خپلو ترجمانانو او منځګړو مامورینو سره خبرې وکړې ، خو څه کار تري ونه شو . د مثال په توګه ما د خپل پوځي منځګړی منصبدار نه پوښتنه وکړه ، 'د خروسچف د لیرې کولو په هکله څه فکر کوئ' ؟ ځواب یې

دا ؤ ، 'په پرواداکې خبرونه لولم . ګوند چې ووايي له کاره د ده ليري کول ضرور ؤ ، دا زما له پاره بس دي' . نور يې څه ونه ويل .



په نوي مشر تابه کې برژنف ، کوسيګين او پودګورني وو ، ميکويان يې شاته ولاړ ؤ . رښتيا داسې انديښنه وه چې دوی به د مصر سره څه کوي ، د هغو ټولو انتقادونو په لړکې چې د خروسچف د ليري کولو سبب شو ، د ده د منځنی ختيځ سياست په منځ کې ياديده . داسې ويل کيدل د ختيځې اروپا ځينې هيوادونه په دې ډير ناراضه دي چې مصر ته د مرستو اندازه بيخي زياته ده ، او په مقابل کې په هغوی هيڅ ډول داسې شرايط نه دي ايښودل شوي چې د خپلو کمونيستانو سره ښه سلوک وکړي . ناصر او عامر ته د لوړو مدالونو او القابو ورکولو هم اعتراضو نه راپورته کړي وو . په دې هکله د مصر په انديښنه باندې کريملين ښه پوهيده ، د برژنف سره په لومړۍ کتنه‌کې هغه دوی ته ډاډ ورکړ . هغه وويل ، 'څه چې وشول ، هغه له تاسې سره او يا د عربي نړۍ په وړاندې زمونږ له دريځ سره هيڅ ډول اړيکه نه لري . ګوند د اشخاصو تابع نه دی بلکې ډله يزه اراده تمثيلوي . زمونږ اړيکې له تاسې سره د ګوند د اوږدې مودې د دريځ پر بنسټ ولاړې دي ، دا د خروسچف فيصله نه ده'. دا هغه کرښه ده چې خروسچف د شيپيلوف ترليري کولو وروسته پخپله را ښکودې وه .

خو دا ډاډ په ټوله معنی د منلو وړنه ؤ . خروسچف يو پيژندل شوی سړی ؤ ، نوی مشران لاچا نه پيژانده . برسيره پردې د مصر هيئت د پخوا په شان د نومبر په مراسموکې د برخې اخيستلو له پاره د يو شمير موضوعګانو سره مسکو ته تللی ؤ چې پرې خبرې وشي او څه غوښتنې يې تر سره شي ، خو دوی يې له خوابه بيرته راغلل . د مصر د هيئت سره په يو وخت کې مسکو ته د چاون لای په مشر توب يو چينايي هيئت هم تللی ؤ ، هغوی هم د مصر په څير د نويو حالاتو نه ځانونه خبرول غوښتل ، او دې دواړو هيئتونو سره خپلې نتيجې پر تله کړې وې . اصلاً چينايان د خروسچف په ليري کولو خوشاله وو ، خو مصريانو فکر کاوه نوی مشر توب به په پاليسۍ کې څه بدلون راولي ، چينايان په دې فکر وو چې پخوانۍ پاليسي به اوس هم روانه وي .

کريملين د مصر په نا ارامۍ پوهيده نو د ۱۹٦٤ کال د دسمبر د ۲۳ مې

نیتي د بریالیتوب په مراسمو کی یې د برخې اخیستلو له پاره الکزاندر شیلیپین قاهرې ته راولیږه . دا ډیر لوی جشن نه ؤ او یواځې په پورت سعید کی څه مراسم کیدل ، خو شیلیپین ځکه راولیږل شو چی دی خروسچف ته ډیر نژدي سړی ؤ. د را رسیدو سره سم یې دا خبره وکړه چی نوي مشران د نومبر په مراسمو کی ډیر ناوزګاره وو ، ډیر نوي خلک یې د لومړي ځل له پاره ولیدل ، د نویو مسلو سره مخامخ شول ـ هغوی ته پوره وخت په لاس ورنه رغئ هغو ټولو غوښتنو ته ځواب ووایي چی له دوی وشوی . البته ده د ځانه سره د مصر د ځینو غوښتنو ځوابونه راوړي وو چی تر یوې اندازې خوشاله کوونکي وو . هغه ډیر وخت په دې تیر کړ او ټینګار یې کاوه چی څه بدل شوي نه دي .



د مسکو د لیوالتیا نه کله کله داسي ښکاریده چی د سیمه یزو کمونستي ګوندونو حالت باید ښه شي ، دوی هیڅکله هم هغه څه ته تیار نه وو چی د مصر کمونست ګوند ته ورپیښ شول . د ۱۹٦٥ کال د اپریل په ۲۰ مه د مصر کمونیست ګوند ځان ړنګ اعلان کړ. هغه اعلامیه چی د دوی دا پریکړه پکی خپره شوه په دی ارزي چی کټ مټ دلته را نقل شي :

د مصر د کمونیست ګوند د سر تا سري مرکزي کمیټې پریکړه :

په ګوند کی د دوو میاشتو پرله پسې خبرو اترو په نتیجه کی چی د مصر د سوسیالیستانو سره د یو ځای کیدو په هکله روانې وې ، مرکزي کمیټې د رایو په اتفاق سره اعلان ، او لویې غونډې د رایو په اکثریت سره تصویب کړه ، د مرکزي کمیټې راپور وخیړل شو ، سیمه یزې غونډې وشوې ، خانګاني او ډله یزې خبرې وشوې ، د مرکزي غونډې نه په راپورته شووتکو د ګوند ټولو غړیو خپل بیلا بیل نظریات څرګند کړل ، څرګنده شوه چی د غړیو اکثریت د مرکزي کمیټې ورالدې شوې پریکړه منلې ده .

په دې ډول مرکزي کمیټې د ګوند لویه غونډه را وغوښتله چی پکی دولسوالیو نمایندګانو ، د سیمه یزو ارګانونو استازو او د خلکو په منځ کی سیاسي فعالینو برخه واخیستله . په دی لویه غونډه کی د روښان فکري کار په ټولو ارخونو په هره سویه خبرې وشوې ، ګوند د رایو په اتفاق دوه لاندینۍ پریکړې تصویب کړې :

۱ - د مصر د کمونیست گوند مستقل شته والی له منځه ولاړ ، ټولو غړیو ته لارښونه کیږي چې په ځانځاني توګه عربي سوسیالیست اتحاد ته د غړیتوب غوښتنلیکونه ورکړي او د داسې یو متحد سوسیالیست گوند دجوړولو د پاره مبارزه وکړي چې د هیواد ټول انقلابي ځواکونه په خپله غیږه کې ونیسي .

۲ - د مرکزي کمیټې له خوا وړاندې شوی رپوټ د رایو په اتفاق سره تصویب شو ، او لویې غونډې موافقه وکړه چې دا پریکړې دې دکمونیست گوند ټولو مسؤلو پوړونو ته ابلاغ شي .

د مصر د کمونست گوند مرکزي کمیټې د غړیو لاسلیکونه .

دغه د بې خونده کلیمونه ډک رپوټ ته د لفاظۍ یو عنوان ورکړل شوی ؤ :
"د جمال عبدالناصر تر مشرۍ لاندې د ټولـو سوسیالیستي ځواکونو نه جوړ یو پراخ ، منظم او د خلکو د مترقي او انقلابي غورځنګ متحد گوند" .

د دې ډیر بنه او ناڅاپي تصمیم اصلي علت څه ؤ ؟ په څرګنده توګه د مصر نه د خروشچف اوړدې کتنې د رژیم د سوسیالیستي قوانینو تصویب ، د عربي سوسیالیستي اتحاد پیدایښت او د واکمنۍ په کدرکې د ننه د دفاعي هستې جوړښت د مصر په کمونیستانو باندې ډیره اغیزه کړې وه . البته هغوی د داسې ملي جبهو د جوړولو نه چې ټول مترقي ځواکونه سره رانټول کړای شي ، د مسکو په ملاتړ خبر وو . خو دوي په دې هم پوهیدل چې د گوند په توګه دوی په یواځې توګه بریالي نه وو . دوی نه داسې څه شي نه ؤ پاتې چې ارمان وربسې وکړي ، یواځې د دننیو شخړو یو تاریخ ، بې اتفاقي او غلطې پریکړې . د دوی د گوند په اوږو باندې یو زیات شمیر یهودان او بهرني بار وو ، دوی په خپلو ستونځو بریالي کیدای نه شول ، د دغو جنجالونو د اواري یواځې لاره دا وه چې په تیرو باندې کرښه را کاږي او له نوي نه کار پیل کړي . دوی اوس په خلکو کې د ناصر د محبوبیت نه ښه خبر وو . په دې کې شک نشته چې دوی په دغه لومړي کتار کې ځای نیولو پسې هڅه کوله ، ترڅو په عربي سوسیالیستي اتحاد کې ځانته یو ټینګ او مهم ځای پیدا کړي .

ما خپله په دې کارکړی ؤ چې دوي ته یوه داسې د منلو وړښه ورکړم ترڅو د خپل نظر تکي خلکو ته ووبلی شي . الاهرام د نظریاتو ورکولو له پاره یو ځانګړی مغ درلود ، په دې کې هر چا خپل نظر بیانولی شو . د دې مخ

البته بیا وروسته ناصر و لیدل چي چینو یې له روس سره په اړیکوکي ستونځې پیداکړي ، د لویدیځ او ختیځ ترمنځ په اړیکوکي انډول . د خپلو خلکو سره ، یادګاوندیو هیوادونو سره ، کله به چي هغه ولیدل دغه راکښن کیدونکي رسۍ شلیږي ، یا مشر د ناوړه ناکامۍ سره مخ دي ، دا به یې حس کړه چي هغه د سختي لارې نیول زده کړي دي ، چي بیله تیتو یا نهرو نه د بل چا سره مشوره او خبري نه شي کیدي ، داسي لاري باید ولټولي شي چي دده د تجربو له نتیجي او میوي نه نور خلک ګټه واخلی .

د ۱۹٦٤ کال د مي د ۱۸ مي په مابنام د ناصر په فکر کي دا خبره راغله چه د شورویانو سره د اړیکو د ساتلو د سلوک او طریقو یو لیکلی شکل برابر کړي . تیرو شپږو ورځو ډیر تاریخي اهمیت درلود . د لوړ بند د جوړیدو لومړی پړاو پوره شوي ؤ ، د نیل د سیند او به راګرځیدلی وي ، دا هغه وخت ؤ چي اسوان ته به په زرګونو مصریان د خوشالۍ او ساعت تیري له پاره راتلل ، او هم به دلته د بهرنیو درنو میلمنو غونډي کیدلی . په دي کي د عراق جمهور رئیس عبدالسلام عارف ، د یمن جمهور رئیس سلال ، د الجزایر جمهور رئیس بن بیلا راتلل . خو بیله شکه په ټولو کي مهم اوځلند ستوری د شوروي اتحاد صدر اعظم او د کمونست ګوند د مرکزي کمیټي عمومي منشي ، نیکیتا خروسچف ؤ ، چي یو عربي هیواد او د افریقي لوئي وچي ته په خپل لومړنی بهرني سفر راغي . دا د لوړبند د پیل کیدو مراسم وو چي د شوروي مشر یې مصر ته راووست ، او اوس مراسم د شوروي او عربو د مړستو په میله بدل شول . لوړبند یو داسي لوي انجنیري شاهکار ؤ چي تردي وخته په افریقاکي نه ؤ لیدل شوي . وروسته له دي چي لویدیځ دلته هڅي خوځاته لاس او پښې واچول او ناکام شو ، روسانو له دغي خالیګاه نه ګټه پورته کړه ، او د خپلو پیسو او پوهي په مرسته یې نوي هرم جوړ کړ چي د نیل د سیند او به یې راوګرځولی . او ډیره ځمکه یې د کرنی له پاره تر اوبولاندي کړه ، زښته ډیره بریښنانی تولید کړه ، او په مصر کي یې د بزګرانو او کارګرانو په ژوند کي انقلابي بدلون راووست .

وروسته له دي چي د غبرګولي په سخته ګرمۍ کي د اسوان د بند د پیل کیدو مراسم سرته ورسیدل ، ناصر داسي پلان درلود ، څو ورځي تفریح وکړي ناکل شوي وه ټولی میلمانه د سره سمندرکي په غاړه بیرینس ته لاړ شي ، هلته د هغوي د چکر له پاره حوریي رسمي کښتۍ لنګر اچولی ؤ ، او د کبانو په او بوکي ورته د چکر وهلو پروګرام برابر کړاي شوي ؤ .

یو زیات شمیر نظر ورکوونکي کمونیستان وو ، او طبعاً دې کار ډیر انتقادونه را پورته کول . زما په فکر دا ضرور وه چې په یو شکل باید د کمونیستانو په نظریاتو باندې هم خلك خبر شي ، او په دې ډول بیا التعلیه خپرونه راووته . ما ته داسې معلومیده چې کله چیرې مونږ د نوي اساسي قانون په رڼا کې انتخابات کوو ، افراطي چپیان هم د نورو ټولو سیاسي ګوندونو برابر حق لري خپل نظریات خلکو ته ورسوي اوځان ته معلومه کړي چې څومره خلك د دوی ملاتړ کوي .

خو د کمونیست ګوند دغې پریکړې چې ټول غړي یې باید عربي سوسیالیستي اتحاد ته د غړیتوب غوښتنلیکونه ورکړي یو څه ستونځې را پیدا کړې . هیڅوك په دې خوشاله نه ؤ چې دوی دې د خلکو منځ ته ورننوځي ، په نتیجه کې د دوی غوښتنلیکونه وځنډول شول . ځینې یې له کاروواېستل شول ، او مونږ د دوی هغه بد حال ولید چې د ګوند مشرانو د خپلو ګوندي غړیو لستونه د عربي سوسیالیستي اتحاد یوې ځانګړې کمیټې ته ورکړل چې دوی ته کارونه پیدا کړي . د دوی یو زیات شمیر کسانو غوښتل په نشراتو ، تیاترا و فلم کې کار وکړي . ځینو نورو یې په فابریکو کې کار خوښاوه ، چې د دوی په فکر به هلته د دوی انقلابي اغیزه پر نورو زیاته وي . عربي سوسیالیستي اتحاد په دې خوښ وو چې دوی کوچنیو فابریکو ته ولیږي ، او یا یې کاتبان مقرر کړي . دا ټول کار ډیر عجیب و غریب ؤ ، خو په بریالیتوب سرته ورسید .



د مصر د کمونیست ګوند له خوا د ځان د ړنګولو پریکړې د عربي نړۍ په نورو کمونیستي ګوندونو باندې ډیره بده اغیزه وکړه . دوی په دې عقیده نه ؤ چې یو ګوند به د ځان په هکله داسې یوه فیصله وکړي ، خو دوی په دې نه پوهیدل چې په ټولنه کې د ناصر د خورا زیات محبوبیت له امله د دوی مصري ملګري څومره د فشار سره مخامخ وو . د وی د طبقاتي مبارزې د ملي کولو موضوع ته د بدګومانۍ په سترګه کتل ، چې ناصر وړاندې کړې وه ، هغه په دې پوهیده چې طبقاتي مبارزه یو واقعیت دی چې باید سترګې پرې پټې نه شي ، خو که د ملي اتحاد په چوکاټ کې روانه شي ، ددې نه را پیدا کیدونکي خطرونه او ضررونه به په ډیره اندازه را کم شي . نورو کمونیستي ګوندونو دا مفکوره غیر عملي او غیر تاریخي ګڼله . همدارنګه د مصر نه بهر په نورو عربي هیوادونو کې دوی د ناصر د نفوذ مخالف وو . د هغه څه په نظر کې نیولو سره

چې په سوریه کې پیښې شول (هلته د عربي متحد جمهوریت د جوړیدو سره سم د کمونست ګوند په شمول ټول سیاسي ګوندونه ړنګ شول) هغوی له دې ویریدل هر هیواد چې د مصر سره یو ځای کیږي ، یا د مصر د نفوذ په ساحه کې راځي ، د هغه هیواد د کمونیست ګوند سره به همداسې سلوک کیږي . همدارنګه دوی په عراق کې د کمونیستانو برخلیک نه شوای هیرولای .

خبره داسې وه هغه وخت چې د مصر اړیکې د شوروي اتحاد سره په عمومي ډول د ښې کیدو په حال وې ، د عربي کمونیستانو سره د مصر اړیکې ورځ په ورځ خرابیدلې ، او په ناصر او د هغه په سیاستونو باندې د دوي بریدونه او تشدد زیاتیده . په دا بل افراطي اړخ کې د عربي نړۍ مرتجع ځواکونو د دغې پریکړې په هکله پوره تبلیغات کول ، داسې دعوئ یې کوله چې اصلاً د ناصریزم او کمونیزم ترمنځ څه توپیر نشته ، او دا ناصر نه دی چې کمونیستان یې ځانته راکش کړل بلکې کمونیستانو ناصر ځانته را ښکود .



په همدې کال کې د افریقا ـ آسیا د نوي اتحاد په سر د مصر او شوروي اتحاد ترمنځ اړیکې بیا د نویو جنجالونو سره مخامخ شوې . دا دویم باندونګ ، ټاکل شوی ؤ چې د ۱۹۶۵ کال په مارچ کې په الجزایر کې جوړ شي. روسانو په دې خبره ټینګار کاوه چې دوی یو آسیا یي هیواد دی او باید په کانفرنس کې ګډون وکړي . چینایانو بالکل د روسانو دا دعوئ نه منله ، او په دې ډول د افریقا ـ اسیا غورځنګ په دوه برخو وویشل شو ، ځینو د روسانو ملاتړ کاوه او نورو د چینایانو . نه روس له خپلې دعوی تیریده او نه چین دی دعوی ته تسلیمیده ، او د اسیا افریقا غورځنګ په الجزایر کې د جون د ۱۹ مې نیټې کودتا د بشپړ ړنګیدونه وژغوره، هلته هواري بومدین، بن بیلا له قدرته لیرې کړ. د دې کودتا په وخت کې چاون لای په مصر کې ؤ ، وروسته له دې چې ده او نهرو سره یې مشوره وکړه ناصر اعلان وکړ چې کانفرنس وروسته شو. په دې موافقه وشوه او د هر چا ابرو وساتل شوه .

خودې پیښې څه ناراضي مصر ته په میراث پریښودې . مصر ځان له داسې یو حالت سره مخامخ ولید چې د شوروي له نظر نه یې ملاتړ نه شوکولای . سره له دې چې دا یې منله چې شوروي اتحاد د افریقا ـ اسیا په چارو کې پوره نفوذ لري ، خو په دې پوهیده هغه د سر مشرانو غونډه‌چې پودګورني ، برژنف او کوسیګن پکې ګډون وکړي څوک به ورته د افریقا ـ اسیا د کانفرنس نوم ورکړای

شي . داسې به ښکاري چې غونډه د يو ستر طاقت ترلارښوونې لاندې شوي وي . روسان د مصر په دې نزاکت پوهيدل ، او دا يې د مصر له خوا د شوروي په نوي مشرتا به باندې د بې باورۍ او نه اعتماد په مفهوم تعبير کړه .



يوځل بيا د دې ضرورت احساس شو چې مشران بايد سره وګوري. داسې پيشنهاد وشو چې ناصر بايد مسکو ته يو رسمي مسافرت وکړي ، دا به مصر ته د خروسچف د تير مسافرت په مقابل کې وي . پيشنهاد ومنل شو . دا به د خروسچف له زمانې نه وروسته د ناصر لومړنۍ ليدنه وي ، او نوي مشران په دې نيت ؤ چې دا بايد يو ډير بريالی سفر وي . د اګست په ۲۷ مه د ناصر د هرکلي د پاره د شوروي د مشرتابه ټول غړي هوايي ډګر ته راغلي وو ، او ګوند ته دستور ورکړل شوی ؤ چې سرکونه او لارې په هرکلي کوونکو ډکې کړي .

د مشرتابه دري کسيزه ډله په نړيوال ډګر کې د منځني ختيځ د اهميت نه پوره خبره وه او وغوښتل يې ناصر ته په ثبوت ورسوي د شوروي د هغه ځای سياست د ګوند په اراده عملي کيږي او دا هيڅکله هم د خروسچف امتياز او حق نه دی . نو د دوو رسمي غونډو نه وروسته برژنف ناصر ته وويل : 'تا شوروي اتحاد د مخه ليدلی ؤ ، دا ځل مونږ د خبرو له پاره وخت ته ضرورت لرو . زما پيشنهاد دادي چې د اونۍ د رخصتۍ ورځې به له مسکو نه بهر تيروو ، ترڅو يو بل سره ښه وپيژنو ، د انسانانو په توګه ، نه داسې چې ترمنځ مو په شين ځادر پوښل شوی لوی ميز پروت وي' .

د دی له پاره د زاګيدوفا په نامه يو ښکار ځای وټاکل شو ، د مسکو د ښار په نژدې ګاونډ کې ، د يوالو نه يې د ګوزو په سرونو او لورو عکسونو پوښل شوی وو . چې مونږ ورسيدو ، ټول مشران تيار هلته وو ـ برژنف ، پودګورني کوسيګن ، شيليپين ، ميکويان ، ګروميکو ، پوليانسکی ـ او څنګه چې ماسپښين وختي ؤ برژنف وويل چې يا ښکار وکړو او يا کبان ونيسو . هلته د يو بند په واسطه يو لوی جهيل جوړ شوی ؤ ، د هيليو ښکار کيدای شو ، او د کبانو نيونکو له پاره هم يوه کوچنۍ بحيره وه . د بهرنيو چارو وزير محمود فوزي او ما نه پرته نورو ټولو ښکار کول غوره کړه . هغه او ما دواړو ته يوه يوه کوچنۍ کشتۍ تياره شوه او يو يو سړی را کړل شو چې کشتۍ وګرځوي ،

لرګي او جال را ګېرل شو. ډېر ژر پوه شوم چې له هغه ځه نه ډېر ښه ګېب نيوونکي وم چې ما فکر کاوه . دوه ساعتونو نه زيات وخت مې له اوبو نه ګبان را ايستل ، په هره دقيقه کې تقريباً يو ګېب . لمر په پريوتو شو ، ما ډاکټر فوزي ته غږ کړ ، هغه د بحيرې په بله خوا کې ؤ ، 'ما زښته ډېر ونيول ، ۱۰ مې نيولي' . خو ډاکټر فوزي چې څنګوا يې کله د ګبانو لرګي هم په لاس کې نه ؤ نيولی ، ښايسته ډېر ښکار يې کړی ؤ ، ټول يې ۶۰ ګبان نيولي وو . ورته و مې ويل ، 'را ته ښکاري چې يا خو دا ګونډي بحيره ده او يا د عامه اړيکو بحيره ده . ګبان درته په خپله خوښه را روان دي'!

لږه شيبه وروسته ښکاريان هم بيرته راغلل . برژنف ۱۸ هيلې ويشتلې وې . ناصر ۱۲ ، کوسيګين ۱۰ ، سادات ، ذکريا محي الدين او ميکويان هر يوه درې درې او ګروميکو دوه هيلۍ ويشتلې وې . مارشال مالينوفسکي خپله ګځوره نه را ښکاره کوله ـ خو برژنف ترې را کش کړه ـ معلومه شوه چې يوه يې هم نه وه ويشتلې . هغه په خواشينۍ سره وويل چې ، داخلي خپلو خلکو ته غوښتنه کوم چې زما د پاره د ځمکې نه ـ هيلۍ ته ميزايلونه جوړ کړي' .

د ماښامي وخت شو . وضع لږه خړه پړه ښکاريده . هيڅا د خروسچف نوم وانه خيست ، خو هر يوه دا هڅه کوله حالت دومره آرام وښيي لکه هغه چې اوس هم په قدرت کې وي . هغه د ميلې غير حاضر نابغه مشر ؤ .

د ډوډۍ نه وروسته اکثره ميلمانه او زمونږ کوربا نه وختي ويده شول ، خو زه د ميکويان سره په خبرو وم ـ رښتيا د هغه خبرو ته مې غوږ نيولی ؤ . هغه ډېره سمه انګريزي وايي ، او ډېرې خوږې کيسې کوي ، ماته د هغه خاطرې ډېرې د زړه پورې وې . نيمه شپه اوښتې وه چې زمونږ خبرې په خلاصيدوشوې، او زه مې د خوب کوټې ته روان شوم . د ښکار په د مه ځای کې هرې کوټې نمبر درلود ، ما خپله کوټه پيدا کړه ، فکرمې کاوه چې همدا زما کوټه ده ، خو چې دروازه مې پرانيته ، نه مې د څراغ بټن پيدا کولای شوه او نه مې خپله بستره ليدله . بيرته برنډې ته را ووتم ، خو څوک نه ؤ چې مرسته يې را سره کړای وای ، ټول ويده وو ، او پيره داران ټول په لاندې منزل کې وو . ځان سره مې وويل ، پروانه کوي ، په کميس کې به ويده شم . نوکټ ته وختم ، اريان شوم چې يوڅوك زما په بستره کې وختي ويده شوی ؤ . ايا کېدونه لري چې مونږ مجبوريو په يوه بستره کې دوه کسه ويده شو ؟ په دې هيڅ پوی نه شوم چې ولې ، او هيڅ لاره نه وه چې ما څه کړای

وای . نو پرنځي څملاستم چې ویده شم . خو د بسترې انډیوال می ډیر ستړی ؤ ، هغه سخت خریده ، برستن یې له ما نه کش کړه او ځان یې پکی ښه راوپیچه ، ما سم خوب ونـه شو کړای . سهار شو ، د خپل کټ انډیوال تـه می وکتل ، هغه هم اریان ؤ او په وران مخ یې ماته سترګې را واړولې . دا د شوروي اتحاد جمهور رئیس نیکولای پودګورني ؤ .

ډیـره ببښنه می تري وغوښتله ، جامی می واغوستلې ، او لاندې را ښکتـه شوم چې سباناری وکړم ، خو د میکویان او ډاکتر فوزي پرتـه می څوك ونـه لیدل . که څه هم مونږ څه ګیله نه درلوده ، ځکه میکویان د چایو د څکلو په وخت د خپلې یوې بلې خاطرې په کیسې سره مونږ ښه خوشاله وساتلو .



میکویان وویل ، د لینن هیڅکله هم ستالین نه خوښیده ، هغه د ستالین په هوښیارۍ باور درلود ، خو د هغه ظالمانه او ترورستي طبیعت یې نـه خوښیده ، دا چې اوس هرچا تـه څرګند دی . میکویان وویل ، لینن پـه خپل وصیت کی مونږ ټولو ته وویل ، د ده پر ځای داسی یو سړی کینوئ چې د ستالین صفتونه پکی وي خو د ستالین عیبونه پکی نه وي . مونږ ډیر ها خوا د یخوا وکتل خو د ستالین انډول مو پیدا نه شو کړای. آن تردې چې د لینن د ژوند د وروستیو ورځو ملګرې او د هغـه ښځې نادیا کروپسکایا هم مونږ سره پـه دې خبره هم نظره وه چې د ستالین نه پرته بل څوك نـه شي کیدي ـ د دې ټولو سره سره چې دې بـه تل د ستالین سره جنجالو نـه درلودل . ستالین د لینن د وصیت نـه بیخي خبر نه ؤ ، هغه وخت چې دی د لینن پرځای وټاکل هم شو ، تر هغې چې کومه ورځ ورته ملګرو تصادفي دا خبره وکړه . بیانو ستالین د مرکزي کمیټې غونډه را وغوښتله او خپله استعفیٰ یې ورته وړاندې کړه . مونږ دا ونـه منلـه ، او غوښتنـه موتري وکړه چې خپل کار جاري وساتي ، خو ورتـه ومو ویل چې باید هڅه وکړي په هغو تمایلاتو او احساساتو بریالی شي چې لینن پري انتقاد کاوه او ویره یې تري درلودله .

میکویان زیاته کړه چې ′نورولسو کلونو کی د ستالین سلوك بیخي ښه ؤ . خو بیا په بدلیدو شو . د هغـه د.مزاج او اخلاقو د ځناورتوب اړخ پـه کراره کراره را ښکاره شو ، او د هټلر د جنګ تروختـه پوري د قابو نـه ووت . پـه لومړیو ورځو کی چې جرمنانو پـه روس تیری وکـړ د ده دماغي حالت بیخي د کار نه ؤ . په خپلـه کوټـه کی بـه ناست ؤ او ډیر زیات شراب بـه یې څکل .

خو بیا یې زور وکړ ځان یې سره را ټول کړ او د جنګ په لور یې مخه کړه . ډیر اعلیٰ کار یې وکړ . له بده مرغه د جنګ د پای ته رسیدو وروسته ، ستالین بیا وینې تویونکی سړی شو، .

میکویان د تروتخګی په هکله هم خبرې وکړې . ده هغه یو ډیر لوړ او هوښیار سړی وباله ، خو ډیر یې ښې او کبرجن ، دومره مغرور چې تا به وې چې سره ونه چوي ! میکویان وویل چې هغه په طبیعت کې یو اداکار ؤ .



هغه ورځ د غرمی په ډوډۍ کی برژنف ناصر ته مخ را واړاوه او ویې ویل : 'زه خپل ګیلاس ناصره تاته ، د شوروي اتحاد د یو قهرمان په توګه پورته کوم،! دا څرګنده وه چې نوي مشرتابه غوښتل دوی ته په رموز کی هغه پیغام ورسوي چې دا اوازی ربښتیا نه وې چې ګوندې خروسچف له دې امله لیری کړای شو چې د مصر سره یې تر اندازې زیات ښه سلوک کړی ؤ . مارشال مالینوفسکی د هغه ملا وتړله ، ناصر ته یې وویل ، 'تاسی چې کله هوایی ډګر ته را ورسیدئ ، زما یو شمیر منصبدارانو له مانه پوښتنه وکړه چې ولې ستا په ټټر د لینن د سروزرو مدال ستوری نه ښکاري، .

بیا ، د ښخوانیو ترتیباتو نه داسی ښکاریده چې برژنف مالینوفسکي ته مخ را واړاوه او ویې ویل ، 'مارشاله ، په اردو کی کومه ښه کیسه شته ، که نه' ؟ مالینوفسکی وویل ، «یاره ، د یوه میړه کیسه شته ، چی کله خپل کورته راننوځي ، ګوري چې د ښځې سره یې یو سړی پروت دی . روسی میړه خپله تمانچه را وباسي ترڅو د خپلې ښځې یار ووژني ، خو ناتاشا د منځه شي او چیغه کړي 'ما ووله ، خو هغه پریږده» ! جرمنی میړه په غضب سره خپلې ښځې ته وګوري ، خو ښځه یې ورته وایی «کارل ، تاولې خپل کورته د راتګ وخت بدل کړ» ؟ چینا یې میړه ، ځو بلنې سترګي په خپله ښځه شور جوړ کړي ، «تا ته (۳٦٥ تم) لمبر اخطار درکوم» ! دا هغه وخت ؤ چې چینایانو امریکی ته ۳٦٥ تم اخطار ور کاوه ، د کیوموي او ماتسو د جزیرو په سواحلو باندې د هغوی د ډزو د بندولو له پاره ؤ . د ټولو ناستوکسانو دغه مناسبه تشبیه ډیره خو ښه شوه . په کیسه کی د چین په مشر تابه باندې ملنډې ووهلې شوې ، او په غیر مستقیمه توګه هغه عربي مشران وترټل شول چې هغه وخت یې د افریقا ـ آسیا د کانفرنس په هکله د چین د دریځ ملاتړ کاوه .

ناصر د زاکیدونا د استراحت او آرام محیط نه داسی پوی شو چی شورویان غواړي مونږ ته وښیي د دوی پـه دریځ کی څه بدلون نه دی راغلی . دا وخت د شوروي د وسلو د پیرودنې له امله په مصر باندې د دوی پور ډیر زیات شوی ؤ ، زیات د یمن د جګړو له امـلـه ، هلتـه د ۱۹۶۲ کال راهیسي کورنۍ جګړې روانې وې . ناصر پـه ګوتـه کړه چی دا هم باید د یو ملي آزادي ښښونکي غورځنګ په توګه وپیژندل شي ـ د امپریالیزم ضد جنګ دی ، او وې ویل د ده په فکر دا به ډیره پرځای خبره وي که یوه اندازه پور چی په دوی اوښتی دی وروبښل شي . زمونږ کوربنو دا خبره واوریده او موافقه یې وکړه او د ۵۰۰ میلونو ډالرو پور وبښل شو .



# تېلو ته ستونځې را پيدا کېدل

۱۹٦٤ کال په تېرېدو شو او ۱۹٦٥ کال راورسيد . دا کال د تېلـو د پاره د ستونځونه ډک ؤ ـ مصر، شوروي اتحاد ، د امريکې متحده آيالات او تېوله عربي نړۍ په دې کال کې د بېلا بېلو ستونځو سره مخامخ شول .

پـه مصر کې لومړنی پنځه کلن پرمختيايي پلان په بشپړ برياليتوب سره سرتــه ورسيد ، خو د پيسو زياته برخه د سامان آلاتو په پيرودلو ولګيده ، د لوړ بند په شمول ، داسې شيان دومره ډېر نه وو چې عوام يې ووينې . تنخواګانې شې وې، خو پـه بازار کې دومره څـه نـه وو چـې خلـکو پرې پيسې لګولې وای . داسې ګومان کيده ، کله چې د لوړبنـد د جوړولو پريکړه وشوه ، دا کار به د ځانه سره د انفلاسيون اغيزې راوړي ، خو کله چې ربښتيا داسې وشوه تېول خلک وبوګنيدل .

که شا ته وکتل شي ، زما په فکر دا حالت د پرمختګ د اندازې د زياتوالي سره خامخا را پيدا کيده ، خو ځينې نور عوامل هم وو چې بايد ورته پاملرنه شوې وای . لومړی خو پـه يمن کې جنګ ؤ ، دا د مصر د پاره ډېـر ملاماتوونکی ؤ ـ د ٤۰ـ٦۰ ميلونو مصري پونـډو پوري کلنی لګښت . دا جنګ د مصر د پوځونو له پاره ډېرګران ؤ ـ د قبايلو په وړاندې يوګوريلايي جنګ چې دوی ورتـه سمه روزنه نه درلوده او د ګټلو يا سرتـه رسيدلو معلومات يې هم نه کيده . نو داسې يوه مفکوره پيـدا شوه چـې د يمن د منصبدارانو غوښتنو تـه غاړه کيښودله شي ، کـه څـه هم دا د پوځـي دسپلين پـه بيه تمامـه شي . د فساد نښې را ښکاره شوې وې . د عدن پـه آزاد سمندري بندر کې داسې امکانات رامنځ تـه شول چې خلک پکې هغه مصرفي مالونه و پيرودلي شي چې هيواد کې لږ وو . برسيره پردې مصر د يمن د بلې خوا د جنګ د ملاتړکوونکو سره په نابرابره انډول کې ؤ . د سعودي عربستان د تيلو عايدات مخ په زياتيدو وو ، او پادشاه غوښتونکو تـه يې ورځ په ورځ د پيسو او وسلو مرستې زياتولې . په جده کې د اګست په مياشت کې د ناصر او پاچا فيصل ترمنځ په يوه کتنه کې د دوی ترمنځ د اختلافاتو د له منځه وړلـو يوه هڅه وشوه ، خو څه نتيجې ته ونه رسيدله .

بيا د سوسياليستي قوانينو نـه د خلکو بيرته ګرځيـد نه پيل شوه . دا په

دوه څپوکی په ۱۹۶۱ کال او ۱۹۶۲ کال کی را ښکاره شوه ـ او په نتیجه کی یو زیات شمیر عوام تري بیرته وګرځېدل . د سرکاري شویو او ملي شوو ملکیتونو مالکانو ځانونه ناکاره اچولي وو ، په داسی حال کی چی ډیر نوي مدیران خورا پوی وو ، خو ځیني یې دومره ښه نـه وو او د هـر ډول نوښت نـه ویـریدل . د عوامو پـه برخه کی پرمختګ سست ؤ . د دې او د یمن د جنګ نـه د را پیـدا شوو ستونځـو له امله ، پریکړه وشوه داسی یوه لاره ونیولـه شي ، چـی زما پـه فکر ، د رژیم د رښتینـي انقلابـي ورانـدې تګ سره مخالفه وه . پـه لومړیوکی په دې موافقه شوې وه چی لومړي پنځه کلن پرمختیایی پلان کی باید سپکو او منځنیو صنایعو ته زیاته پاملرنه وشي، او دویم پلان کی بیا درندو صنایعو تـه په تـیره بیا د ماشین آلاتـو جوړولو تـه . خو اوس د دویم پلان پرمختیایي غایـه ډیـره زیاتـه چوکاټي شوې وه ، ذکریا محی‌الدین د اکتوبر په ۲ مه صدراعظم مقرر شوی ؤ، زیاته پاملرنـه یې د انفلاسیون د مخنیوي له پاره د بخوانیـو او زړو طریقو پـه کار اچوولو ته اړولې وه .

همدارنګه د امریکایانو سره ستونځی را پیـدا شوې وې . رئیس جانسن پـه دې خبره نا ارامه ؤ چی مصر د خپلو راکټونو پـه جوړولو کار پیل کړی ؤ ، دا د جرمني د ساینس پوهانـو پـه مرسته کیده . داسی دروغجنې اوازې هم خپریدې چی مصر د خپلـو زروي وسلو د جوړولـو آرزو لري . نو رئیس جانسن غوښتنه وکړه چی امریکا باید وکولای شي د منځني ختیځ د راکټونو او زروي وسلو څارنه وکړي. په دې دلیل چی د زروي وسلو د زیاتوالي مخنیوی وکړای شي، د امریکې اصلي هدف دا ؤ چی د مصر د وسلو پـه پروګرام کنټرول ترلاسه کړي . پـه هر صورت ، مصر د امریکې غوښتنه ونه منله ، اسرائیلو هم ونـه منله (دا ځـکه چی د دوی د اتومي تحقیقاتـو کار ډیـر پرمختللي پړاو تـه رسیدلی ؤ ) . دې کار رئیس جانسن ناراضه کـړ ، هغه د ۱۹۶۵ کال په جنوري کی مصر تـه د غنمود صادراتو اندازه نیمه کړه ، او بیا یې وروسته بیخي کمه کړه ، دا پریکړه یې بیله دې چې ناصر پري خبر کړي ، وکړه .



د ټولې عربـي نړۍ د پاره ۱۹۶۵ د تازه ستونځو یو کال ؤ . د جنوري په لومړۍ نیټـه د فلسطین د آزادۍ غورځنګ الفتح جوړ شو او خپله لومړۍ خبر ابلاغیه یې خپره کړه چی پـه اینبون کی یې د اسرائیلو د اوبو پـه نلونـو بانـدې د چاودیدونکو موادو د بریـد اعلان وکـړ . فلسطینیانو تردې وخته پورې د کار

نوښت نـورو تـه پریښی ؤ . د دوی آرزو داوه چـې د عربـي متحد جمهـوريت تشکیل بـه د یووالي یو نوی فصل وي ، د عربـي نړۍ د نورو هیوادونـو سره به یوځای شي ، او دوی به تري ګټه پورته کړي ، خو نامینده شول . دوی پـه عراق کی د قاسم له انقلاب نـه ډیرې لوې آرزوګانې درلـودې ، خـو دی هم له نامیندی نه پرته بل څه رانه وړل. نو اوس يې نیت وکړ چې پخپله د ځان له پاره عمل وکړي . دوی اکثره د سوريې نه کار کاوه ، هلته د صلاح جدید تر مشرۍ لاندې د بعث ډ ګوند چیې اړخ قـدرت لیولی ؤ او د تعصب نـه يې ډک غـیر مسؤلانه سیاست چلاوه . سوریـه له عراق سره ورانـه وه ، او عبـدالسلام عـارف د عربـي یووالي له پاره د شوندو په سر یوه کمزورې نظریه ګردانو له ، خو عمل يې بالکل نه کاوه . هغه داسې پوی شوی ؤ چی ناصر د ده پرتله په بن بیلا ډیر باور لري'، مصر او الجزایر د بې وختـه 'دویم باندونګ' د پاره پـه یوه کرښه د ترتیباتو پـه نیولو لګیا وو . عربـي هیوادونه ربښتیا هم په بهانـده حال کی وو ، یوه خـبره وه چـی د سعودي عربستان د تیلـو د عایداتـو د زیاتوالي سره عربـي زاړه رژیمونـه ورځ په ورځ د پیسو خاوندان کیدل او فعالیت يې زیاتیـده . د سیاست ، جاسوسی او تیلو یو نوی عجیب الیاژ (مرکب) را پیدا شو . سیا د یمن د پادشاه غوښتونکو سره پـه ډیـره اغیزناکـه توګه لګیا وه ، او د اسرائیلـو هوايي پوځونـو د وسلو پنډونه د هوا له لیارې را اچول چی د پادشاه غوښتونکو جیبونـه له خالـي کیـدو وژغوري .



۱۹۶۵ کال پـه شوروي اتحـاد کی د پودګورنـي ، برژنف او کوسیګین دري کسیز حکومت د قـدرت په زین کیناوه خو د ستونځو د ډاروونکو کتارونـو سره مخامخ ؤ . د چین سره د دوی نانـدریو د شوروي اتحاد اړیکي د دریمې نـړۍ او د ختیځې اروپـا د هیوادونو سره ډیرې تاواني کړې . مونږ چی پـه مسکو کی وو ناصر د نوي مشرتابه سره دا خـبره راپورته کـړه ، په ګوتـه يې کړه چی دې کار ملي آزادي بښونکو غورځنګونو ته په هرځای کی تاوان رسولی دی. هغه وویل 'مونږ له تاسی او هم د چینایانـو سره خپله هڅه کـړې ده ، خو ګټه نـه رسوي . تاسی دواړه له مونږ نه غوښتنه کوئ چی ستاسې خوا ونیسو ، او دا کار د اسیا ـ افریقا ټول غورځنګ یوې خوا ته پاڼ او بلې خوا ته پړانګ سره مخامخ کوي' .

د کوربه ځواب دا ؤ چی دوی تر خپلې وسې هڅه کړې د چین سره ځانونه په خبره پوی کړي ، خو بیخي ونـه شوه . برژنف وویل ، 'چینایان پـه سوله کې

اکثره عربي ميلمانه ډېی په ۱۰ مه سهار د خروسچف له رارسيدلو وړاندي کشتۍ ته ختلي وو ، او ده ته د سترګي مشي له پاره وړاندي راغلل . خو کله چي د عراق جمهور رئيس عارف لاس وراوږد کړ ، خروسچف تري په ډېره غوصه شاته لاړ او وي ويل : زه له هغه چا سره لاس ورکول نه غواړم چي لاسونه يې د کمونستانو په وينو سره دي، د خروسچف غوصه له دي امله وه چي څو ورځي وړاندي د بغداد راډيو اعلان کړي ؤچي څوکسه کمونستان ووژل شول . عارف هڅه وکړه ورته تشريح کړي ، دا کسان له دي امله اعدام نه شول چي هغوي کمونستان وو ، بلکي هغوي د دولت پرضد دسيسه جوړه کړي وه . خو خروسچف يې غلي نه کړاي شو ، د عارف حواس هم خراب شول او په ژولو خبرو سره يې په هغه انتقادونه وکړل . ناصر ورته په عربي کي وويل ، 'عارفه وروره' (نورڅه مه وايه).

خو فضا ډېره خرابه شوه . هيچا له چکر نه خوند وانه خيست . ټول په کشتۍ کي په چوکيو کيناستل او د زړو وختونو او شيانو په هکله يې خبري پيل کړي ، نشنليزم ، کمونيزم ، سوسياليزم ، دين او داسي نور . بن بيلا ځيني انتقادونه لرل او همدارنګه خروسچف هم . ناصر د يو ټوکي په توګه هڅه کوله خبري په کنترول کي وساتي ، خو ورته ډېره ګرانه تمامه شوه .

د مثال په توګه په يوه ټکي کي هغه هڅه وکړه خروسچف قانع کړي چي د عارف سره ښه ګوزاره وکړي . ناصر ورته وويل ، تا د قاسم سره معاملي لرلې، خو د هغه پرځاي ناست سړي سره دي مزه نشته ، کيدي شي دي دويم قاسم وبولې که ستا په ياد وي خلکو به نجيب د مصر لومړی سړی باله ، او زه د هغه دويم وم. همدارنګه د الجزاير فرحت عباس او بن بيلا ، ته اوس د بن بيلا او ما سره يې د عارف سره ولې نه يي ؟

خروسچف وويل، نه ، نه ، دا ټول يو شي نه دي. زه به تا ته يوه کيسه وکړم . په ۱۹۰۵ کال کي د روس او جاپان ترمنځ د جنګ په وخت د روس د يو سمندري واحد قوماندانې يو شهزاده کوله چي د ټولو خلکو ډېر بد ايسيده. هغه کم عقل او بې کفايته سړی ؤ. خو د هغه مرستيال قوماندان د هرچا خوښ ؤ. هغه لايق کشتيوان او ښه سړی ؤ . خبر راورسيد چي کشتۍ غرقه شوي ده . قوماندان ، مرستيال او ټول سواره پکي وژل شوي دي . په سمندري پوځ کي عمومي خوشالي شوه چي شهزاده وژل شوی دی ، خو د مرستيال په مرګ ټول خلک غمجن وو . بيا بل پيغام راغئ چي په ډوبه شوي کشتۍ کي يو شمير

دکډ ژوند د مفکورې سره وران دي . موږ په سوله کې دکډ ژوند او د انقلابي آزادي بښونکو غورځنګونو د دوام ترمنځ کوم توپیر نه وینو . په سوله کې کډ ژوند کوم جامد شی نه دی . خو څوک چې په سوله کې دکډ ژوند سره د مخالفت خبرې کوي ، هغه جنګ خوښوي ـ ټول جنګ ـ او د جنګ مخنیوی یو اړخ نه دی ، بلکې د عصري وسلو په نظر کې نیولو سره یو ضرورت دی . موږ داسې ادعا کولاي شوچې د جنګ د امکان په له منځه وړلو سره موږ انقلاب ته زیاته نرمي وربښلې شو' .

په همدې غونډه کې کوسیګین د مسلې د څرګندونې سره ښه مرسته وکړه . هغه وویل ، 'د چینایانو اصلي مسله داده هغوي دعوی لري چې دوی او موږ د یوې ایډیالوژۍ پیروان یو نو موږ باید خپل هر څه له دوی سره شریک کړو . دا کار ییخي دکیدو نه دی . که موږ خپل منابع او امکانات د سوسیالیستي بلاك سره شریک کړو ، نو موږ به ټول کمزوري شو . کمونستي هیوادو نه باید ټول دا واقعیت ومني چې شوروي اتحاد د نورو نه لوړ یتوب لري . دوی باید په دې پوې شي چې شوروي اتحاد باید دوه مهم ضرورتونه پوره کړي ـ شوروي اتحاد باید ډیر پیاوړی ، او دا باید دکمونیزم د اصولو او عمل یوه نمونه وي .

'موږ د چین سره ډیرې مرستې کړې دي' ، کوسیګین زیاته کړه، 'انګلستان خپل صنعتي بنسټ په اتیا کالو کې جوړ کړ . شوروي اتحاد خپل صنعتي بنسټ په پنځه ویشتو کالو کې جوړ کړ . چین دا کار زموږ په مرسته په لسو کالو کې وکړ . دوی اوس هم زموږ منابعو او تجربو ته اړدي'.

دا ټول ډیر ښه وو ، خو مصر ولیدل چې عملاً ټول هغه کمونست ګوندونه او حکومتونه چې ورسره معاملې لري ، په تیره بیا د شمالي ویتنام مشران د روس د هغه بې خونده تیندګار نه ګیله کوي چې دوی ورسره مخامخ دي ـ 'یا موږ یا چینایان' . د ١٩٦٤ کال په دسمبر کې روسانو یوه بلنه ولیږله چې په راتلونکي مارچ کې په مسکو کې د کمونستو ګوندونو یو نړیوال کانفرنس جوړ کړي . ټولو دا بلنه ومنله خو د چین ، البانیې، رومانیې ، شمالي کوریا ، شمالي ویتنام ، اندونیزیا او جاپان کمونستو ګوندونو نه منله ، او د بریتانیې ، کیوبا ، ایټالیې او پولنډ د کمونستو ګوندونو په شمول یو شمیر ګوندونو له ګډون کولو نه ښنه وغوښتله. د رومانیې جمهور رئیس ناصر ته په یولیک کې ولیکل : 'موږ د روس او چین د لانجې په هکله خپل دریځ څرګند کړی دی . موږ دا نه شو منلی چې شوروي اتحاد دې واقعیتونه او یا د واقعیتونو تفسر او تعبیر انحصار کړي'. آن تردې چې

کاسترو د روس دا غوښتنه ونه منله چې د روس ښکاره ملاتړ وکړي .

څه موده وروسته چینایان د مصر او روس ترمنځ د خوابدۍ د را پیدا کیدو مسؤل بلل کیدل . د ۱۹۶۶ کال د اکتوبر په ۲۷ مه څرګنده شوه چې دوی په بریالیتوب سره خپل زروي میزایلو نه تجربه کړي دي ، او د چین د میزایلو د پروګرام چلوونکي مسؤل جرمنی ډاکتر ولفګنګ پلزؤ . ډاکتر پلز پخوا زمونږ د میزایلو په پروګرام کی کار کاوه ، خو د ۱۹۶۵-۱۹۶۶ کلونو د انفلاسیون د مخنیوي د اقداماتو نه وروسته زمونږ پروګرام بند شو . د ډاکتر پلز د پاره دلته نور کار نه ؤ ، هغه له مصر نه لاړ او بیا وروسته واوریدل شو چې دی په چین کی دی . شورویانو ګومان وکړ چې د ډاکتر پلز له امله کیدي شي مصر د چین د میزایلو د تولید په کار کی مرسته کړې وي . البته دوی په دې هکله په رسمي ډول معلومات وغوښت .



بیانو د اروپایي کمونستوګوندونو کیسه ده . دوی اکثره په غوصه وو ، او ځیني یې په تیره بیا ایټالویان د 'توګلیاتي وصیت' په کار تقریباً بالکل یاغي شوي وو . مصر د ډیر پخو راهیسي د ایټالیې د کمونست ګوند سره ښې اړیکې درلودې . سره له دې د مصر د ۱۹۱۹ کال د اړودوړ په لومړیو وختو کی د فرانسې د کمونست ګوند په مرسته د مصر د کمونست ګوند بنسټ کیښودل شو، د کارونو سرپرستي یې په ۱۹۳۰ کلونو کی ایټالویانو ته ورپریښودله شوه . دا کار د جنګ نه وروسته هم جاري ؤ ، او په ۱۹۵۹ کال کی د ایټالیې د کمونست ګوند د یو استازي په مشرتوب د مصر د کمونست ګوند د بیلا بیلو کوچنیو ډلو او ګروپونو د بیا یوځای کیدلو هلې ځلې وشوې . دوی نه یواځې د مصر د کوچني کمونست ګوند سره نژدې وو بلکې د اروپا د لویو کمونستوګوندونو سره یې هم خو را نژدې اړیکې درلودل . حکومت هم سپارښتنه وکړه چې عربې سوسیالیستي اتحاد دې ورسره د ورور ګلوۍ اړیکې وساتي ، داسې وخت ؤ چې تقریباً هره میاشت به د ایټالیې یو هیئت د یو یا بل کار د پاره مصر ته راتۀ .

لکه چې لیدل کیدل شوروي اتحاد غوښتل د منځني ختیځ په بیلو بیلو هیوادو کی خپل اهداف په بیلا بیلو بڼو څرګند کړي ـ ترڅو په یو هیواد کی د خپلو کارونو د ډیرې کیدلو مخنیوی وکړي ـ لکه مصر کی . همدارنګه ناصر فکر کاوه خپلې اړیکې د نورو کمونیستي هیوادونو سره هم ټینګې کړي ترڅو په دې ډول په شوروي اتحاد لازم فشار راوړای شي . دا وخت په ټوله نړۍ کې

د ایټالیې کمونیست ګوند تر ټولو زیات د خپل واک ؤ ، ناصر دا لازمه وګڼله د دوی له لارې د مسکو مشرتابه ته څه ګټورې خبرې ورسوي . هغه دا ارزو درلوده ، لکه څنګه چې د چکوسلوا کیې د وسلو په معامله کې مصر په شوروي اتحاد ارم ور زورکړ ، اوس کیدي شي اروپایي کمونیست ګوندونه دغسې کار وکړي .

د خروسچف د لیرې کیدونه وړاندې د 'توګلیاتي وصیت ، پیښه داسې وه چې خروسچف د چین سره د اختلافاتو په سرد یو کانفرنس په مفکوره لوبې کولې ، او د ایټالیې دکمونیست ګوند لومړی منشي توګلیاتي روسیې ته راغوښتل شوی ؤ او ورسره وعده شوې وه چې خروسچف سره به ګوري او د کانفرنس په امکاناتو بـه خبرې کوي . خو چې دی څـه وخت روسیې تـه را ورسید ، ورتـه وویل شول چې خروسچف د کاناډا د یو اخبار مالک لارډ تامپسن سره د پاکو څمکو په چکر وتلی دی . ده ته مشوره ورکړل شوه چې په کریمیا کې سوچې ته لاړشي او هلته استراحت وکړي ترڅو خروسچف د ده لیدلو ته وزګار شي . هغه همداسې وکړه ، او کلـه چې هغه د یلټا پـه یو سناتوریم کې لګیا ؤ خپل نظریات را ټول کړي او د یو راپور پـه شکل یې د خروسچف سره د خبرو لـه پاره جوړ کړي . هغـه خپل راپور نژدې کړی ؤ ، او وروستي بدلونو نـه یې پکی اصلاح کول چې ناڅاپه پرې د زړه حمله راغلـه . روغتون تـه وځغلول شو ، خو ډیر ژرمړ شو . (اګست ۲۱ ، ۱۹٦٤ کال) .

ښځه یې ورسره وه ، چې دی مړ شو هغه ژر هوټل ته ورغله ، د ده د میز په سر یې د راپور پراته کاغذونه سره را ټول کړل او د خپلې سینې لاندې یې په کمیس کی پټ کړل . هغـه پـه دې پیښه ډیره پـه غوصه وه ، او هر ځای کی کمونیستان پـه دې خبره ډیر ناراضه وو چې توګلیاتي څو اونۍ یواځې پریښودل شوی ؤ او خروسچف د یو پانګه وال د اخبار مالک سره په هوا خوری بوخت ؤ . برژنف د توګلیاتي د مړي سره روم تـه پـه تللو بیا لړ د خلکو نظریات راسم کړل .

شورویانو غوښتل ځانونه د 'توګلیاتي وصیت ، نه خلاص کړي ، خو نـه شو کیدي ، ترڅو چې د ۱۹٦٤ کال د سپتمبر په ٤ مه دا یټالیې کمونیست ګوند د هغه ټول ټکي خپاره کړل . د توګلیاتي اصلي ټکی دا ؤ چې کمونیستي غورځنګ باید د یو سړي د نظریاتو تابع نـه وي ، خو بیلا بیل نظریات باید پـه

خپلو منځو کې يو والی ولري . هغه احساس کاوه چې کمونيست ګوندونه په نورو باندی د يو ګوند دکتاتوری خوابدي کړي دي ـ او ننيو مارکسيستي نظرياتو هيڅ ډول نوښت ونه شو ښودای او نويو ستونځو او مسلوته هماغه پخواني ځوابونه وړاندې کوي . هغه د ناسيوناليزم د بيا را ژوندي کيدو خبره هم کړې وه . هغه ليکلي ؤ چې 'د يو او بل هيواد ترمنځ توپيرونه ډير لوي دي . له دې امله بايد هر ګوند د آزاد او خپلواک کار کولو چل زده کړي . . . سوسياليستي کمپ کی هم دا خبره ډيره ضروري ده چې هر يو د خپل واک خاوند او د بهرنه پري شرايط تحميل نه شي .

البته دا نظريات په کريملين کی عقيده خرابوونکي بلل کيدل ، د توګلياتي د مړګ اووصيت ټولې کيسې د خروسچف په له منځه وړلو کی ډيره اغيزه درلوده . يوه بله خبره هم وه چې د شوروي د مشرانو ترمنځ يې د نظرياتو په تو پيراو په منځني ختيځ کی د دوی په سياست باندې پوره اغيزه اچولې وه. دا د زروي وسلو پورې تړلی کار ؤ .

زما په فکر خروسچف داسی ګومان کاوه چې زروي وسلې د جګړې په ډګر کی په کار نه شي اچول کيدي ، يوازی په سياسی ډګر کی په کاريږي ، او دې کار يو ځانګړی تخنيک غوښت . د هنګری او سويز په شخړو کی هغه د زروي وسلی د په کار اچولو ګواښ وکړ ، او نورو ته يې د کار او لانجی د جوړولو واک ورپريښود ، خو په دې ښه پوهيده چې هغوی دا کار نه شو کولای . د بلې خوا نه د کيوبا د لانجی په وخت کی خروسچف په داسی يو ځای کی فعاليت کاوه چې هلته امريکايانو پوځي لوړ والی درلود ، نو د ده د زروي وسلې د په کار اچولو ګواښ څه اغيزه ونه کړه ، نو بيرته ترشا شو . د کيوبا د لانجی نه وروسته د مارشال ګريچکو په شمول ډيرو شوروي لوړ رتبه مامورينو په خروسچف ملامتيا اچوله چې زروي وسله د سياسي وسلې په توګه په کارنه شي اچول کيدي ترڅو چې د دې وسلې د ملاتړ د پاره نور رواجي پوځي ځواکونه نه وي . نو دکيوبا د لانجونه وروسته سمندري امير سرجي ګورشيکوف راپورته شو او شوروي سمندري پوځ ته يې د يو نړيوال قوت بڼه ورکړه . زما په ياد دي چې يو وخت مونږ له برژنف نه د بم غورځوونکو جنګي الوتکو غوښتنه وکړه څو د امريکا يې فانتم مقابله وکړای شي چې اسرائيلو ته يې ورکړې وې . د هغه ځواب دا ؤ چې مونږ داسی څه نه لرو چې د فانتم مقابله وکړای شي . هغه وويل ، 'مونږ

د ځواني مشرتابه په وخت کی غلطي کړې ده ، چی په زروي وسلو مو زياته تکيه وکړه . د دی مطلب دادی چی په نورو وسلو کی مونږ د پرمختګ نه پوره وروسته پاتي شو . نوځکه اوس مونږ بم غورځوونکي داسې جنګي الوتکې نه لرو چی د امريکي مقابله وکړای شي . مونږ به هغوی ته ور ورسو ، خو اوس دستي څه واتن شته، . د کيوبا په لانجه‌کی شوروي د دوو لارو نه د يوی نيولو ته مجبور ؤ ، يا به يې په موجودو رواجي وسلو جنګ کاوه ، چی پکی پوره کمزوري وو ، او يا به يې په زروي وسلو جنګ کاوه ، چی دې کارته هم پوره تيار نه وو . دا اصلاً د سويز د لانجې سرچپه لانجه وه .

روسانو هڅه‌کوله چی پوره رواجي وسلې جوړې کړي ترڅو د امريکې سره په برابر اندول مقابله وکړای شي . دوی په دې عقيده وو چی د دې مطلب د پاره يواځې يوبنسټ شته چی هغه ديتانت دی . خو ډيرژر دوی بيا د يو بل خنډ سره مخامخ شول ـ ويتنام . زما په ياد دي ، کوسيګين چی په سکندريه کی ؤ ، ويی ويل ، د افسوس خبره ده کله چی شوروي اتحاد دې ته تيار شو چی د ديتانت په هکله د زړه له کومی خبرې وکړي ، هلته د ويتنام لانجه را پيدا شوه او ټول کارونه يې خراب کړل .

دا هغه وخت ؤ چی امريکايانو نه يواځې ويتنام کی بلکې د نړۍ په نورو ډيرو ځايوکی ځانو نه د خطر سره مخامخ کړی وو . دا د سيا د نيکمرغۍ ورځې شپې وې چی د يمن له پاره يې په فعاله توګه اجير پوځيان پيدا کول ، او په لاتينه امريکاکی يې ډير فعاليت کاوه . د جانسن اداري پاليسي دا وه چی په سيمه ييزو محورونو باندی د عملياتو د پاره لنګر واچوي ، چی پکی په يوه سيمه‌کی يو قدرت ته د هغه ځای په کورنيو چارو کی د غير زروي وسلې تر اندازې پورې د لاس وهنې صلاحيت ورکړل شوی ؤ ، نو په دی ډول اسرائيلو ته ورځ په ورځ زيات اهميت ورکول کيده .

نو ، اوس به هغه خبرې چی خروسچف يې له قدرته ليرې کړ څنګه کيدې ، د توګلياتي وصيت نامی بنسټيزې موضوعګانې راپورته کړې وې ، د ديتانت له پاره د ضرورت او د امريکايي بې سنجشه پاليسيو سره د سيالۍ کولو ترمنځ يوې لارې نيولو ، روسان تر لوی فشار لاندی راوستي وو . نړيوالې پيښې لکه د هند او پاکستان ترمنځ د ١٩٦٥ کال د اګست د مياشتې ١٧ ورځې جنګ ، په اندونيزيا کی د ورځ په ورځ زياتيدونکي پوځي قوت او د اندونيزيا په‌کمونيست

ګوند باندې د ۱۹٦٥ - ۱۹٦٦ کال په ژمي کې د دوی بريدونه او د ۱۹٦٦ کال په فبروري کې د نکروما ترې تم کيدل د سودا او اندېښنې نور عوامل وو .

ناصر اوس هم ؤ ، خو د شوروي اتحاد په لور د ملي آزادي ښښونکو غورځنګونو عمومي ميلان مخ په زوال ښکاريده . څه غلطي شوې وه ، خو شوروي مشران پرې پوره نه پوهيدل چې څه وه . قاهرې ورته په برله پسې توګه دا خبره کوله چې د چين - روس لانجه د دريمې نړۍ د هيوادونو د بې اتفاقۍ مسؤله ده . د هغې خوانه شورويانو ډيرې هڅې کولې د عربو سره خپل اتحاد د صهيونيزم پرضد د زياتو تبليغاتوله لارې پياوړی کړي ، او دې کار دوی د يو ډول نه سنجول شوي عکس‌العمل سره مخامخ کړل .

د شوروي د کمونيزم يوه لويه ناکامي دا ده چې دوی د يهودو مسله اواره نه کړای شوه . د شوروي مشرانو تل يا ځانو نه ناکاره اچولي چې ګوندې څه مسله نشته ، او يا يې ورته داسې ښه ورکړې چې ګواکې بدنيتو بهرنيو ځواکونو دا مسله ژوندۍ ساتلې ده . خو اوس د شوروي اتحاد خپلو پاليسيو دا مسله ويجاړوله . څومره به چې په شوروي مطبوعاتو کې صهيونيزم غندل کيده ، هغو مره شوروي يهودان را بيداريدل . اسرائيلو ته د هجرت کولو غوښتنې زياتې شوې . شورويانو ګيله کوله چې سيا شوروي يهودان را پاروي ، دا ډيره شکمنه خبره وه ، او اسرائيلي موسسې د دلالانو په څير په دې کې لاس لري . دوی داسې پوی شول چې د يهودي مخالفينو د پاره پټې ابلاغيې په مسکو کې د اسرائيلو په سفارت کې چاپيږي . د دې شواهدو د تائيد خبرونه قاهرې ته را ورسيدل چې مسکو پرې بيا خبر کړای شو . شورويانو داسې نتيجه واخيستله چې دا د مصر په وړاندې د دوی د دريځ له املـه دي چې د تازه کورنيو ستونځو سره مخامخ شو .



د شوروي نوي حکومت رښتيا هم په دې مسلو کې ډير فکر کاوه ، او په دې باندې د نوي نظر کولو انګازې قاهرې ته را ورسيدې . د حکومت غړو اوس هم په دې ټينګار کاوه چې د مشر تابه بدلون د مصر او عربو په وړاندې دريځ پورې تړلی نه دی ، خو په دې کې شک نشته چې په خروسچف باندې يو انتقاد دا هم ؤ چې د مصر سره د ده معاملې په حقيقت کې د يو سړي سره معاملې دي ، چې څه ناڅه رښتيا وه ، ځکه د مصر د رژيم نه مطلب ناصر ؤ . په کرېملين

کې د پالیسیو پرسر بنسټیز اختلاف را پیدا شو ، منځني ختیځ په دې کې لویه برخه درلوده ، د خروسچف ځینو مخالفینو لکه سوسلوف هغسې استدلال کاوه لکه سیمه ییزو کمونیستو ګوندونو چې کاوه . ناصر سره هر ډول مرستې کول ، دوی د لوی خطر سره مخامخ کړي وو . ځومره چې ناصر قوي کیده هغومره دوی کمزوري کیدل ، او که ده د یووالي د منځ ته راوړلو هڅه کولای نو هغوي منحل کیدل .

په عربي نړۍ کې نور کمونیست ګوندونه په دې ناراضه وو چې ولې د مصر کمونیست ګوند ځان رنګ کړ ، د دې کار د ټولونه زیات مخالف خالد بکداش ؤ . هغه د یو ځانګړي صلاحیت نه خبرې کولې . د سوریې کمونست ګوند د بعث د ګوند د کیڼ اړخ سره مرسته کوله چې صلاح جدید یې مشر ؤ ، او اوس په قدرت کې ؤ . خالد بکداش یو مسلکي کمونست او د پوره استعداد خاوند ، داسې بریالیتوب ته رسیدلی ؤ لکه څنګه چې شوروي اتحاد تل د سیمه‌ییزو کمونستو ګوندونو نه هم‌داسې غوښتل - د ده ګوند په فعاله توګه د ملي متحدې جبهې په حکومت کې شریک ؤ ، چې په کابینه کې یې یو وزیر هم درلود . نورو کمونستانو ته دا کار یو د پوهیدلو وړ بریالیتوب ښکاریده ، خو د عربو یووالی داسې یوه خبره وه چې دوی پرې ترپایه پوي نه شول . دوی په دوو دلیلونو د دې سره وران وو . یو خو دا چې د کارګرانو د یووالي د اصولو مخالف کار ؤ - او تردې زیاته دا وه چې د ناصر شهرت او لوړ والي دوی په ځمکه ویشتلي وو . په نتیجه کې شوروي اتحاد ته د عربي کمونیستو ګوندونو مشوره داسې شوه ، چې د دوی د پاره دا کار سم نه دی چې خپلې ټولې هڅې په یوه ټوکرۍ کې کیږدي ، دوی باید خپل قوت په عربي نړۍ کې خپور کړي ، او نه دا چې په یو هیواد کې یې را ټول کړي ، دا هغسې کار دی لکه چې یو سړي ته ټول قوت ورکړي .

د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند درویشتم کانګرس د ۱۹٦٦ کال د مارچ د ۲۹ مې نه د اپریل تر ۸ مې پورې په مسکو کې وشو ، د دې نه وړاندې او وروسته په دې خبرو ډیر بحثونه وشول چې د شوروي اتحاد او عربي نړۍ ترمنځ اړیکې باید څنګه وي ، او په کلي ډول د کمونستو ګوندونو او ملي آزادي بښونکو غورځنګونو سره څه ډول ګوزاره وشي . دا نه لومړی ځل ؤ او نه وروستی چې د شوروي اتحاد مشرتابه بیا ځان د ستونځې سره مخامخ

ولید ، د یو ستر طاقت او د کمونیزم د مورني هیواد په توګه د ییلا ییلو رقیبو ډلو د ادعاګانو سره لاس وګریوان شو . په ځینو حالاتوکی مشرتابه کولای شو د یو ستر طاقت د ضرورتونو په پلمه ځانته مناسبی ایډیالوژیکي جامی ورواغوندي ، او کله بیا د ایډیالوژۍ په رڼاکی د دولت په ګټه عمل وکړي، خو اوس د دواړو مسؤلیتونو د رفع کولو د پاره د جوړ جاړي اسانه لاره نه وه.

نژدي ټول عربي کمونستي مشران د کانګرس د پیل کیدونه یوه میاشت وړاندې مسکو ته تللي وو او د کانګرس نه وروسته څواونۍ هلته پاتي شول . د هر عربي کمونیست ګوند په د ننه کی ډیر بحثونه وشول ، د ییلا ییلو ګوندونو ترمنځ خبرې اترې وشوي ، چی دا ټولې البته د مرکزي کمیټې د متخصصینو په مرسته تر سره شوي . خو دوی د ځکسا د معما سره مخامخ وو چی ټولې ټوټې په مناسبه او ښایسته توګه یو د بل ترڅنګه نه شوې ایښودل کیدای .

وروستۍ پریکړې ته ونه رسیدل ، خو لکه څنګه چی په کمونیستي نړۍ کی تل داسی وي ، خبرې اترې د ګوندونو په خپرونو کې راتللې ، د ټولو مشر پکی خالد بکداش ؤ چی د عربو کمونیستو ګوندونو په نمایندګۍ یې خبرې کولې ، او پیاوړي تیوریسن اولیانوفسکی ورته د سیاسي بیرو دریځ تفسیر اوه . د خبرو اترو په زړه کی په یو او بل شکل دا پوښتنه راپورته کیدله ـ چی کمونیستان د مترقي غیر کمونیستو غورځنګونو سره څومره ور نژدي شي ، او د هغوی موقتي مشرتوب ومني که نه . دا هغه څه ؤ چی لینن په خپله مبارزه کی د منشویکانو سره تجربه کړه ، او ستالین دا شی په نوې بڼه تعبیر کړ دفاشیزم او جنګ د تهدید په وخت کی کمونیستانوته امرکیږي چی پراخي متحدې ملي جبهې جوړې کړي . اوس په دریمه نړۍ کی د خلکو د زیات ملاتړ ورکسانو تر مشرۍ لاندې د ملي آزادۍ د کړښو سره موازي چی کوم بریالیتوبونه ترلاسه شوي دي ، زوړ استدلال او منطق په نوي چوکاټ کې را ژوندی کړای شوی دی .



خالد بکداش د ۱۹٦٥ کال د کمینفارم د میاشتنۍ مجلې د دسمبر په ګڼه کی 'د سولې او سوسیالیزم ستونځې' تر عنوان لاندې لیکلی بحث پیل کړ او په 'ملي آزادي بښونکو غورځنګونو او کمونیستانو' باندې یې غږوکړ . په دې مشهور بحث کی ډیر مسایل په نوې بڼه بیان شول . بکداش خپل بحث داسې پیل کړ :

شوروي اتحاد او نور سوسياليستي هيوادونـه سره لـه دې چې د آسيا او افريقا د ځينو نويو ازادو شو يو هيوادونو سره د اتحاد او نژديوالي د پالیسۍ تشويق او ملاتـړ کوي 'د دې مطلب دا نـه دی چې په دغو هيوادونـو کې کمونيست ګوندونه او ديموکراتيک ځواکونه ټول په عمومي توګه پـه هر ډول شرايطو کې د دوی د حکومت ملاتړ وکړي او د دموکراتيکو آزاديو له پاره د مبارزې غند نه وکړي'. ده وويل چې نه يله ټولنيزه ډله ، نه بل پوړ او نه کوم سړی د کارګـر پـوړ تاريخي دنـده پـه غاړه اخيستي شي . هغـه دا خبره ومنلـه چې داسې شرايط راځي چې يو بل ټولنيز پوړ يا کوم ځانګړی مشر د 'فاشيزم ، امپرياليزم ، جاګيرداری او په ځينو حالاتو کې د لويو پانګه والو پرضد مبارزه کې وړاندې کيږي' . د دوی ملاتړ بايد وشي ، 'خو مونږ بايد بيدار او سو چې دغسې اتحادونـه د غلطو او پوچو نظرياتو تر تاثير لاندې داسې رانـه شي چې د کارګر پوړ د رول او کرښې نه مبارزه بلې خوا ته واړوي' .

بکداش ټينګار کاوه چې کارګـران بايد د ټولنيزو بدلونونو لارښود او مشران وي او 'راتلونکي به د پوړونو ترمنځ د مبارزې او د دغې مبارزې په نتيجې پورې تړلی وي' . هغه دغې مفکورې ته پـه شک وکتل چې وايي هغـه چا چې مارکسيزم څه ناڅه منلی دی پـه راتلونکې کې به په دې پوي شي چې ټول ومني - 'داسې خلک شتـه چې وايي پـه اصطلاح د «عـربي» ، «افريقايي» يا «اسلامي» سوسياليزم پيروانو تـه به بالاخره دا خبره معلومـه شي چې يواځنی رښتينی سوسياليزم علمي سوسياليزم دی . . . تجربې وښودله چې داسې نـه ده' . هغه دا نظريه ردکړه چې وايي د هيواد د لوړ جوړښت په بنسټ کې هم بدلونونه راوړي : 'برعکس ، نړيوال او کورني عوامل د هيواد په لوړ جوړښت کې ناڅاپي بدلون راوړي شي چې پر بنسټ اغيزه وکړای شي' : د الجزاير ، عربي متحدجمهوريت او سوريې د ځمکو اصلاحاتـو ته په ګوتـه نيولو سره هغه وويل چې د پوځ او پوليسو په مرسته يواځې دولتي ماشين د دغسې مسلو د اواري د پاره بسيانه دی : 'څه شی چې د دې کار لـه پاره ضرور دی د خلکو نـه يوه جوړه شوې اغيزمنـه باصلاحيته انقلابي ډلـه ده چې د خلکو باور او ملاتړ ورسره وي' . هغـه داسې خلک سکتارستان وبلل چې وايي د غير کمونيستو ډلوله خوا د لويو پانګه والو پرضد عمل ته د سوسياليزم نوم ورکول سم نه دي : 'همدارنګـه د داسې ويلو ضرورت نـه پيدا کيږي چې دغسې هيواد د سوسياليزم لاره نيولې ده . دا نظر د هغه نظر سره برابر دی چې وويل شي د سوسياليزم د را وړلو له پاره د مشرۍ

رول اوس نور د کارگر پوړ په لاس کې نه دی بلکې دا کار اوس ناسیونالیستانو او کوچنیو بورژوازانو ته پاتې شوی دی، .

د بکداش رسمي ځواب د شوروي په میاشتنۍ مجله کمونیست کې د ۱۹٦٦ کال په جنوري کې د اولیانوفسکي لـه خوا 'پـه ازادو شویو هیوادونو کې د غیر سرمایه داري پرمختګ ځینې ستونځې، تر عنوان لاندې را ښکاره شو .

اولیانوفسکی ولیکل چې 'ژوند د یوکین لاسي بلاک د جوړیـدو غوښتنـه کوي چې ډیر ځیرک او مجهز مارکسیستي لیننستي عناصر پکې د ملي دموکراتانو د دوستانو او مرستیالانو رول ولوبوي ـ د سوسیالیزم د ایدیالوژیکي بل ځراغ او د پرمختللي جنګیالي رول . پـه دغسې بلاک کې د علمي سوسیالیزم پلویلان کولای شي دې ته سمه بنه ورکړي . . . که مارکسیستان ـ لیننستان په کین لاسي بلاک کې دا دنده په غاړه واخلي چې د مترقي عناصرو سره مرستـه وکړي څو غلطۍ ونه کړي نو په حساسو شیبو کې به د پرمختګ د پاره ډیر کټور قدمونـه واخیستلی شي'.

اولیانوفسکی د وروسته پاتې هیوادونو په کمونیستانو انتقاد وکړ چې هلته کارګـري پوړنشتـه ، او دوی غواړي د سوسیالیزم تر راوړلو دمخه د پرولیتاریا دکتاتوري راولي . مطلب دادی چې پـه صنعتي بنسټونو ولاړ پانګـه وال نظام باید جوړ شي ترڅو کارګر پوړ وروزل شي ـ دا نظریـه وختي په ځینو ځایو کې وړاندې شوې او مسترده شوې ده .

هغه وویل چې د ملي دموکراسیو ایدیالوژي خپل هدفمند دلیلونه لري . په دی ډیر وخت تیریږي چې ملي انقلابي ګوندونه د مارکسیزم لیننیزم په لور ولاړ شي . مارکسیستـان باید دومره نرم او د بدلون وړوي چې خلک را ونـه پاروي او دا خبره له یاده ونـه باسي هغه خلک چې د مارکسیـزم یوه برخـه نن مني ، کیدی شي سبا ټول ومني .

اولیانوفسکی هغه کمونیستان وغندل چې د مارکسیستي پاکۍ دعویٰ کوي او د خلکو نه تجرید وي . کمونیستانو ته د ده مشورې داسې وې :

۱ ـ د نوې ټولنې د جوړیدو پـه پړاو کې ، باید د دولت ماشینري د غیر سرمایه داري پرمختګ د اهدافو په چوکاټ کې کار وکړي .

۲ ـ وسله والو قوتونو ته باید ځانګړې پاملرنه وشي ، او هغـه عناصر چې پـه غیر سرمایه داري پرمختګ عقیده نه لري له منځه وایستل شي .

خلک له مرګه ژغورل شوي دي چي پکي د کشتيو قوماندان هم ژوندي پاتي شوي دي . خو مرستيال قوماندان ډوب شوي دي. نوځه وواېم چي په سمندري پوځ کي خلکو څه ويل ، هغوي ويل ، «مونږ پـه دي پوهيدلو چي سره زر ډوبيږي او غول (د انسان فضله مواد) د اوبو په سرلامبو وهي» د خروسچف دستي پام شو دا کيسه ځينو هغو کسانو پوري نښلي چي دي ورسره ناست ؤ ، نو ښښه يې وغوښتله ، وې ويل : البته دا خبره د دي ناستو کسانو د يوه په حق کي هم سمه نه ده .

خو دا د خوشالۍ ورځ نه وه . کوربانه او ميلمانه ټول شپږ ساعته کرچا پير ناست وو ، خبري تـاويـدي را تاويـدي خـو نتيجي تـه نـه رسيدي . کبانونيونکو په کشتيو کي خپلو ميلمنوته په انتظار ورځ تيره کړه خو هغوي را معلوم نه شول په پاي کي خبره داسي شوه چي ټول بايد بيرته لاړ شي . ښکارمو بيا په دا بله ورځ وکړ .

دري ورځي وروسته چي بيا مونږ په قاهره کي د خروسچف په سفر باندي خبري کولي ، ناصر د عارف خبري ته راغئ . هغه وويل چي ، دا خلک په دي نه پوهيږي د روسانو سره څه ډول کوزاره وکړي ، زه غواړم په دي هکله يو کتاب وليکم ـ د لارښوني او زده کړي کتاب ، لکه د يو نوي موټر لارښود ، زما په فکر دا يوښه نظر ؤ ، ورته مي وويل ، راځه په ګډه پري کار وکړو ؟ رښتيا مونږ يوځل د دي پروژي په هکله خبري هم وکړي ، خو بيا مو پريکړه وکړه تر هغيصبر وکړو ترڅو ناصر وزګار شي او خپل يادښتونه وليکي. هغه تل دا خوبونه ليدل چي کله تقاعد شي نو هله به د خپلو يا دښتونو د ليکلو له پاره وخت پيدا کړي .

ناصر په خپل فکر د داسي يو کتاب د ليکلو له پاره روښانه پلان درلود چي څه بايد پکي وليکل شي . هغه دا انديښنه نه کوله چي يو هيواد بايد له شوروي اتحاد سره اړيکي وساتي يا نه ، يا دا اړيکي څومره نژدي وي ، ده دغي تکي سره څه اړه نه درلوده ، يواځي ددې شکل او تخنيک سره يې مينه درلوده .

ناصر په دي فکر ؤ چي د شوروي اتحاد سره د دريمي نړۍ د يو هيواد د اړيکو بيلا بيل پړاوونه او دوري تعريف کړي ، او بيا وروسته يو شمير مشوري ورکړي چي څه بايد وشي، او څه ونه شي. دا به د دريمي نړۍ مشران څه نا څـه پـه دي پوه کـړي د خپلـو شوروي انډيوالانـو سره څـه ډول کوزاره وکړي .

۳ ـ د دولت ماشین باید پاککاري او له سره جوړ شي .

٤ ـ د نوې ټولنې د جوړولو په کار کې باید کارګران په حرکت راوړل شي ، او د هیواد په اداري نظام کې د هغوی رول زیات شي .

٥ ـ د اهمیت وړده چې د ضرورت په وخت کې داسې یو لوړ سیاسي ګوند جوړ یا پیاوړی شي چې د علمي سوسیالیزم نظر او عمل سره نژدې او تطبیق کړي او په دې ډول دولت تنظیم او کنټرول کړي .

اولیانوفسکي کمونیستانو ته په نصیحت کولو کې له ځینو ستونځونه باخبره ښکاریده . په دې کې لاندې ټکي را تلل :

'په هیڅ ډول ټول ملي دموکواتیک مشران په دې نه شي بریالي کیدای چې نظم او دسپلین راولي ، او نه ټول خلک د نوې ټولنې د جوړولو د پاره ضروري سخت کار او زیار ایستلو ته تیار دي . ډیر وختو نه داسې کیږي چې د ملي دموکراسۍ ځینې نماینده ګان خپلو اهدافو ته د رسیدلو له پاره دې وخته اوبې ضرورته تادۍ ، اوبنسټیزو اصلاحاتو او نیمګړي ټینګار څرګندونه کوي .

د ملي دموکراسیو په منځ کې محافظه کار عناصر د علمي سوسیالیزم د خپریدو مخنیوی کوي ، اوښي افراطیون په څرګنده توګه د کمونیستي ضد ایډیالوژۍ د خپرونې کار کوي' . د دې مخنیوی باید وشي .

کمونیستان باید خامخا د دین پرضد مبارزه وکړي ، خو دا مبارزه ډیره ځیرکه او هوښیاره وي . هغه زیاته کړه چې ځینې ملي دموکراتان او آن چې کمونیستان هم هڅه کوي علمي سوسیالیزم د جغرافیوي ، تاریخي ، کلتوري ، ملي او نژادي عواملو په نظر کې نیولو سره د سیمه ییزو شرایطو سره جوړ تطبیق او عملي کړي . داسې خلک په دې عقیده دي چې د انقلابي ارزښتونو په چوکاټ کې ، ملي او نژادي یووالی د طبقاتي یووالي نه ډیر ارزښت لري' . دا مفکوره غلطه ده او پرضد یې باید مبارزه وشي .

د دې ټولو بحثونو نه په قاهره کې داسې نتیجه واخیستله شوه چې په شوروي اتحاد کې د پالیسۍ په ټاکلو باندې پرله پسې خبرې روانې دي ، او کیدي شي د اسیا او افریقا پیښو پرې زیاته اغیزه کړې وي لکه چې د اروپایي کمونیستانو خفګان او غوصه د 'توګلیاتي وصیت ، کې را ښکاره شوه او داسې نور . داسې معلومیدله ښایي د عربي کمونیستو ګوندونو او شورویانو ترمنځ یوه موافقه شوي وه چې کمونیست ګوندونه باید متحد اوسي ، سره له دې به

هم په دوی کې باید بیلا بیل عناصر تر یوې اندازې د آزاد او خپلواک عمل اجازه لري . خو د خالد بکداش او اولیانوفسکي په نظریاتو کې د پاملرنې وړ توپیر ؤ ـ خالد بکداش په دی عقیده ؤ چې هر سیمه ییز ګوند یوه ځانګړې پدیده وګڼله شي او د مارکسیزم لیننیزم شعار څه ناڅه د ستالین د مفکورې په سمون پوره کړي ، خو اولیانوفسکي غوښتل دوی د ملي تنظیمونو په د ننه کې وساتي . داسی خبرې راوتې چې شوروي اتحاد غواړي په یوه دوه بناخیزه پالیسۍ کار وکړي . په ۱۹۶۰ کلونو کې د دوی او سیمه ییزو ګوندونو ترمنځ اړیکې کمزورې شوي دي ، هغه وخت چې په ملی آزادي بښونکو غورځنګونو باندی زیات باور وشو ، خو چې کله د بن بیلا او نکروما غوندې مشران ناڅا په له منځه لاړل شورویان په دې پوه شول چې د مترقي مشرانو شته والی هیڅکله د مترقي پالیسیو د شته والي تضمین نه شي کولای . دوی کمونیست ګوندونه پرېښي وو چې جارو شي او یواځې مترقي مشران د دوی پیروي وکړي . خو مونږ ګومان کاوه اوس هم په سیاسي بیرو کې د نظر اختلاف ؤ ـ پوډګورني ، سوسلوف او پونا ماروف په سیمه ییزو کمونیستو ګوندونو زیاته تکیه کوله ، او برژنف ، کوسیګین او شیلیپین یې مخالف وو . وروستۍ نتیجه دا شوه ، څنګه چې بځونه لا پای ته نه وو رسیدلي ، شوروي اتحاد د یوې نرمی پالیسۍ پلوي کوله ، په داسی حال کې چې سیمه ییزکمونیست ګوندونه به بنایي د ملي تنظیمونو په کینو اړخونو کې ورننوځي او هلته به خپل ځانونه ټینګ کړي .



د منځني ختیځ په وړاندې د امریکی د دریځ سختوالي ، او د روس د دریځ بنستیزې څېړنې ، په عربی هیوادونو کی اټکل شوې نتیجه را ونه ایستله ـ یو شی را ووت چې ورته د امریکی او روس 'دهلیزونه' ویل کیدی شي . کله چې دا معلومه شوه چې په شوروي اتحادکی داسی کسان شته چې ګټی یې د مصر پورې تړلې دي ، او هغوی زمونږ دوستان ګڼل کیدی شي ، نو په مصرکی هم داسی اشخاص را پیدا شول چې د امریکایانو او یا روسانو دوستان ګڼل کیده، خو دا خبره زیاته د یو سوء تفاهم نتیجه وه . فیلډ مارشال عامر به تل د روس په خوا کې بلل کیده ، خو دا یواځې له دی امله چې دی د روس سره د وسله والو قوتونو پورې د تړلو اړیکو مسؤل سړی ؤ ، د عمومي مرستو په هکله د علي صبري موقف هم دغسې ؤ ، په صنعتي چارو کی عزیز صدقي ('د مصر د صنعت تزار') بلل کیده ، او صدقي سلیمان د لوړ بند وزیر ؤ . دوی ټول په پرله پسې

توکه د روسانو سره په معاملو بوخت وو او طبعاً دوی تل دې ته تشویقیدل چې د خپلو معاملـه کوونکو سره ښه ګوزاره وکړي . په همدې ډول ذکریا محی الدین ، عبدالمنعم ، کیسوني او سید ماري د لویدیځ سره د اړیکو مسؤل خلک وو ، نو دوی ته د «امریکایانو خلک» ویل کیدل . خو دا ټولې تاپې ربښتیا بې ځایه وې .

په سیمه کې د امریکې بې باکه سیاست د مصر او شوروي د واړو حکومتونو پاملرنه ځانته را واړوله او ډیر معلوماتونه یې په خپلو منځو کې تبادله کړل . دا هغه وخت ګټور وو ، خو یو کال وروسته یې ډیر جنجالونـه را پیدا کړل . همدارنګه د لوړې سویې اړیکو د درلودلو ضرورت احساس شو ، نو بیا د ۱۹۶۶ کال په مې کې قاهرې ته د کوسیګین د راتلو تیاری ونیول شو . د ده د راتګ نه وړاندې په مسکو کې د مصر سفارت ته څه خبرونـه ورسیدل چې د شوروي اتحاد د مشر تابه کړی په دې ډول غواړي پـه مصر کې د چارو د ربښتینوالي پلټنه وکړي . د مثال په توګه دوی غواړي پوه شي چې ناصر په پوځ او خلکو کې څومره ملاتړ لري ، سوسیالیستي اتحاد څومره قوت لـري ، دوی تر کومې اندازې د ځان او د مصر ټولنیز انقلاب نـه دفاع کولای شي ، پـه پوځ کې تر کومې اندازې دینې اړخ یا مذهبي عناصر ورننوتي دي ، او ایا په پوځ کې کوم سیاسي تنظیم شته که نه ، په هیواد کې د ارتجاعي ځواکونو قوت څومره دی ، او داسې نور . دا ټولې پوښتنې چې د مصر په کورنیو چارو کې لاس وهنه ګڼل کیدی شي ، نیغ پـه نیغـه نـه خو پـه مسکـو کې د مصر د سفیر سـره پـه څو پرله پسې غونډو کې د روس د بهرنیو چارو د وزارت معین سیمینوف راپورتـه کړې .



د دې نه لږ وړاندې د ۱۹۶۶ کال په اپریل کې د صدر اعظم یوسف ظاین په مشرۍ یو سوریایي هیئت د مسکـو نه لیدنه کړې وه ، او دا څرګنده وه چې شوروي د یو شمیر عربي هیوادونو سره اړیکې ښه کول غوښتل ، چې پکې سوریه او الجزایر چې اوس پکې هواري بومدین قدرت ته رسیدلی ؤ ، هم شامل وو . په حقیقت کې دوی پـه عمومي ډول د عربو سره د ډیر نرم دریځ نـه کار اخیست . خو د خپل نفوذ د خپرولو د پاره د نورو عربي هیوادونو سره د دوی اړیکې زیاتې شوې ، دوی د ناصر اومصر سره ځانګړي اړیکي ساتلې او نورو ته په

دې هکله منکر وو . د شرایطو زور او په سیمه کې د کمونیستو ګوندونو له خوا فشار دوی مجبور کړل د خپلې هغې لوړې وعدې نه تیر شي چې د نورو عربو سره اړیکې به د مصر له لارې اداره کیږي ، خو د دې له پاره چې خپله دغه پالیسي لږه آواره کړي نو مصر یې د نورو عربو سره له خپلو مذاکراتو څخه خبراوه . کوسیګین چې قاهرې ته را ورسید ناصر ته یې وویل چې سیاسي بیرولـه ده نـه غوښتي دي تاسې د ظاین سره زمونږ د خبرو لـه نتیجې نـه خبر کړم . ده د شوروي د هغې موافقې نه ناصر خبر کړ چې د سوریې سره د یو بند او یو هایدروالکتریکي برج په جوړولو کې مرستـه کوي ، او لـه ناصر نـه یې پوښتنه وکړه چې د ده خوښه ده که نه . ناصر اریان شو ـ هغه وویل ، ’هر کار چې د هر عرب هیواد له پاره کیږي مونږ د هغې هرکلی کوو‘ . د خبرو په منځ کې د ژبې په سر کوسیګین له ناصر نه پوښننه وکړه چې په دې کې کوم ځانګړې اهمیت ویني چې د سوریې دري واړه لوی مشران ، جمهوررئیس ، صدر اعظم او د بهرنیو چارو وزیر ـ ډاکټران دي . د ناصر ځواب دا ؤ چې : ’ته راته ویلی شي پـه دې کې کـوم ځانګړی مطلب پـروت دی چې برژنف ، پودګورني او ته دري واړه انجنیران یاستئ‘ ؟

کوسیګین بې له شکه په دې پوی شو چې له شوروي اتحاد نه پـه بیلابیلو برخو لکـه وسلې ، صنعت ، پور ، غنم او نوروکې د مصر پـرلـه پسې غوښتنې تاو تریخوالی را پیدا کوي ، او دواړو خواوته په کار ده چې په دې ځان پوې کړي . نو ، سره لـه دې چې ده د دغو پوښتنو ځوابونـه پلټل ، خو پـه ډیره ماهرانه توګه یې دا ټکي راپورته‌کول . هغه د سوریې د نوي رژیم سره د مصر په اړیکو ځان پوه کول غوښتـل . شورویانو داسې وښودلـه چې غواړي مصر باید د بعث د ګوند د کینې اړخ د حکومت ملاتړ وکړي ، چې پکې کمونیستـانو هم برخه درلوده ، او د دې نه پـه ویره کې وو چې کیـدی شي د سوریې او مصر ترمنځ هماغسې اختلاف را پیدا شي لکه چې د عـراق د قاسم سره یې پیدا شوی ؤ . کوسیګین همدارنګه په مصر کې د سیاسي تنظیمونو په هکله ډیرې پوښتنې وکړې ـ پـه عربي سوسیالستـي اتحاد کې کـدري ډلې څنګـه وده کوي ، او داسې نورې .

بیا بحث جنجالي شو . پـه منځني ختیځ کې د ورځ پـه ورځ خرابیدونکو حالاتو له امله ـ د سوریې او اسرائیلو ترمنځ زیاتیدونکې تاو تریخوالی ، د سوریې د رژیم له خوا جنګ ته تیاری او مصر له دې امله ملاتړول چې په ګډه مبارزه

کی مرسته نه کوي ، د الفتح د فعالیتونو زیاتوالی ، ناصر داسی احساس کړه چی د نورو وسلو د پاره غوښتنه وړاندې کړي ، او هم یې شوروي اتحاد نه د ځینو پخوانیو پورونو د سود ورکولو د ځنډیدلو غوښتنه وکړه . کوسیگین څرګنده کړه چی له بده مرغه دغه غوښتنې په مسکو کی د مصر د سفیر له خوا د شوروي د بهرنیو چارو د وزارت معین سیمینوف ته ډیرې ناوخته وړاندې شوي چی د ده تر راتګ وړاندې پري سیاسي بیرو غور کړای وای . هغه زیاته کړه چی نوی مشرتوب څه ډول کارکوي ، تینګار یې وکړ چی غوښتنې باید مسکو ته ډیرې وختي ورکړل شي ، ترڅو په سمه توګه ترغور او اجراء لاندې ونیولې شي . هره غوښتنه باید د اړوندې ادارې له خوا وڅیړله شي ـ اقتصادي ، صنعتي ، وسله وال پوځونه او نور ـ د سیاسی بیرو د عمومي پالیسۍ په رڼا کی ، د دغو ادارو د سپارښتونو په چوکاټ کی د سیاسي بیرو تر غور وروسته تصویبیږي . تول هغه څه چی ده وویلای شول دا ؤ چی دی به په مسکو کی وګوري چی د مصر د وسلو غوښتنه د مناسب چینل له لارې شوې ده .

کوسیگین وویل چی د شوروي د پورونو د سود ورکولو د وروسته کولو غوښتنه چی مصر یې کوي ډیره ګرانه خبره ده په داسی یوه غوښتنه کی یواځې مصرنه راځي ، بلکی دا داصولو خبره ده چی نور هیوادونه هم بیا دغسی غوښتنې راپورته کوي . هغه وویل چی شوروي اتحاد د دریمی نړۍ په هیوادونو باندې ٢٤ میلونه روبله پور لري ، او که د دغې پور بیرته ورکولو کی هر ډول ځنډ راځي دا به د شوروي اتحاد عمومي پلان تربدې اغیزې لاندې راولي . هغه وویل چی شوروي یو پلانیزه اقتصادي نظام دی ، او دوی مجبور دي پوي شي هر کال په هره برخه کی کوموشیانو ته څومره اړتیا ده . هغه د ویتنام په جنګ پوری تړلو د شوروي اتحاد استثنائي ستونځوته ګوته ونیوله . هغه وویل 'چینایان ډیرې خبرې کوي ، خو دا مونږ یو چی ورکول کوو' . هغه ګیله وکړه چی شمالي ویتنامیان د اعلیٰ درجی روسي وسلو ډیپوګان لري چی کار ځني نه اخلي ، دا یې د ذخیرې په توګه د راتلونکي له پاره ساتلي دي . همدارنګه شوروي اتحاد شمالي ویتنام ته تول هغه څه برابر کړي دي چی دوی غوښتي ، داسی وسلې یې هم ورکړي دي چی دوی بیخي نه پیژندلې ، او تکنیشنان یې ورلیږلي دي چی د وسلو د کار چل ورزده کړي . هغه دا هم څرګنده کړه چی شوروي اتحاد شمالي ویتنام ته د پوځي قطعاتو د وربښلوست هم کړی دی ، خو هغوی نه دی منلی ، او داسی معلومه شوی ده چی چینایان په شمالي ویتنام کی

د روسي پوهنتونو والی نـه شي زغملای . کله چي کوسیګین یادونه وکړه چي شمالي ویتنامیانـو د وسلو د یو ستراتیژیک ګودام د جوړولو ارزو درلوده ، د ناصر زغم ونه شو او وی ویل چي 'مونږ هم غواړو وسلې ذخیره کړو' .

کوسیګین ناصر ته کیسه وکړه چي ده کله د هوچیمن سره د ویتنام د جنګ د پراختیا په هکله خبرې کولې ، ویلي يې ؤ چي که جنګ بس نـه شي امریکایان به نور پوځونه هم راولیږي ، یا به جنګ تر ډیرې مودې روان وي ، هوچیمن په داسی ویلو سره چي 'زه غواړم هغوی نور پوځونه راولیږي'. هغه هک پک اریان کړ . هوچیمن ناصر ته ویلي ؤ چي د روسانو په دی کی هیڅ کار نشته د هغه چا د پالیسیو سره غرض وکړي چي پـه ویتنـام کی جنګیږي : 'هغوی چي فکر کوي چینایان د خپلې مفکورې د کلکولو لـه پاره مونږ جنګ تـه تشویقوي ، بیخی لیوني دي . که څوک مونږ ته را شي او ووایي چي غواړي منځګړیتوب وکړي ، مونږ به ورته ووایو چي هانوي چي مونږ سره څه معامله نـه لري - زه غواړم د جنوبي ویتنام د ملي آزادۍ بښونکې جبهې سره خبرې وکړم' .

ناصر ته پـه یو پیغام کی هوچیمن یادونـه کـړی وه چي ده او . م . ن . روی هندي کمونیست په ګډه د لینن سره په یوه کتـنه کی دواړو هغه ته وویل چي د رښتیني نړیوال انقلاب مرکز په اروپا کی نه شي کیدي ، دا مرکز به حتماً پـه آسیا کی وي ، ځکه د نویو کارګـري ځواکونو زیات شمیر خلک دلتـه پراته دي .

د کوسیګین نه په قاهره کی مونږ بله غوښتنـه دغنمو وکړه . ناصر ورتـه کیسه وکړه چي د امریکایانو سره مونږ څومره ستونځې لرو ، مونږ پـه کال کی له دوی نـه یونیم میلون ټنه غنم اخلو ، خو اوس هغوي ګواښیږي چي کم يې کړي ، یا يې کیدي شي بیخي بند کړي . ناصر غوښتل ځان پوه کړي که دا کار وشي په دې برخه کی په شوروي اتحاد حساب کیدي شي ، که نه ، چي مصر ته مرستـه ورسوي . کوسیګین پـه دې هکلـه ډیر رښتینی ؤ . هغـه وویـل دغنمو براېرول د شوروي اتحاد د ټولو نه کمزوری ټکی دی . هغه پوښتنه وکړه چي مصر ولې زیات غنم ونه کرلي شول . ناصر ورته بیان کړه چي مصر د خپلې کرنې ورځمکی نه ډیر ښه حاصل ترلاسه کړی دې . یو جریب ځمکی په کال کی د ۳۷ پونډو پـه ارزښت غنم ، د ۱۲۰ پونډو په ارزښت چغندر او د ۲۵۰ پـونـډو په ارزښت میوې او سبزیجات حاصل ورکړی دی . کوسیګین په دې خبره خوشاله

شو . وی ویل ، ‹مونږ به وګورو ، دا ټول د فصلونو پورې اړه لري . زه درسره د څه شي وعده نه شم کولای . تاسې به دوه شیانو ته انتظار باسئ - موسم ته او سیاسي بیروته› .

د دی نه دوه میاشتې وروسته د ناصر د غوښتنو ځواب په ډیره عجیبه غیر مستقیمه لاره را ورسید . په مسکو کی په یوه میلمستیا کی چی د مصر سفیر د جولای د انقلاب د کلیزې د مراسمو د لمانځلو له امله کوله ، یو لوړ رتبه مامور هغه ته ور نژدې شو او ورته وی ویل : ‹زما نوم مه اخله ، خو فکر کووم دغنمو د غوښتلو له پاره به اوس ډیر مناسب وخت وي› . په دومره کوچنیو خو مهمو لارو سره شورویانو د مصر په وړاندې چی اوږدې اړیکې یې ورسره درلودې ، غوښتل خپل دریځ پیاوړی کړي .

کوسیګین داسی یوسړی دی چی تل د واقعیتونو او ارقامونه خوند اخلي . دا د ده د کتنې په وخت کی د خبرو په دوران کی هغه وخت ښه څرګنده شوه چی په قاهره کی د ځمکې لاندې د ریل د ګاډي د سرکونو د یو سیستم د جوړولو په امکاناتو له ده سره خبرې وشوې ، ترڅو د قاهری زړه او اوږده ترافیکي ستونځه آواره شي . آیا شوروي اتحاد به په دې کی مرستې کولو ته تیاروي ؟ کوسیګین فوراً تخنیکي پوښتنې را ګوزار کړې - داسی ؤ لکه د اوبو یو بند چی را خوشې شي . انجنیران به د څه ډول خاورې سره مخامخ شي ؟ ډبرې دي که خاوره ؟ په څه نسبت ؟ د ساختماني مسلکي بیلا بیلو برخو د لګښت په هکله یې له خولې نه ډیر زیات ارقام راوایستل . ده هاغسې تخنیکي جنجالونه وشمیرل لکه څنګه یې چی بیا څه موده وروسته د لوړ بند نه د برق د لاس ته راوړلو د پروژې په هکله خبرو اترو کی را وایستل .



په عمومي ډول زما په فکر د شوروي نوي مشران اوس په دی لږ لږ پوهیدل چی له ناصر سره لږو ډیر په کوم واټن کی وو ، خو نورې عربي نړه دوی ته له سر دردۍ پرته نوره هیڅ ګټه ونه رسوله . دوی په تیره بیا د دمشق او بغداد د رقیبو بعث رژیمونو ترمنځ د ترخو ناندریو تبادله کولو ډیر په عذاب کړل . د ۱۹۶۶ کال په دوبي کی د دغو دواړو رژیمونو بیل بیل هیئتونه مسکو ته لاړل ، کوسیګین ته وخت په لاس ورغئ د سوریې د بهرنیو چارو د وزیر ډاکټر ابراهیم ماخوص نه یې پوښتنه وکړه چې ولې د ده حکومت د عراق د حکومت د پالیسیو سره مرسته نه کوي . ماخوص ورته وویل ،

'کوند پالیسي تاکي ، اوزه یواځې د بهرنیو چارو وزیر یم . خو له یاده مه وباسه چې زمونږ او د عراق د حکومت ترمنځ وینه توی شوې ده' . کوسیګین اریان شو ، 'وینه' ، ستا مطلب څه دی' ؟ ماخوص وویل ، 'دا یو کسات دی' ! ماخوص همدارنګه کرومیکو ته ګیله وکړه چې خالد بکداش په دمشق کې د لوی حمیدیه بازار سوداګرانو ته ویلي ؤ چې دوی د سوریې د اقتصاد له پاره ډیر مهم دي او بدکارو بعثیانو تاسی و ځپلئ . د اریانتیا وړنه وه چې د شورویانو په دغو سیمه ییزو د ښمنیو سرنه خلاصیده .

لږ وروسته کله چې د عراق صدر اعظم عبدالرحمن بزاز 'په د مشق کې د هغو بې مسؤلیته خلکو' په هکله خو له پرانستله ، کوسیګین ورته د خفګان نه د ډکو ښنو په الفاظو کې وویل : 'ښه به داوي چې د یو بل په سروهلو باندې لږ وخت ونیسئ او زیات وخت د اسرائیلو په سروهلو تیر کړئ' .

دا وخت ؤ چې په عربي نړۍ کې د کا جي بي فعالیتونه را څرګند شول . د دې نه وړاندې د روسانو د پاره د معلوماتو د را ټولولو دومره ضرورت نه لیدل کیده ـ مصر ته د وسلو کاروان دوی ته دا فرصت په لاس ورکړ چې معلوماتونه را ټول کړای شي . خو اوس دوی د یو شمیر داسی معاړې پوښتنو سره مخ وو چې ځوابونه یې غوښتل ، په تیره بیا د مصر او امریکې ترمنځ د اړیکو په هکله ، چې په دې برخه کې دوی تل بدګومانې کوله . د نړیوال بانک د رئیس جارج وډز سفر قاهرې ته دوی ډیر راوپارول . په مسکو کې د مصر د سفارت د آتشي دوه غړي هر یو د سلوطلایې سکو په قاچاق په مسکو کې نیول شوي وو ، دوی ته ویل شوي وو چې په دې شرط به دوی خوشي شي چې موافقه وکړي د کا جي بي د پاره کار وکړي .

د همدغې مبارزې د یوې برخې په توګه څوکسه مصري پوځي منصبداران چې په شوروي اتحاد کې په زده کړه بوخت وو ، یوه ورځ یې د دوی د پاره ټاکل شوی د سوسیالوژي درسي کتاب چې نوم یې د 'کمونیزم علمي بنسټونه' ؤ ، راوور ، دوی په دې کار سره ډیر اریان شول. همدارنګه د دوی د استوګنې په کوټو کې ډیرې ډیرې کمونیستي ادبیات او کتابونه ایښودل شوي وو . د شورویانو سره یو لیکلي تړون لاسلیک شوی ؤ ، مصري پوځي منصبداران چې په شوروي کې زده کړه کوي ، ایډیالوژیکي او فلسفي درسونه به پرې نه لوستل کیږي ، په دې هکله عاصر ، کرېمکوته یو شکایت ولیکه .



په دې کې شک نشته چې د ۱۹۶۶ کال په دوبي کې شورویان د نړیوال عمومي حالت له امله ډیر اندیښمن وو . هغوی داسې پوې شوي وو چې رئیس جانسن هرخطرناک کار ته لاس اچوي ـ 'هغه له ډالس نه زیات خطرناک دی، ' برژنف اوتانت ته په همدې عبارت وویل ـ دوی ته دا خبره هم بې وخته ښکاریده چې د تاو تریخوالي په داسې یو وخت کې هغه عربي هیوادونه چې دوی خپل اندیوالان ګڼل ، وکولای شي خپل منځي اختلافونه اوار کړي . یقیناً دوی اړزو درلوده لږ تر لږه مترقي رژیمونه لکه مصر ، عراق ، سوریه او الجزایر باید د یوې ګډې متحدې جبهې په بڼه عمل وکړي او د وینې اوکسات په ناندریو کې ځانونه ښکیل نه کړي ؟ د ایپسینا ، هسپانیې ، د سار او استریا کیسې دوی ته په یاد وې او له دینه ویریدل چې یوځل بیا خپل منځي اوکورنۍ شخړې دلته د لویو قدرتونو د مداخلې او لویو جنګونو د پیښیدو سبب نه شي .

د ۱۹۶۶ کال د اکتوبر په ۷ مه په مسکو کې د مصر سفیر مراد غالب قاهرې ته یو راپور راولیږه چې پکې د روس له نظره د حالاتو خیړنه شوي وه ، هغو خطرونو ته ګوته نیول شوې وه چې مصر ته متوجه وو د دوی په فکر مصر ورته باید له پیښیدو وړاندې تیاری ونیسي . هغه لیکلي وُ شورویان په دې عقیده دي چې د سیمې په هکله د امریکې نوې پالیسي د جوړیدو ترکار لاندې ده . د ناټو پوځي تړون نه د دوګول په وتلو سره امریکې په فرانسه کې خپل ځای له لاسه ورکړ . ایټالیه هم د دې ځای نه شي نیولای . د مدیترانې په بله خوا کې ترکیه اوس هم د امریکایانو په لاس کې ده خو د هغه هیواد خلک د امریکا د نفوذ سره مخالف دي . پرځای یې د مدیترانې جنوبي سواحل یوه ممکنه ستراتیژیکه سیمه ګیدای شي ، او دا به د امریکایانو له خوا په تونس ، مراکش ، لیبیا او آن په الجزایر باندې زیات فشار راوړي شي . یواځنی هیواد چې په دغې ستراتیژۍ کې جوړ نه راځي مصر دی ، نو د امریکې هدف به دا وي چې مصر خراب کړي او په عربي نړۍ کې د ده د زیات نفوذ لرونکي موقف له منځه یوسي .

مراد غالب وړاندې وویل چې شورویانو ده ته ډاډ ورکړی دی دوی داسې معلوماتو نه ترلاسه کړي دي چې امریکایان لګیادي په شمالي افریقا کې خپل مرکزونه تقویه کوي (دې د کنټرول د یوې کوټې مفهوم درلود چې د لیبیا

حکومت پرې نفوذ نه درلود) د میزایلو تراغیزې لاندې یې راولي ، او دا د جنګ په وخت کې د مصر او سوریې پرضد په کار اچول کیدی شي . د دی مطابق داسی کیدي شي چې امریکا یې میزایل به د یو عربي هیواد له خاورې نه په بل عربي هیواد کې په هدف باندې ویشتل کیږي ، او په داسی شرایطو کې بـه د شوروي اتحاد لـه پاره ګرانـه وي پرځای ځواب ورکـړي . بنایي دا هغـه څـه وو چې امریکایانو غوښتل. شورویان له دی ویریدل چې کیـدي شي سیا داسی شرایط را پیدا کـړي چې په سیمه کې د جنګ اوربل کړي . که داسی کار وشي ، مصر به برید پیل کوونکی وګڼل شي ، امریکایان بـه پـه دې پلـمه مداخلـه وکـړي چې غواړي دلته سوله وساتي .

د دی تحلیل په رڼا کې شورویانو په عربي نړۍ او شمالي افریقا کې د بهرنیو پوځي اډو د شته والي پرضد په کلکـه او پرله پسی توګه مبارزه ټینګـه کړه . دوی همدرانګه د عربو د خپل منځي مخالفتونو د آواري هڅې وکړې او په کلکه یې د داسي شرایطو د را پیدا کیدلو مخنیوی کاوه چې د عربـو ـ اسرائیلو ترمنځ تاو تـریخوالی پـه جنګ بـدل شـي . د شوروي وروستۍ انـدیښنـه داوه چې کیدي شي د امریکایانو نـوې پالیسي مصر تـه د لـویـو اقتصادي مرستو پـه ورکـولـه سره پیـل شي . کیـدي شي مصـر دا مرستـه ومنـي ، خـو دا حقیقت باید ولیـدل شي چې دا د مصر د پوره ورانولو د پاره یو دام دی ، او باید د دی مقابله وشي . په څرګنده توګه سیاسی بیرو په دی هـکـله ډیـر سوچ کړی ؤ . دوي په دی ښه پوهیدل چې اوس هم مصر بنسټیـز رول لوبوي ، او خپلې اړیکې یې له مصر سره (تودې) وساتلې . اوس هم مصر د دوی په سترګو کې د عربي نړۍ ترټولو غښتلی هیواد ؤ ، خو دا د الف درجی له موقف نه اوس په کراره کراره را ښوئیده .

یوه میاشت وروستـه د ۱۹۶۶ کال پـه نومبر کې عامر مسکو تـه لاړ ـ کوسیګین ورسره د عربو ـ اسرائیلو مسله را پورته کړه . داسی ښکاریده دا لومړی ځل ؤ چې شوروي اتحاد د دغې مسلې د آواري له پاره په ټینګـه فکر کول پیل کړي ؤ . کوسیګین پوښتنه وکړه داسی کومه لاره شته چې پـه سیمـه کې د وسلو اندازه را کمه کړای شي؟ دا داسی یوه پوښتنه وه چې مصر به زیاته له امریکایانو نه اورید له ، نه د روسانو نه .

✱ ✱ ✱

د هغو خبرو له مخي چي په دي هکله ما له ناصر سره کړي وي ، ناصر په دي فکر ؤ چي د دريمي نړۍ مشران بايد دي ټکي ته پام ولري چي د شوروي اتحاد سره دهغوي اړيکي له پنځه يېلا يېلو پړاوونو نه تيريږي، که څه هم حتمي نه ده دا ټول پړاوونه يو په بل پسي په يو تاکلي ترتيب سره راشي . هغه دا پړاوونه په دي ډول بيان کړي دي :

## ۱ - بـد گومـاني :

د ټولونه لومړی د بدګومانۍ پړاو راځي . شورويان د دريمي نړۍ د هر نوي آزاد شوي هيواد مشر ته د بدګومانۍ په سترګو ګوري . يا به د شوروي په مطبوعاتو او راډيو کي بيخي د هغه نوم نه اخيستل کيږي او يا به پړي لفظي حملي کيږي . که څه هم د شوروي اتحاد عمومي پاليسي په هرځاي کي د آزادي ښونکو غورځنګونو د ملاتړ په پلوۍ کي ده ، البته د هغوي د مشرانو انګيزي او مفکوري تل د شک وړدي . شورويان ناسيوناليزم ته يواځي د طبقاتي مبارزي او تاريخي تکامل د يو پړاو په توګه ګوري . که يو ناسيو نالستي غورځنګ په پوځ کي را پيدا کيږي ، زيات شک پړي کوي ، د دوي په عقيده اکثره پوځيان د انقلابي طبيعت پرځاي انقلابي ضد دريځ او فاشيستي خوي لري . د شوروي په نظر دي ټکي ډيره اغيزه کړي ده. د تاريخ په اوږدوکي دښي لاس عناصرو د پوځ په مرسته کودتا ګاني کړي دي، پهلاتينه امريکا او سوريې کي پخوانۍ کودتا ګاني دا ډول وي . د دوي نظر په دي هکله تر ډيري اندازي سم دي ، ځکه دا کود تاګاني دلته د برتانوي او امريکايي د تيلو د لويو شرکتونو ترمنځ د سيالۍ پربنسټ شوي وي. (په لومړيو کي دوي په ناصر هم د شطرنج د يو پياده ګومان کاوه ، چي په منځني ختيځ کي د برتانيې او امريکي استعماري سيالۍ زيږولی دي . آن چي د باندونګ (۱) له کنفرنس وروسته هم د شوروي راډيو ناصر د امپرياليزم ډکو ډاکي په نامه ياداوه . د دريمي نړۍ د پوځ په هکله د شوروي اتحاد نظر يواځي په دي وروستيو وختو کي بدل شوي دی (۲)

## ۲ - وقـفه يا فاصله :

معمولاً يو څه پيښيږي ترڅو لومړی پړاو په دويم پړاو بدل کړي. البته شورويان

---

۱ - د آسيايي او افريقايي هيوادونو لومړی کنفرانس د اندونيزيا د باندونګ په ښارکي د ۱۹۵۵ کال په اپريل کي وشو .

۲ - د «ناصر په کتاب» کي زما تبصري په قوسونوکي راغلي دي .

د څه وخت راهیسې ناصر په دې فکر ؤ چې برژنف مصر ته را وغواړي . دا غوښتنه په غیر رسمي توګه شوې هم وه ، چې لومړی ځل ورسره برژنف خوښي څرګنده کړې وه . خو هغه غوښتل پوې شي دا میلمستیا به په څه مناسبت وي ؟ هغه ته وویل شو چې د لوړ بند د بجلۍ برج په کار پیل کوي ، هغه دا مناسبه وګڼله . بیا مسکو په دویم چرت کې شو . له دینه په ویره کې شو چې دا کتنه به خلکو ته د خروسچف راتګ ور په یاد کړي ، او د هغې سره به يې خلک پرتله کړي . نو لیک يې را ولیږه ، بښنه‌يې وغوښتله او مصر ته يې خپل سفر وځنډاوه . ۱۹٦۷ کال د روسي انقلاب پنځوسم کال ؤ ، دوي غوښتل دا کلیزه په شاندارو مراسمو ونمانځي . مسکو پاک شو ، خلک وخوځیدل ، اضافي مصرفي شیان بازار ته راوړل شول او د سیاسي بیرو غړي په ټول هیواد کې خپاره شول چې د جشن له پاره تیاری ونیسي . په حقیقت کې په دې باندې یو شمیر انتقادونه کیدل چې په دی وروستیو کې برژنف په بهر کې په سفر کولو باندې زیات وخت تیر کړ ، اکثره وخت د ختیځې اروپا په هیوادونو کې ؤ ، د دې خبرې احساس کیده اوس هغه وخت دی چې کورنیو معاملوته باید زیاته پاملرنه وشي .

خو ډیر شیان وو چې خبرې پرې کیدې ، او شورویان له دینه بنه خبر وو په عربي نړۍ او د دریمې نړۍ‌په هیوادونو کې په پرله پسې توګه دا اندیښنه موجوده وه چې دیتانت څرنګه عملي کیدي شي (دا وخت د 'یوه نوي یلتا' په هکله ډیرې خبرې کیدې .) د ۱۹٦۷ کال په مارچ کې دوی ګرومیکو ددرې ورځو په سفر قاهرې ته را ولیږه . ګرومیکو په طبیعي ډول د برژنف عوضي نه ؤ ، خو چې څنګه راورسید وې ویل چې دی د بهرنیو چارو د وزیر په حیثیت نه دی راغلی بلکې د سیاسي بیرو د کاندید غړي په توګه راغلی دی ، هغه په دې خبره ټینګار وکړ چې د مصر سره د شوروي اتحاد اړیکې دومره اهمیت لري چې تل ورته د سیاسي بیرو پاملرنه وي . ګرومیکو ناصر ته ډاډ ورکړ چې شوروي اتحاد له امریکې سره پټ تعهدات نه لري . هغه وویل : 'دانه شوی دي ، او نه به وشي .' امریکایان غواړي ستونځې را پیدا کړي . دوی غواړي داسې وښیي چې اړیکې يې له مونږ سره ښې شوي دي ، او مونږ او دوی په هر شي کې سره مشوره کوو . خو دا ربنتیا نه ده . د مثال په توګه په قاهره کې د امریکې شارژدافیر غوښتل هلته زما له رسیدو نه لږ وړاندې زمونږ د سفیر سره په تماس کې شي . زمونږ سفیر داسې فکر کړی ؤ چې امریکایان غواړي زما د سفر

پورې تړلوتکو باندې خبرې وکړي او کیدي شي له دی امله یې له مسکو نه هدایت غوښتی وي . مونږ ورته وویل چې د امریکې شارژدافیر وګوره . خو چې کله امریکا یې راغې زما د مسافرت په هکله یې څه هم ونه ویل ، د دې نه زمونږ یواځینۍ نتیجه دا کیدي شي چې د دوی آرزو دا وه چې تاسې ته یوه مفکوره درکړي چې امریکایان او مونږ په خپلو پالیسیو کې یو د بل سره مرستې کوو' .

ناصر له ګرومیکو سره په ایران باندې د ۱۹۶۷ کال د فبروري د وسلو خرڅولو مسئله راپورته کړه . دوی ولې د ایران په ارتجاعي حکومت باندې وسلې پلوري په داسی حال کې چې د دوی د مصر غوندې دوست هیواد د وسلو په تړلاسه کولو کې له څومره ستونځو سره مخامخ دی ؟ ګرومیکو وویل ، ښاغلی رئیس ، 'ته داسی فکرکوي چې د وسلو دغه خرڅلاو د امریکایانو په مرسته شوی دی . خو دا رښتیا نه ده . دا مونږ وو چې له شاه سره موله نوښت نه کارواخیست . د امریکایانو هدف دادی چې شوروي اتحاد له خپلو اندیوالانو نه بیل کړي او د امریکې او روس ترمنځ لاس وګریوان کیدو ته شرایط برابر کړي ، ترڅو دا کار نړیوال کمونیستي غورځنګ ته زیان ورسوي او ملي آزادي بښونکي غورځنګونه کمزوري کړي ، د چین او روس دښمني ژوره کړي د چین هغه ادعا پیاوړې کړي چې وایي دیتانت په ساده ډول د نښتې په مفهوم یوه بله خبره ده ، او د ویتنامیانو د جنګ روحیه کمزورې کوي . خو زه تاسې ته رښتینې ډاډ درکوم چې زمونږ او امریکایانو اړیکې ډیرې زیاتې ترخې دي .



د ګرومیکو د ډاډ سره سره په داسی لویه پیمانه بدګومانۍ روانې وي چې د روسانو او امریکایانو ترمنځ څه خبرې شته ، او دا یواځې د عربي حکومتونو پورې محدودې نه وې . هندیان هم پکې شریک وو ، او الجزایر په دې فکر کې وُ چې د ټولو هغو حکومتونو یوه غونډه راوبولي چې د شوروي اتحاد سره نژدې اړیکې لري .

په حقیقت کې په قاهره او نورو پایتختونو کې لکه لندن ، واشنګتن او مسکو کې چې عربي سفیرانو په غیر رسمي توګه د غونډوکولو عادت نیولی وُ ، یو د بل سره یې معلوماتونه تبادله او پرتله کول . عمومي نظر دا وُ چې شورویانو د ویتنام د جنګ د پیښیدو په هکله اندیښنه درلوده او تیاری یې ورته نیوه ، او د عربو سره د خپلو اړیکو په نیولو او ساتلو کې ډیر ستومانه شوی وو ، نژدې وُ دې ته تیار شي چې خپل لاسونه تري ومینځي . د شوروي وروستی احساس دا وُ چې

'عربان دې دوزخ ته لاړ شي' .

د مثال په توګه ، سوريې راپور ورکړ چې شورويانو د پوروونو په بيرته غوښتلو کې ډېر سخت دريځ نيولی دی (دوی او مصر دواړو د خپلو ځمکو په پوره کولو کې ستونځې درلودې) ، دوی ويل شورويان نه يواځې دا چې د نويو وسلو په بيه کې تيتوالی نه راولي بلکې بيې يې نورې هم لوړې کړې دي . سوريې چې د تمباکو زيات اضافي حاصلات درلودل لــه شوروي نه غوښتنه وکړه چې دا تمباکو واخلي، خو شوروي اتحاد د لومړي ځل له پاره د تمباکو د پيرودلو نه منکر شو . کله چې سوريې ګيله وکړه ، د شوروي اتحاد د بهرنيو چارو د وزارت له خوا ورته ځواب راغئ چې دوی پخپله د خپلو پاليسيو جوړونکي دي او بايد تاوان ته يې تيار اوسي ، چې نه يې شو کولای ، دا ډيره بده وه ، نه به يې کول .

الجزاير وويل زمونږ هغه پيشنهاد چې روس ته مووکړ د سوداګرۍ د يو تړون له مخې مونږ ته غنم د شوروي اتحاد له لارې را شي ، مونږ به په مقابل کې شوروي ته خامه و سپنه ورکوو ، دوی ونه مانه ، خو بيا وروستـه يې ومانه . الجزاير مسکو ته شکايت وکړ چې هغه ګاز چې الجزايـر يې روس تـه ورکوي د هغه ګاز سره څه توپير لري چې روس يې ايټاليې ته ليږي ، د دوی يواځينی ځواب دا ؤ ، هر هيواد آزاد دی چې څه يې خوښه وي هغسې وکړي .

د ۱۹۶۷ کال په مې کې داسې ښکاريده پـه منځني ختيځ کې څـه پيښيږي ! خو چا نـه شو ويلی چې څه بـه وي ، چيرته بـه وي ، او څنګه . قاهرې ته د اسرائيلي ځواکونو د تياري په هکله د مسکو نه اخطارونه را رسيدل ، او تاو تـريخوالی يې پـه سيمه کې زياتاوه . البته دااخطارونه په ښه نيت وو او په رښتيا وو ، اوکيدي شي دا يوه لاره وي چې څنګه يو ستر قدرت په يو سيمه ييز طاقت باندې خپل نفوذ وساتي ، چې د ډار په وخت کې سيمه ييز قوت ځان مجبور ويني د ستر طاقت مشوره واخلي . د امريکې او اسرائيلو په هکله رول سرچپه ؤ . اسرائيلو به امريکې ته معلوماتونه ورکول ترڅو امريکايان په خپل سرنوشت کې راګډ کړي . د امريکې اړيکې د اسرائيلو سره لـه د ننه خوا وې ، خو د روسانو اړيکې د عربو سره د بهر له خوا وې . عربانو تل تيتګار کاوه د روسانو نه آزاد وي ، خو اسرائيلـو دا ښه ګڼلـه چې پـه دې تکي تيتګار وکړي دوی د امريکې پوري تړلي دي. دغه توپير د ۱۹۶۷ کال په جنګ او له هغې نه وروسته دواړو وختو کې ډيرې مهمې نتيجې را وايستې .

# دام (لومه)

نه غواړم بیا د ۱۹۶۷ کال د جنګ د پوځي یا سیاسي اړخ کیسه وکړم ، او دا هڅه هم نه کوم چې د دې بدمرغۍ مسؤلیت او ملامتي په څو برخو وویشم . دلته به یواځې هغه عوامل او شرایط وڅیړم چې دا جنګ یې پیښ کړ او د عربو او شوروي اتحاد ترمنځ په اړیکو یې څه اغیزه وکړه .

هیله ده چې ښه یې بیان کړای شم ، د ۱۹۶۷ کال په اوړي کې ، د شوروي اتحاد دریځ زړه نازړه او بې باوره ښکاریده . په کریملین کې نو یو خلکو ځای نیولی ؤ ، او نوي ډول خلک وو . خروسچف د انقلابي نسل وروستی سړی ؤ چې په لومړیو کې لمسوونکی او په دې وروستیو کې تري کوندي بیروکرات جوړ شوی ؤ ، برژنف او ملګري یې د نوي نسل خلک وو ، اداره چیان او نظریاتي خلک . دوی چې به د شوروي اتحاد له سرحدونو نه بهرته وکتل ، څه ارامي او د مه به یې نه لیدله . په بهر کې د دوی ملاماتوونکو لګښتونو د ننه د شوروي د ټولنې پر اوږو او اقتصاد دروند بار اینبی ؤ او نتیجه یې ډیره لږه وه . ځینې هیوادونه لکه اندونیزیا او ګانا دښمنۍ ته لاس اچولی ؤ اود پورونو له ورکولو یې سر غړاوه ، د مصر او سوریې غوندې هیوادونه چې دوستان وو هم د پورونو د بښلو او وروسته کولو غوښتنې کولې . د اروپا کمونیستي حکومتونو او ګوندونو هم ګډې وډې او ناروا غوښتنې کولې . چین خو څرګند دښمن ؤ . په شوروي کې د ننه د یهودانو د مسلې پورې تړلی د مخالفینو یو پټ غورځنګ روان ؤ چې د امریکې او عربو سره د شوروي په اړیکو باندې ډیر اغیزمن ؤ . په دې دواړو خوا وو کې اړیکې سمې نه وې . امریکا د رئیس جانسن تر مشرۍ لاندې د یوې بې باکې او خطرناکې زمانې نه تیریده ، د وسلو له درکه د شوروي د اوږود بار د سپکولو له پاره امریکې سره د څه دیتانت را ورل هم ډیر ضروري ؤ ، عربانو په تیره بیا په پرمختلونکي کمپ کې ، چې د لویدیځ سره یې ښکرونه اړم کړي وو له شوروي نه خپلې غوښتنې ورځ په ورځ زیاتولې . د عقیدې مخالفه خبره خو داوه چې شوروي په نامه یو انقلابي رژیم ته ډیر پام کاوه چې

اوسنی حالت وساتلی شي ، په داسی حال کی چی د امریکی محافظه کار دولت د خپلو لاس وهنو له لارې په زور او تيري سره د بدلون راوړلو اورته لمن وهله .

زما باور نـه راځي چی د منځني ختيځ لـه پاره شوروي اتحاد کلـه هم يوه څرګنده او پوره ستراتيژي درلودلـه . د وی د منځني ختيځ پـه ستونځو کی ځکی لـه دينـه چی پـه ځان پوي شي ډوب شول . کلـه چی د دوی پښې پـه ختوکی ونښتې ، بيا يی له ځانه پوښتنه وکړه چی آيا عربانو دوی دلته د خپلو ځانو لـه پاره په خپله خوښه راوستي دي او که يواځی له دی امله چی عـربان د لويديځ نه د امتياز اخيستلو له پاره دلته د روسانو شتـه والي تـه اړدي . دا يوه ډيره غمجنه پوښتنه وه ، مطلب دا چی په دی شرايطو کی داسی ښکاريده چی شوروي اتحاد د عربو لـه پاره دويم انتخاب دی . زما پـه ياد دي د شوروي اتحاد دکمونيست ګوند د مرکزي کميټې يو غړي سره می خبرې کولې ، هغه وويل ، 'مونږ تاسی ته دا تولې مرستې درکړې ، خو مونږ له دينه څه ګټه پورته کړه ؟ تاسی اوس هم د لويديځ د خلکو پـه ځير خبرې کـوئ او کلـه کلـه هم هغسې ليکنی کوئ . د مثال په توګه په قاهره کی ولې روسي فلمونه نه ښودل کيږي ، يواځی امريکا يی فلمونه دي ؟ ما ورته وويل ، 'که مونږ روسي فلمونه وښيو ، هيڅوک يی نـه ګوري . دا فلمونـه اکثره د جنګونو فلمونـه دي او ډير خام دي' . هغه پـه دی خبره ټينګار وکړ چی 'کـه تاسی سم تبليغات وکـړئ ، او خلک وروزئ ، هغوی به تشويق شي دا فلمونه ووينی . په هر ترتيب داسی به فرض کړو چی خلک زمونږ فلمونه ليدل نه غواړي ، تاسې ولې هغوي د امريکا يی فلمونو ليدلو ته پريږدئ ؟ هغه زهرجن دي . نتيجه يی دا کيږي چی کلـه لويديځ کومه اشاره کوي ، ستاسې خلک به ورپسې منډې وهي' .

هغه بايد دا اندېښنه نه وای کړای ، امريکي هيڅ ډول اشاره نه کوله . په تيرو دوه دري کلونو کی د منځني ختيځ په وراندې د سوداګرۍ لويو امريکايي کمپنيو په خپل دريځ کی د پاملرنې وړ بدلونو نه راوستي دي . کيدي شي امريکا د يو هيواد رژيم نه خو ښوي خو چی د هغوي په فکر نوموړی حکومت ټينګ وي نو دوی ورسره د سوداګرۍ کولو خطر ته غاړه ږدي . په ١٩٥٠-١٩٦٠ کلونو کی امريکايانو د ناصر د حکومت نه ډير بد وړل ، خو پـه دی پوهيدل چی په سيمه کی دا يواځنی ټينګ او پـه خپلو پښو ولاړ دولت دی او پـه حقيقت کی همدا دولت کولای شي د شوروي اتحاد او کمونيزم د نفوذ او وړاندې تګ پـه

مخ کې کلک ودرېږي خو چې په ۱۹۶۵ کال کې ده یو شمېر بنسټیز قوانین تصویب کړل او شوروي سره نژدې شو ، دوی ورسره وران شول . کله چې د ۱۹٦٤ کال په نومبر کې د سعودي عربستان په حاکمه کورنۍ کې د ننه کودتا وشوه ، پادشاه سعودي لیرې کړ ، امریکایانو لازمه وګڼله د ځواني پادشاه په ځای د ناست ورور فیصل پادشاه ملاوتړي ، په دې ډول د سعودي عربستان سلطنت د امریکې پوري کلک وتړل شو . عربستان ته امریکا یې الوتکې راغلې ، د امریکې د تیلو کمپنیو د یمن د جنګ له پاره دلته د اجیرو عسکرو په نیولو پیل وکړ ، او په ۱۹٦۱ کال کې د تیلو د سابقې او تجربې لرونکی یو سړی جان میکون د امریکې د سیاد رئیس په توګه مقرر شو .

له بده مرغه پرمختلونکې کمپ چې مصر پکې د مشر په توګه ؤ ، ډېر زیات بې اتفاقه ؤ . عراق د عبدالسلام عارف د ورور رئیس عبدالرحمن عارف ترمشرۍ لاندې (رئیس عبدالسلام عارف د ۱۹٦٦ کال د اپریل په ۱۳ مه د هیلي‌کوپتر په یوه پیښه کې مړشو) اوس بیخي یواځې ؤ ، په الجزایر کې بومدین د بهرنۍ لاس وهنې سره ډېر وران ؤ ، خپله شورا یې ساتله . سوریایان په هغه څه کې ډوب وو چې لینن ورته د کین اړخ د انحرافاتو "د ماشومانو بې نظمي" ویله . د فلسطین الفتح خپل یواځینی او د ورانکارۍ بې اغیزې پروګرام روان کړی ؤ .



د ۱۹٦۷ کال د مې په لومړیو کې د ولسي جرګې رئیس انوارالسادات شمالي کوریا ته د یو رسمي مسافرت له پاره د تګ په لاره کې په مسکو کې تم شو او د کوسیګین سره یې وکتل . د وسلو په معامله خبرې اترې وشوې ، ده هم په ایران باندې د روسي وسلو د پلورلو خبره راپورته کړه ، چې ناصر ځوا د کرومیکو سره خیرلې وه . کوسیګین په دې هکله له کرومیکو نه هم ټینګ ؤ . هغه وویل ، "تاسې باید پوی شئ چې ایران زمونږ ګاونډی دی . امریکایان ، برتانویان او جاپانیان هم شته . مونږ شاه ته نه شو ویلای «ورک شه ، ته یو شاه یې او مونږ کمونیستان یو !» . مونږ باید په ایران کې څه ولرو . د ایران د پاره دوسلو د برابرولو یو لوی پروګرام شته ، چې پکې د لویدیځ جرمني په شمول نور هیوادونه هم برخه لري . زمونږ نقشه داده چې شاه بیطرفه کړو . که هغه مونږ ته را نژدې شي ، مونږ ورته نه شو ویلای ، «نه ، لاړ شئ چې څه غواړئ ، د امریکایانو او انګریزانو نه یې وغواړئ » مونږ د خپلې سوداګرۍ اړیکې د ایران سره د هندوانو او زردالانو د اخیستلو او خرڅولو پورې محدودې

نه شو ساتلای . کوسیګین وویل ، ته ووایه ، سونږ باید ایران یواځې پرېږدو ، او که غم یې وکړو ؟ ستاسي د پاره څنګه ښه ده ـ ایران کې د شوروي وسلې ښې دي که د امریکې ؟، سادات هڅه وکړه استدلال وکړي . خو دومره برتالیتوب یې په یرخه نه شو .

د شمالي کوریا نه د بېرته راتګ په لاره کې سادات پوډګورني او د بهرنیو چارو د وزارت معین ولادیمیر سیمیانوف ولیدل ، هغوی ورته یو ډیر باوري خبرداری ورکړ چې په منځني ختیځ کې حالات ډیر خطرناک شوي دي . هغوی خبر وو چې اسرائیل د سوریې په سرحدونو کې خپل زیات شمیر پوځونه ځای په ځای کوي ، او د مې د ۱۸ - ۲۲ نیټې پورې موده کې د برید د پیل کولو تیاری نیول شوی دی . سوریې هم دغسې معلومات قاهرې ته ورکړي ؤ ، د هغوی اټکل داسې ؤ چې یوولس غونډونه د دوی په سرحدونو کې اچول شوي وو . د سوریې په راپورونو یې دومره باور نه کاوه ، خو اوس چې روسانو هم دا خبره تائید کړه ، سادات طبعاً پوی شو چې باید دوی ډیر غور وکړي . هغه لا د مې تر ۱٤ مې پورې بېرته قاهرې ته نه ؤ را رسیدلی ، نو د مسکو د خبرو اترو په هکله یې خپل لنډ راپور پـه مسکو کې د مصر د سفارت لـه لارې پـه ډیـر محفوظ تلګراف کې قاهرې ته راولیږه ، او د را رسیدو سره سم مخامخ د ناصر کورته لاړ او پـه تفصیل سره یې ورتـه د هغو خبرداریو حال ووایـه چې ده تـه ورکـړل شوي وو .

د دې خبردارېو پربنسټ ناصر د مې په ۱٦ مه په هیواد کې هنګامي حالات اعلان کړل اوسینا تـه یې د پوځونو د لیږلو امر ورکړ . دا کار د پوره اندازې تبلیغاتو سره وشو ، ځکه د هغه اندیښنه وه ښایي اسرائیل او نور اړوند اړخونه داسې فکر وکړي چې د مصر پوځونه د یمن په جګړو کې بوخت دي او د سوریې مرستې ته نه شي را تلای . د باور پر خلاف هغه ځوک چې د مصر د پوځونو د خوځیدلـو پـه دغې پریکـړه ډیر ناراسـه شول ، روسان وو . رښتیـا چې مصر د دوی له خوا د ورکړل شویو معلوماتو پربنسټ داسې کار وکړ ، خو دوی دا کار پـه دې نیت کړی ؤ چې زیات نـه زیات د مصر حکومت روحاً دې تـه تیار کړي چې د خطر د را پیدا کیدو په صورت کې له دوی سره مشوره وکړي او نه دا چې په خپل سراو آزادانه عمل وکړي . یو ځل بیا یو ستر قدرت د یو سیمه ـ ییز طاقت سره د خپلـو اړیکو په طبیعت او ما هیت باندې پـه پوهیدلـو کې پاتې راغئ .

عامر په قاهره کې د شوروي له سفیر نه غوښتنه وکړه چې که د ده حکومت وکولای شي د مصنوعي سپوږمۍ په مرسته مونږ ته د سوریې په سرحدونو کې د اسرائیلي پوځونو د تیاري د څرنګوالي رښتینې بنه را وښیي . سفیر وویل هغه به وکړي دا کار وشي . مسکو نه داسې ځواب راغئ چې دوی ته معلومات نه کیږي اسرائیلي پوځونه د برید نیت لري او که دوی د (می ۱۵) نیټې د خپلې ملي ورځې د مراسمو د اجراء په وخت کې د سوریې له خوا د احتمالي برید د مقابلې له پاره تیاری نیسي . د مسکو نه د دې مفکورې راتګ چې د اسرائیلي پوځونو تیاري کیدای شي دفاعي بڼه ولري یو نوی شی ؤ . مسکو اوس په حقیقت کې دوه ژبې کولې ـ د خبرداري او اخطار ژبه او د ځان ساتنې او مخنیوي ژبه .

د اسرائیلو د کار وزیر یګل الون دا وخت په مسکو کې د 'سیاحت' په یو سفر تللی ؤ . د اسرائیلو سفیر د ده په ویاړ میلمستیا کړې وه چې پکې د روس یو شمیر لوړ رتبه رسمي ماموړینو برخه اخیستې وه ' سیمیانوف هم په دې میلمستیا کې ؤ ، ده د اسرائیلو وزیر ته اخطار ورکړ چې د سوریې یا هر بل عربي هیواد پرضد برید به د دې سبب شي چې شوروي اتحاد د اسرائیلو دښمن کړي . الون وویل ، د سوریې پرضد د برید پلان نشته ـ تر هغې ځایه چې د اسرائیلو مسئله ده عربان کولای شي هر ډول سیاسي نظام چې یې خوښ وي د ځانو د پاره غوره کړي . هغه وویل چې 'اسرائیل د نورو د لاسونو ګوډاګی نه دي' (مطلب یې د امریکې ګوډاګیان وو) . خو هغه د الفتحې د لاس وهنې په هکله ګیله وکړه ، او وې ویل چې اسرائیل حق لري د ځان د ساتنې د پاره خپل خلک وسلهوال کړي .

شورویانو د دغو خبرو راپور هم قاهرې ته ورکړ . خو دا ټولې ډاډګیرنې ډیرې ګونګې او پیچلې وې ، او نه د سیمیانوف خبره چې د ۱۹۵۶ کال د یادونې پورې په اړه کې یې کړې وه 'مونږ ټول باید په خپلو پښو ودریږو' څه ګټه رسولای شوه . په همدې وخت کې د بحران شرایط په جوړیدو کې وو . د می په ۱۸ مه د مصر پوځونه سینا ته وخوځیدل ، او د دې د پاره چې خپل ځان پیاوړی وښیي ، ناصر د ملګرو ملتو د مسؤلو مقاماتو نه وغوښتل خپل پوځونه د رافا او تابا ترمنځ سیمې نه وباسي ـ هغه د ملګرو ملتو د پوځونو د بیخي وتلو غوښتنه ونه کړه، هغوی باید یواځې د مصر له سرحدونو نه لیرې شي . خو او ـ تانت د لالف بنچ په تشویق سره په دې ټینګار وکړ چې د ملګرو ملتو د سولې د ساتنې پوځ په سینا کې یوه کلي مسئله ده . داسې نه شي کیدی چې په یوه برخه

کې دښمني وي له هغې ځایه دې دسولې پوځونه ووځي ، او په بله برخه کې دې وي . که د ملګرو ملتونو د سولې د پوځ یوه برخه ځي ، نو بیا به تهول روانیږي .



شورویان د امریکایانو سره په تماس کې وو ، دواړو موافقه وکړه چې او - تانت باید دغې سیمې ته لاړ شي ، هغه د مې په ۲۲ مه د نیویارک نه د قاهرې په نیت روان شو . رئیس جانسن او کوسیګین دواړو ناصر ته لیکونه ولیږل او غوښتنه یې تري وکړه چې د سر منشي سره مرسته وکړي . په همدې وخت کې مصري پوځونو د ملګرو ملتونو د سولې د پوځونو ځایونه نیولي وو ، چې مطلب یې د مصر او اسرائیلو ترمنځ د جنګ حالت پیښبیدونکی ؤ ، د عقبې د خلیج بندول اغیزمن کیدي شو . او تانت چې قاهرې ته د مې په ۲۳ مه ورسید ، هغه د ۱۵ ورځو مهلت غوښتنه وکړه چې نیویارک ته د ده د رسیدو د ورځې نه پیل شي ، او هغه به اسرائیلو ته مشوره ورکړي چې د عقبې د خلیج له لارې په کشتیو باندې د اسرائیلو بیرغ نه ځړوي ، او یا خپل ضروري مالونه په غیر اسرائیلي کشتیو کې راوړي . همدارنګه هغه مصر ته یادونه وکړه چې د بلې خوانه به مصر په خلیج کې د یوې دښمنې خوا په توګه د اقداماتو هڅه نه کوي .

ناصر د مهلت د پاره د اوتانت غوښتنه ومنله ، په دې مفهوم چې ګوندې اسرائیلو هم منلې ده ، او په دې ګومان چې د دواړو سترو قدرتونو ملاتړ ورسره دی .

خو رښتیا د لانجې سره د اوتانت ډیره خطرناکه مرسته په یو پیغام کې ناصر ته د مې په ۳۰ مه نیته را ورسیده ، چې رښتیا د بحران د راګر ځیدو تکې ؤ ، ځکه ناصر فکر کاوه په متن باندې د امریکې او روس د حکومتونو سازش شوی دی ، او د دې مطلب دا ؤ چې په راتلونکو دوه اونیو کې به هیڅ ډول بزید یا تیری نه کوي - د جون د ١٤ مې پورې . لومړی فرضیه سمه وه ، خو دویمه ډیره خطرناکه او غلطه وه . زه ګومان نه کووم چې اوتانت په دې خبر ؤ چې د ده نه په څه ډول کار واخیستل شو ، خو هغه دریځ چې دی پرې د مصر سره ولاړ ؤ ، د مصر د جمهور رئیس معاون ذکریا محی الدین سره چې په همدې وخت کې واشنګټن ته د خبرو له پاره بلل شوی ؤ ، شریک ؤ ، له ده نه هم غوښتنه وشوه چې د جنګ مخنیوی وکړي او هم اوتانت د قاهرې نه د جنګ د پیښبیدو

د مخنیوي غوښتنه وکړه ، د دې تولو نـه اسرائیلو کته پورتـه کړه . د ځینـو دلایلو له املـه د اوتانت پیغام نـه دی نشر شوی ، لازمـه بولم دلتـه یې را نقل کړم :

ښاغلی رئیس :

زه له تاسې او ستاسې د بهرنیو چارو د وزیر ریاض سره د خپلو وروستیو خبرو په هکله عرض کول غواړم ، هیله ده زما په احساس پـوه اوسئ چې ولې تاسې سره نیغ په نیغه شخصي او عاجل تماس نیسم . تاسی ته بـه معلومات وي هغه څه چې زه یې له تاسی نه غوښتنه کوم یواځې د زړه له کومې نه راپورتـه کیږي،کیدي شي په دی ډول وکولای شم منځنې ختیځ کی د یو بل جنګ دهاور د بلیدو مخه ونیسم .

قاهرې ته زما په وروستي سفر کی تاسی ما ته د تیران د تنګي پـه هکله خپل دریځ په څرګنده توګه بیان کړ . زه ارزو لرم ټینګار وکړم زما غوښتنې ته به خپل مثبت ځواب د خپل دریځ سره په ټکر کی نه تعبیروئ . زه فرصت لټوم ، که څه هم لږ وخت وي ، د دې د پاره چې د مشورو او نړیوالو هڅو د پاره موقع ترلاسه کړم ترڅو د دغې خطرناک حالت نه سلامت ووځو . زه په تیره بیا هیله لرم ستاسی پاملر نه هغه څه ته راواړوم چې ما د می په ۲۶مه نیټه د امنیت شورئ ته وویل . زمـا پـه فکر د موجودو خطرناکو شرایطو نه سوله را ایستل د دواړو خوا وو په مرستې پورې اړه لري چې د تاو تـریخوالي حالت د اوسنی چاودیدونکي واقعیت نه یوې خواته کړي .

له دې املـه زه د دواړو خوا وونـه غـوښتنه کـوم چې د جنګ مخنیوی وکړي ، دښمني تر پښولاندې کړي ، او د ټولو هغو عملونو نه ډډه وکړي چې تاو تریخوالی را پیدا کـوي ، د دی لـه پاره چې د امنیت شورئ وکـولای شي مسئله تر غور لاندې ونیسي او مناسب منطقي اواری یې را وباسي .

ښاغلی رئیس ، زه له تاسی نه غوښتنه کوم، لکه چې د صدر اعظم اشکول او ټولو اړوندو خوا وو نه یې کوم ، چې پـه ډیر جدیت سره پـه دې خطرناک وخت کی د جنګ مخنیوی وکړئ . په تیره بیا ، بیله دینه چې ستاسی له خوا نه څه یادونه یا ځواب ته سترګې په لاره شم ، اجازه را کړئ ووایم ارزو لرم د دې پیغام د در رسیدلو نه ذوه اونۍ وروستـه ورځو کی بـه تاسی د تیران لـه تنګي نه د غیر اسرائیلي کشتیو د تیریدلو سره څه ډول جنجال نه کوئ. په دې

دا ځان ته معلوموي چي آيا نوی مشر د زړو استعماري قوتونو پر ضد دی؟ کيداي شي هغه د امريکايي مشرانو سره په دي خبره ټينګار وکړي چي دی د دريمي نړۍ د مترقي ډلوځني د يوي ملګري دي ـ لکه د اسيايي او افريقايي هيوادونو اتحاد ـ د ناپييلو هيوادونو ډله يا د افريقائي اتحاد تنظيم . د وقفي پړاو د بدګومانۍ او د پوره منني ترمنځ وخت بلل کيدي شي . په دغه وخت کي شورويان د نوي مشر په ټولو سوانحو او سابقي باندي ځان پوهوي . د هغوي اخبارونه او راډيو ، نه د هغه صفت کوي او نه يې بد وايي . ويل کيدي شي چي دی دا وخت د هغوي تر څيړني لاندي وي . دا د هغه کار دی چي ځان څنګه ثابتوي . په دي پړاو کي د سوداګرۍ او د مالونو د راکړي ورکړي ډير لږ امکان وي .

## ۳ ـ دواده لومړۍ مياشت (خوږه مياشت) :

بيانو دويم پړاو راځي ، دا اصلاً د ورننوتلو وخت دي . دا پړاو د نوي مشر د ځينو انقلابي اقداماتو پواسطه پيل کيږي . (د ناصر په هکله دا پړاو د سويز د کانال په ملي کولو او د هغو پرمختګونو په منځ ته راتللو سره پيل شو چي د سويز جنګ ته يې لاره اواره کړه.) لومړي به يې د لنډي مودي ـ څلورو پنځو ورځو له پاره ـ په چو په خو له هرکلي وشي . په دي وخت کي به د شوروي مشران دغه نوي پرمختګ په علمي ډول وڅيړي . دا چوپتيا چي ماته شي نو نوي مشر به د ستايني په څپو کي ډوب شي . هغه د زماني قهرمان او يو ګران او اوچت انسان شي . هغه سره به په ناز او مينه چلند کوي ، خود دا د پاره به کوم شه شي نه وي . هغه سره به د بې اندازي سياسي او اقتصادي مرستو وعدي وشي او کريملين سره ورتـه د مخامخ خـبرو کولو لاري پرانستلې شي .

په بله ژبه ، دا د دوو هيوادونو د اړيکو په دوران کي د ټولونه خوږ وخت دي ، او د هر بل پړاو غوندي دا هم پاي ته رسيږي . (پر ناصر سربيره چي دا خوږ پړاو يې تير کړي دي ، د کيوبا کاسترو ، د عراق قاسم ، د الجزاير بن بيلا ، د زاير لومبا ، د بنګله ديش شيخ مجيب الرحمن، د انګولا اګوسټينو نيټو د سومالي سيد باري او د حبشي منګستو هيلي مريم هم پکي راځي).

خو د دريم پړاو يوه نتيجه دا وي چي په لويديځ کي دغه نوي مشر کمونست يا د کمونيزم نوکر بلل کيږي. د دي له پاره چي نوي مشر دشوروي شه ملاتړ ترلاسه کړي ، هڅه کوي ځان مستقل او خپلواک څرګند کړي .

هکله زما مشوره داده ، زما په فکر په عادي ډول شرايطو کی به اسرائيلي کشتۍ په دې شپو ورځو کی د تيران لـه تنګي نـه د تيريـدو هڅه ونـه کړي . زما د معلوماتو له مخې په تيرو د وه نيمو کلونو کی اسرائيلي بيرغ لرونکې کشتۍ لـه دغه تنګي نه تيره شوې نه ده . زه تاسي جلالتماٰب ته داډ درکوم چی زه شخصاً او په عمومي ډول تولـه نړيوالـه ټولنـه بـه ستاسي د دغسې عمل ډيره زياتـه مننه وکړي .

مهرباني وکړئ زما ښې ارزوګانې او احترامونه ومنئ .



دا ليک سره له دې چی دغولولو په نيت نه وُ ليکل شوی ، خو په قاهره کی يې د غلط او بې ځايه ډاډ احساس را پيدا کړ . ناصر پـه دې شکمن وُ چی دا څه ډول تعبير کړي ، حالات ورځ په ورځ مخ پـه خرابيدو روان وو . خبر را ورسيد چی اسرائيلي پوځونه په شمال کی د خپلو ځايونو نه د سوريې پـه وړاندې جنـوب لورتـه وخوځيدل . ناصر د شوروي سفير را وغـوښت او ژورې باوري خبرې يې ور-ره وکړې . ورته ويې ويل 'غواړم ته پـه دې پوی شي ، څه چی پيښيږي د هغو معلوماتو په رڼا کی کيږي چی ستاسې حکومت موږ ته را کړي دي . تاسي په دې ټولو کی ماته مسؤل ياست . پـه مسکو کی ستا خلک بايد پـه دی پوه شي چی ټول سياسي او پوځي پلانونـه اوس څومره ژر چی کيدي شي د موادو په جنس کی ترجماني شي . موږ د هوا له لارې موادو را رسيدلو ته ضرورت لرو . زه غواړم خپل د دفاع وزير شمس‌الدين بدران مسکو ته وليږم چی د مرستو په را ليږلو خبرې وکړي .

د شمس الدين بدران کتنه ډيره بدمرغـه شوه . د می په ۲۳ مـه د هغـه د رسيدو نه يوه ورځ وړاندې د شوروي حکومت يوه کلکه اعلاميـه خپره کړې وه . په سيمه کی يې د سولې د ساتلو پر ضرورت ټينګار کړی وُ ، خو اسرائيل يې تجاوزکوونکي بللي وو. بدران د رسيدو سره سم کوسيګين وليد. هغه وويل، 'زما پـه خيال ، تاسي به زموږ د پرولې اعلاميې له امله ډير خوشاله ياست . دا زموږ د ارادو پـه هکلـه هيڅ د شک ځای خالي نـه پريږدي . عربي متحد جمهوريت خپل اهداف د سوله ييزو لارونه ترلاسه کړي دي (هغه د سوريې په سرحـدونو کی د اسرائيلي پوځونو کمولو ته ، د سينا نه د ملګرو ملتو د پوځونو وتل او د مصري پوځونو له خوا د عقبې د خليج اداري تـه اشاره کولـه) . اوس ډيره

مهمه خبره داده چې حالات ساړه شي او اسرائيلي او امپرياليستي پوځونو تـه داسې پلمه په لاس ورنه کړای شي چې د وسله والې شخړې اوربل کـړي . اوس تاسې هغه څه ترلاسه کړې چې موغوښتل او نورې غوښتنې به مو په غور سره وڅېړو . مارشال ګريچکو به در سره خبرې وکړي' .

بيا بدران د شوروي د دفاع وزير مارشال ګريچکو ، د هغـه لومړي معين مارشال ياکوبوفسکي او لوي درستيز مارشال ذخـروف سره وکتـل ګريچکو هم ټينګار کاوه د جنګ د شرايطو د را پيدا کولو مخنيوی بايد وشي ، خو ويې ويل ، اوس هم کيدي شي امپرياليستان د حالاتو نه د ګټې پورته کولو هڅه وکړي . هغه فکر کاوه کيدي شي دوی د عقبې په خليج کې د امريکايي سمندري واحدونو په بدرګه د اسرائيلي ټانکرونو د ليږلوله لارې څه لانجې را پيدا کړي ، د مصر پوځونه راو پاروي او اسرائيلو ته د جنګ د پيل کولو پلمه په لاس ورکړي .

ګروميکو د بدران سره په کتنه کې وويل : د ده په فکر په مديترانه کې د شوروي اتحاد د سمندري قوت په زياتولو سره دلته عمومي حالت ډير ښه شوی وي . د پښتنو پرمختګ عربي متحد جمهوريت ته ګټه رسولې ده ، نو اوس د صبر او ارام وخت دی . هغه زياته کړه چې پـه تل ابيب کې د شوروي سفير راپور راليږلی دی چې د اسرائيلـو د بهرنيو چارو وزير ابا ايبان ډير زيات انديښمن دی او اسرائيل ډيره زياته هڅه کوي د جنګ د پيښيدو مخنيوی وکړي . کوسيګين ته د رئيس جانسن نه يو پيغام را رسيدلی دی ، او هغوی يو د بل سره په تماس کې دي . کوسيګين د ځواب پـه تيارولو بوخت دی چې پکـې بـه د امريکې او د هغو د مزدورانـو اسرائيلو دوارو اعمال وغندل شي . ګروميکو وويل ، د ده هيواد په منځني ختيځ باندې د څلورو طاقتونو د کنفرنس مفکوره نه ده منلې (دا د دوګول پيشنهاد ؤ ، او د مصر حکومت هم ورسره مخالفت کړی ؤ څکـه چې دا به د پخوانيو دري لويديځو دښمنانو د پاره د بدلې اخيستلونه پله څه نتيجه ونه لري ، او د مصر انديـوال شوروي اتحاد بـه تل پـه اقليت کې يواځې پاتې وي) . ګروميکو وويل چې د برتانيې د بهرنيو چارو وزير جارج براون په تير مني کې مسکو ته راغلی ؤ خو له بـده مرغـه د منځني ختيځ پـه هکلـه د هغـه نظريات هم د امريکې د حکومت پـه شان ؤ ، د مصر پـه وړانـدې يې هومره دښمني ښودله .

اصلي غلطي هغه وخت پيښه شوه چې د بدران هيئت د مسکو نه را روانيده .

مارشال ګریچکو ورسره تر هوایي ډګر پورې راغئ ، الوتکې سره نژدې يې په خبرو کې بدران ته وویل ، 'ځانونه ټینګ کړئ . هر څه سره چې مخامخ کیږئ ، مونږ به درسره یو . ځانو نه د امریکایانو او نورو خلکو په خبرو ونه غولوئ'. الوتکه چې والوتله ، په مسکو کې د مصر سفیر مراد غالب چې د ګریچکو خبره يې اوریدلې وه ، هغه ته وویل ، 'مارشال ، دا ډېره د داډ خبره وه چې تاوکړه'. ګریچکو وخندل او په روسي ژبه يې وویل ، 'دا یواځې د لارې د سر یوه خبره ده' .

نو د بدران ماموریت دری بیلا بیلې مفکورې را پیدا کړي چې په دی حساس وخت کې د شوروي پالیسي د هغو پربنسټ ولاړه وه . د مصر د بهرنیو چارو د وزارت مرستیال احمد حسن فقي چې د هیئت غړی ؤ ، خپل نظر په څرګندو تکوکی را ښکاره کړ چې روسان غواړي ناصر مات کړي . شمس الدین بدران د ګریچکو په ځینو خبرو باندې په باورکولو سره بله کیسه کوله . په پای کې په مسکو کې د مصر سفیر ځان مجبور ولید ناصر ته مشوره ورکړي ، هغه په یو باوري لیک کې ولیکل چې د ګریچکو د مرستو په خبرو او وعدو باندې باید ډیر باور ونه کړي . د بده مرغه ، د اداري مراتبو د سلسلې او ځنډ له امله د سفیر لیک ناصر ته هغه وخت ورسید چې جنګ پیل شوی ؤ .که دا لیک په وخت را رسیدلی وای کیدي شي د پاملرنې ور اغیزه يې کړې وای . د سوریې صدر اعظم نور الدین اتاسي د شمس الدین بدران د بیرته ستنیدونه لږ وروسته د می په ۲۹ مه مسکو ته را ورسید . ده هم د بیلا بیلو کسانو د خولې نه قاهرې ته پیغام ولیږه څو ناصر ته داډ ورکړي چې ټول کارونه به سم شي .

ناصر ته چې د مسکو نه د مصر د سفیر مراد غالب لیک را ورسید ، په کرانه يې په تعبیر پوی شو . د مصر د سفارت کونسل په یوه میلمستیا کې برخه اخیستې وه چې پکښي د امریکې سفیر الویلین تامپسن هم ؤ . تامپسن کونسل ته وویل چې دی په راتلونکې دو شنبه د مصر سفارت ته بلل شوی دی ، هلته د مصر سفیر چې شیخ السفراء ؤ د فنلند د سفیر د ماموریت د پوره کیدو له امله د مخه ښې کولو میلمستیا کړې وه . تامپسن وویل : 'زه غواړم ستاسی له سفیر نه په ډېر باوري چاپیریال کې واورم چې په دې راتلونکو څو ورځو کې خو به ستاسی سفارت ته زما درتګ تاسی ته کومه اندیښنه نه پیدا کوي' . د مصر کونسل ورته وویل چې 'تاسې خو هر وخت زمونږ په سفارت کې په میلمستیاوو

کی برخه اخلی. تامپسن وویل ، کیدي شي په راتلونکو ورځو کی داسی څه پیښ شي چی هلته زما درتګ ویرووتکی وبلل شي. ناصر ما ته دا تلګرام را ویښود ، او زمانه یې پوښتنه وکړه چي څه فکر کوئ .



بیا د جون پنځم را ورسید . په لومړیو کی اسرائیل ډیر بریالي ښکاریدل ، خلک یې پوره اندیښمن کړي وو چی جنګ چا پیل کړ . د هند صدر اعظمې میرمن اندیرا ګاندي چی څنګه د جنګ د پیل کیدو نه خبره شوه ، سمدستي یې یو ډیر سخت تلګرام کوسیګین ته ولیږه . کوسیګین په ځواب کی وویل : د شوروي حکومت د خپلو منابعو له لارې په دې خبر دی چې اسرائیلو جنګ پیل کړی دی او د یو شمیر لویو طاقتونو ملاتړ ورسره دی ، چی ده ورسره په تیرو څو ورځو کی نژدي تماس درلودلی ، او دوی یواځی برید نه دی کړی . هغه وویل چی شوروی اتحاد د عربي متحد جمهوریت پرخوا تینګ ولاړ دی ، او د شوروي اتحاد دریځ تل داسی دی چی د خپلوا کی او سولې له پاره د مبارزه کوونکو هیوادونو سره هر ډول مرستو کولو ته تیار دی .

هغه وخت په قاهره کی هر چا مونږ ته ویل چی د مصر پر خوا د شوروي اتحاد تینګ دریدل بالکل د حقیقت نه لیري خبره ده . د سینا نه د نو یو خبرونو په را رسیدلو سره ، عامر بیخي له کاره لویدلی ؤ . د جون په ٦ مه هغه د شوروي سفیر را وغوښت ، او په هغه یې د ملامتیو باران ورخوشی کړ . هغه وویل چی د مصر د هوایي قوتونو په ورانولو کی امریکایانو برخه اخیستې ده (خلک هغه وخت په عمومی توګه په دې عقیده وو) ، شوروي اتحاد په دې کی هیڅ ډول مرسته ونه کړه ، آن چی د اسرائیلو د پوځونو خوځیدنه او ریښتینې وضعیت یې ونه ښود . ده پوښتنه وکړه چی د دیتانت د لفظ دا مطلب دی ؟ دا دیتانت ؤ که تګی ؟ یو ځل بیا خلکو د ١٩٥٦ کال غونډې د تګی او چل ول خبرې کولې ، خو دا ځل د دوه طرفه تګی ویره وه - د امریکی او اسرائیلو ترمنځ ، او د دیتانت په نامه د امریکی او روس ترمنځ .

پراخه آوازې وې چی امریکایانو د اسرائیلو په برید کی برخه اخیستې وه ، کیدي شي د وسلو د برابرولو له لارې ، د استخباراتو په مرسته او نور ، داسی شواهد وو چی ګوندې جانسن اسرائیلو ته د برید له پاره د شین چراغ اشاره

ورکړی وه . ناصر د جون په ۹ مه د خپلې استعفی په بیانیه کې په برید کې د امریکایانو لاس لرلو ته اشاره وکړه ، دا تبلیغات نه بلکې د هغه ربښتینی باور ؤ .

په حقیقت کې امریکایانو په ډیر مهارت سره لوبه وکړه . د جون په ۸ مه دوه امریکا یي الوتکې په ښکاره توګه د عربستان د پوځي اډونه د سویز د کانال د پاسه والوتې . د هغوی د لیدو نه یواځې نیم ساعت وروسته کوسیګین ناصر ته یو پیغام راولیږه ، د جانسن نه د یو پیغام له مخې ، پکې ویل شوي ؤ چې د سویز د کانال د پاسه د امریکا یي الوتکو الوتل د دښمنۍ یو عمل نه بلکې په مدیترانه کې د یوی امریکایي کشتۍ د لګیدلو له امله مرستې ته ورتللې . ژر خبر را ورسید چې د 'امریکې د جاسوسۍ کشتۍ' لیبرټي د إسرائیلو د برید په وخت کې لګیدلې او پوره مرګ ژوبله پکې شوې وه . خو دا ټوله پیښه ، د واشنګټن له خوا د مسکو د استعمالولو په شمول چې د قاهرې سره یې د تماس ساتلو له پاره تری کار واخیست ، ډیره خیالي او د اندیښنې وړ وه ، په ټوله عربي نړۍ کې یې دا مفکوره وروزله چې د شوروي اتحاد د دیتانت سیاست ذوی د امریکې سره په جنګ کې را ښکیل کړل . خو په دی خبره د نظریاتو توپیر ؤ چې آیا روسان د امریکایانو له خوا اغفال شول او وغولیدل ، او که د امریکې نه وویریدل چې د خپلو عربو دوستانو سره یې مرسته ونه کړه .

نور شواهد هم ؤ چې د تګې او چل ول مسؤلیت یې را ښکاره کاوه . د می په ۲۵ مه ایبان او د اسرائیلو د پوځي استخباراتو مدیر واشنګټن کې وو . د مصر سفیر په هغې شپه د بهرنیو چارو د وزارت د سیاسی معین ایوجین روستو لیدلو ته ورغئ ، هغه وویل ، چې 'زه درته د رئیس جمهور پرځای خبرې کوم . ایبان پرته له ځواني خبرې دلته راغئ او د بهرنیو چارو د وزیر سره یې د کتلو غوښتنه وکړه ، هغه سره یې ستمدستي وکتل . هغه وویل چې ده ته له اسرائیلو نه خبر را رسیدلی دی چې هماغه شپه مصر په اسرائیلو برید کوي . زه تا خبروم ، که داسې کار وشي ، نو امریکا به د مصر په وړاندې ودریږي' .

د مصر سفیر د دې خبرو راپور په یو تیز تلګرام کې قاهرې ته ولیږه . د بلې ورځې د سهار په دري بجو وختي په قاهره کې د شوروي سفیر د جمهور رئیس د منشي سامي شرف دفتر ته ورغئ ، او د ناصر سره یې د فوري لیدلو غوښتنه وکړه ، د مسکو نه ورته یو مهم پیغام راغلی دی ، چې باید ډیر ژر یې هغه ته ورسوي . ناصر له خو به راویښ کړای شو ، کمیس او پطلون یې واغوستل

او د ملاقات کوټې ته را ننوته شو ، هلته ورته سفير د ډير عذر سره سلام ووايه . هغه وويل ، چې د کوسيګين نه ورته پيغام راغلی چې هغه سره امريکايانو تماس نيولی او وايي چې د اسرائيلو نه د راغليو معلوماتو له مخې مصر نن سهار په اسرائيلو باندې پوځي بريد کوي ، او هغوي له مصر نه غوښتنه کوي چې د دې کار نه تير شي . ناصر وويل چې مصر داسې کوم پلان نه لري .

عامر د شوروي په سفير د ملامتيو اچولو په لړکې دا خبره هم را ياده کړه . هغه وويل ، 'دا تاسې وی چې مونږ مو د لومړي بريد کولو نه را منع کړلو ، تاسې مونږ له نوبت نه بې برخې کړو . دا ټکې اوچل ول دی' .



د شوروي مشران د ټکيړه دغو تومتونو باندې ډير خوابدي وو ، او د رئيس تيتو پيشنهاد ته يې مثبت ځواب ورکړ ، هغه د يوګوسلاويا په شمول د وارسا د تړون د غړيو هيوادونو د يوې غونډې غوښتنه کړې وه چې د جون په ۹ مه په مسکو کې وشي او 'د منځنی ختيځ وروستي پرمختګونه وڅيړي چې د اسرائيلو د بريد له امله را پيدا شوي وو' . تيتو ټينګار کاوه که سوسياليست کمپ په دی هکله څه اقدام ونه کړي نو ډيره بده مفکوره به پيدا شي څکه د دريمې نړۍ يو مشر ناپيلی هيواد د يو لوي پوځي بريد لاندې راغلی دی . د رومانيې پرته هغوی ټولو چې د مسکو په غونډه کې برخه واخيستله وعده وکړه چې د عربي هيوادونو سره به مرستې کوي او د اسرائيلو سره به خپلې سياسي اړيکې شلوي . رئيس تيتو فکر کاوه دا بس نه ده . هغه د ختيځې اروپا د کمونيستو ګوندونو او دولتي مشرانو د غونډې غوښتنه وکړه چې عربي هيوادونو ته د مرستو ورکولو او برابرولو په پلانونو خبرې وکړي . دوی بيا له رومانيې پرته په بوداپست کې د جولای په ۱۱-۱۲ را ټول شول او پريکړه يې وکړه دوستو عربي هيوادونو ته به په سياسي ، اقتصادي او پوځي برخو کې مرستې برابر وي چي پکې د صنعت او کرنې پرمختيايي پروژې هم وي .

د يوګوسلاويې پورې تړلې يوه پيښه وشوه چې د مصر اړيکې يې د شوروي اتحاد سره خړپړ کړل . د جنګ په زور کې مصر له شوروي نه د وسلو د مرستو غوښتنه وکړه او هغوی دستي تياری وښود ، ويې ويل چې در روانې شوې . خو هيڅ شی را ونه رسيد . دوه ورځې تيرې شوې ، بيا عامر د شوروي له سفير نه پوښتنه وکړه ، څنګه چل شو . سفير عامر ته وويل چې يوګوسلاويې اجازه ورنه

کړه شوروي الوتکې د هغوي د خاورې په سر را تېرې شي او مصر ته وسلې راوړي . ناصر يو شخصي پيغام تيتو ته وليږه او پوښتنه يې تري وکړه چې څنګه خبره ده . هغه ځواب ورکړ چې موږ د جنګ د لومړيو شيبو نه وروسته روس ته اجازه ورکړه چې کولای شي مصر ته د هر ډول مرستو د رسولو له پاره زموږ د هوايي حدودو نه کار واخلي . دا خبره کيدي شي د ځينو اداري او بيروکراسۍ د بې‌نظمۍ له امله د ستونځو سره کوم چيرته مخامخ شوې وي ، خو ډيره بده نتيجه يې را ووته .



د امنيت شورئ د جنګ د پيل‌کيدو راهيسي تقريباً په پرله پسې توګه غونډې کولې ، د جون په ۱۳ مه شوروي اتحاد يوه پريکړه ليک وړاندې کړ ، چې پکې د اسرائيلو د تيري فعاليتونه ، غندل شوي وو او د اوربند له کړښې نه د اسرائيلو د پوځونو د بې‌قيده او شرطه فوري په شا کيدلو غوښتنه شوې وه. دا پريکړه ليک له نا کامۍ سره مخ شو . ډير ژر داسې شواهد څرګند شول چې د امريکې او اسرائيلو د حکومتونو ترمنځ پوره تفاهم موجود ؤ ، چې ترډيرې مو دې پورې اغيزمن پاتې کيده ، او کوم چې په نتيجه کې نن هم په پوره قوت سره لا شته . په دې کې دري تکي راتلل : لومړی ، د ملګرو ملتو په تولنه کې به امريکا د اسرائيلو پوره ملاتړ کوي او نه به پريږدي چې اسرائيل د يرغلګر هيواد په توګه تصويب شي ، دويم ، امريکا به هيڅکله هم په اسرائيلو زور نه راوړي چې د نيول شويو ځمکو نه ووځي ، مګر د پوره سولې په بدل کې ، دريم ، امريکا به ګوري چې د وسلو انډول د اسرائيلو په خوا دروند وي .

نو ، د امريکې د پاليسۍ سره سم د امنيت په شورئ کې د امريکې د ويټو له امله هيڅ پرمختګ نه شوکيدي ، روسان د عمومي تولنې د هنګامي‌غونډې مفکورې ته را وګرځيدل ، لکه په ۱۹۵۶ کال کې چې شوې وه . د دې غونډې له پاره پوره ملاتړ ؤ چې په نيويارک کې د جون په ۱۹ مه وشي . خو د ډيرو زياتو بحثونو او خبرو وروسته د څلورو پريکړه ليکونو ځينې يو هم په غونډه کې د تصويبيدو له پاره پوره رايې ونه ګټلې .

د غم او انديښنو هغه فضاء کې چې د جنګ نه وروسته را پيدا شوې وه هر چا په نورو باندې د پيښو ملامتيا اچوله . د مصر پوځونه او هوايي پوځيان د روسي متخصصينو پرضد د ځانو سره ګوريدل ، او وروستيو پيښو ثابته کړه چې

څه ورته ورکړل شوي ؤ هغومره يې په بدله کې ورکړل . د هوايي پوځونو پورې تړلي يو روسي متخصص په خپل يو راپور کې وليکل چې د ده منصبداران په تيره بيا د قاهرې په لويديځه اډه کې ډيرتمبل او بيکاره خلک وو . روس ادعا کوله چې د اسرائيلو د لوړيو بريدونو نه وروسته ده وليدې چې دري سو خوې الوتکې جوړې ولاړې دي ، نو ده ځينو پيلوټانو ته وويل چې الوتکې والوزوي . هغوى وويل چې ورته امر نشته ، يو پاو وروسته اسرائيلي الوتکې بيا را وگرځيدې او دا دري واړه الوتکې يې هم وويشتلې . دا راپور د جنگ وزير جنرال فوزي ته ورسيد او د هغه احساسات يې راوپارول . په مطبوعاتو کې د روسانو پرضد احساسات او عکس‌العملونه را ښکاره شول .

د مې په ۱۲ مه له مسکو نه د مصر سفير يو تلگرام راوليږه ، پکې ويل شوي وو شورويان د هغو انتقادونو له امله چې د مصر په مطبوعاتو کې په شخصي او ملي سويه پردوي کيږي ډير نا آرامه دي . دوى په دې خبره ډير ځوريدلي چې د عربي هيوادونو پرضد دسيسه کې پري تومت لگول شوى دى . سفير دې خبرې ته گوته نيولې وه چې عربي هيوادونو ته ور پيښه رښتيني مبارزه اوس هم د امپرياليستانو پرضد ده ، او د دې له پاره د زياتو مرستو ضرورت دى ، چې دا له شوروي اتحاد پرته له بل ځايه نه شي راتلاى . هغه وليکل 'زه په دې پوره پوهيږم چې په دې ورځو کې د روسانو پرضد احساسات ډير را پاريدلي دي ، زه حالاتو ته د يو هدفمند نظر په کتلو ټينگار کووم . دا ډيره ضروري ده چې په دغو بحراني حالاتو کې مونږ خپل سياستونه د شوروي اتحاد د پاليسيو سره مرستيال کړو . هغوى ماته ډاډ را کړى دى ، دوى په دې هکله ډير ټينگ دي چې د تيرى او يرغل اغيزې د خپل قدرت تر اندازې په هره بيه چې وي له منځه يوسي' .



ښايي د دې وخت اصلي ښه له مسکو نه د بومدين او عارف له کتني نه ښه څرگنده شي . بومدين څو الجزايري پوځي واحدونه جنگ ته د مرستې د پاره را وليږل ، خو چې دوي هلته را رسيدل هر څه پاى ته رسيدلي وو . د عربي ټولو هيوادونو په څير جنگ په الجزاير کې هم ډير تاو تريخوالى را پيدا کړى ؤ . داسې يو عمومي احساس را پيدا شوى ؤ چې گوندې شوروي اتحاد هغه وخت بالکل کرار ناست ؤ چې دوستانو او ملگرو يې قرباني ورکوله . بومدين د شوروى سفير را وغوښت او ورته وې ويل اراده لري مسکو ته لاړ شي ، که بلنه ورکړه شي

که نه ، چې شوروي مشرانو ته د عربو د احساساتو قوت او څرنګوالی بیان کړي . هغه د جون په ۱۲ مه دا کار وکړ خو څه نتیجه یې په لاس را نه وړه . بیا د لومړۍ کرښې د هیوادونو (مصر ، سوریې ، عراق ، اردن او الجزایر) د غونډې نه وروسته چې په قاهره کې د جولای د ۱۰-۱۳ پورې وشوه ، تصمیم ونیول شو چې بومدین او د عراق جمهور رئیس عارف به د نورو عربي هیوادونو د حکومتونو په نمایندګۍ د یو رسمي هیئت په بڼه مسکو ته ځي . دوی د جولای په ۱۷ مه مسکو ته ورسیدل ، او په هماغه ورځ یې د روس د مشرانو سره غونډه وکړه . دوی سره د عراق د بهرنیو چارو سرپرست وزیر اسمعیل خیرالله او د الجزایر لوی درستیز ډګرمن طاهر زبیري هم ملګري وو . په دا بله خوا کې برژنف ، کوسیګین ، پومانا روف ، مارشال ګریچکو ، د بهرنیو چارو د وزارت لومړی معین کوزنتسوف او په دغې وزارت کې د منځني ختیځ د څانګې مدیر ژیهورین وو .

د یو هیواد د مشر په توګه عارف غونډه پرانیتله . هغه د عربي هیوادونو په نمایندګۍ له شوروي اتحاد نه مننه وکړه چې دوی سره یې تراوسه ډیرې مرستې کړې دي ، خو ارزو یې څرګنده کړه چې په راتلونکي کې به خپلې اقتصادي او پوځي مرستې زیاتوي ، څکه له دې پرته بله لاره نشته ، عربي هیوادونه باید د ځان د بیا جوړولو له پاره وخت او فرصت ترلاسه کړي .

دې خبرې برژنف ته موقع ورکړه ، هغه وویل ، 'راځئ چې هر څه ته په هغه سترګه وګورو چې څنګه دي . دا خبره اوس هر چا ته څرګنده ده چې اسرائیلو د ډیرې مودې راهیسې د بریدکولو د پاره تیاری نیوه ، د دوی نفوس یواځې دوه نیم میلونه دي خو د ۳۰۰۰۰۰ زرو عسکرو پوځ لري ـ په بله ژبه د نفوسو څلورمه برخه یې وسله وال دي . مصر دیرش میلونه نفوس لري ، خو یواځې په سلوکې یو یې پوځ کې دی . په سوریه کې هم دغه فیصدي ده . اسرائیلو ځانته په کورکې د جنګ جبهه جوړه کړې ده ، خو عربونه ده جوړه کړې . آیا په داسې شرایطو کې یو هیواد جنګ کولای شي ؟ برژنف پوښتنه وکړه .

برژنف څرګنده کړه چې د جنګ نه په وروسته لنډه موده کې سوسیالیستي هیوادونو دوه ځلې غونډې کړې دي چې څه اقدامونه باید وشي . دا غونډې په آسانۍ سره نه دي جوړې شوې ، یا بلل شوې ، د دوی اهداف غبتلي وو ، تبلیغات نه وو . هغه زیاته کړه چې د مسلې جرړې ، کومې دي . هغه وویل 'خپله اسرائیل هیڅ شی نه دي . د دوی موجودیت د امریکې په مرستو پورې

تړلی دی ، او دا چې ولې امریکایان د اسرائیلو ژوند غواړي ، د هغوی د منځني ختیځ تیل په کار دي ، د نړۍ په سلوکی ۰۶ برخې تیل دلته دي . د دغو تیلو د لاس ته راوړلو له پاره یې هڅه کړې عربي نړۍ تر خپل کنترول لاندې وساتي ، خو هلته د پرمختلونکو حکومتونو د راپورته کیدلو سره د دې کار امکان له منځه تللی دی ، امریکایان بخپله نه شي کولای په عربي هیوادونو تیری وکړي ، خو دوی د اسرائیلو له لارې دا کار کولای شي .

برژنف وویل 'اوس به مونږ په تاسی یو څو انتقادونه وکړو ، څکه د انتقاد پرته مینه نه وي . مونږ د یو جنجال سره مخ یو . تاسې په دې فکر یاستئ چې اسرائیل په رسمیت نه پیژنئ ، حتی غیر مستقیم هم ، خو مونږ چې څه غواړو دادي چې اسرائیلي پوځونه د نیول شویو ځمکو نه ووځي . په دې کې تناقض دی؟، هغه وویل چې دا د امپریالیستانو غوښتنه ده چې وضع په همدی حال پاتي شي ، په ملګرو ملتو کې څه پریکړه تصویب نه شي چې د اسرائیلو دا عمل وغندي او یا د هغوي د پوځونو په شا کیدل وغواړي ، څکه د داسې یو پریکړه لیک پرته به اسرائیل په نیول شو یو ځمکو کی تر پایه پاتې شي. هغه خلک چې په د دی حالاتو نه وځوریږي عربان دي ، او دوست هیوادونه لکه هند چې د سویز د کانال بندیدلو ورته ډیر تاوان ورواړاوه . برژنف څرګنده کړه چې دی د امنیت په شورئ او یا په عمومي غونډه کی د هغه پریکړه لیک د پیشنهاد په هکله د عربو ملاتړ غواړي چې دوی به یې وړاندې کړي که څه هم دا به په یو شکل د اسرائیلو په رسمیت پیژندلو سره عربي حکومتونو ته تمامه شي . هغه وویل چې دی د عربو او اسرائیلو ترمنځ دښمنۍ باندې نه پوهیږي ، خو ددې مطلب دا نه دی چې حتمی بایـد اسرائیل له منځه ویوړل شي . هغه د روس تاریخ ته کتنه وکړه او بیا د برست لیتوفسک تړون ته را وګرځید ، چې لینن د شرایطو د مجبوریت له امله ربنتینو خو د لندې مو دې قربانیو ورکولو ته غاړه کیښودله.

د روس وسلې چې د اسرائیلو لاس ته ورغلي دي ډیره د خفګان خبره ده . برژنف وویل ، زه څکه خپه یم چې زمونږ وقار ستاسی د حیثیت سره تړلی دی . زه څکه خپه یم چې زمونږ ډیرې عصري وسلې چې تاسی ته مو درکړې هغه اوس امریکی او لویدیځ المان ته لیږل شوي دي . مونږ تاسی ته خپلې الوتکې درکړې ، خو تاسي پیلوټان نه درلودل ، مونږ درته ټانکونه در کړل ، خو تاسی عمله نه درلوده .، شوروي متخصصینو چې د عربو سره کار کاوه راپورونه را لیږلي دي چې د ټانکونو ځیني ډریوران د شپږ ساعتو نه د لږې روزنې د تجربې

د مسکو سره په خپل نظریاتي توپیر ټینګار کوي ، ترڅو له شوروي نه مستقل وپیژندل شي . کیدي شي په خپلو سرحداتو کي د ننه په کمونستانو برید هم وکړي .

## ٤ ـ د خولي جنګ (ناندرۍ) :

بیا وروسته دا اوچت ناز ولی سړی یو انسان شي . شورویان بیرته خپل پوښ ته ورننوځي . دا څلورم پړاو دي ، او مهم دي ، ځکه د لوبي په وروسي پړاو کي تصمیم نیول کیږي . لوي مشر یا بیخي په ځمکه رالویږي ، او یا په خپلو پښوتینګ دریږي . دا د شوروي د نا میندي د درجي او د هغوي د پانګي په اندازي پوري اړه لري چي د هغه په هیواد کي یې لګولي وي . (د ناصر سره دواده لومړی میاشت هغه وخت تیره او څلورم پړاو پیل شو چي د ۱۹۵۸ کال په پاي کي یې په عراقي کمونستانو بریدونه پیل کړل او له هغې وروسته یې سمدلاسه د خروسچف سره د خفګان لیکونه تبادله کړل .)

## ٥ ـ په تاخ کي ایښودل :

اوس پنځم او وروستي پړاو ته راځو چي ورته د عادي کیدلو یا په تاخ کي د ایښودلو پړاو وائی . (د دي له پاره چي سړي په دي ښه پوه شي په دي پړاو کي څه تیریږي زما په فکر د شوروي د ټولني د جوړښت په هکله یو څه اندازه پوهه ګټوره وي . د تزاریانو او دارتودوکس د کلیسا د وخت روسیه داسي کلکه طبقه بندۍ شوي وه چي د هر چا ځاي پکي ټاکلی ؤ . په نتیجه کي سړي ویلی شي په داسي یوه ټولنه کي کمونست ګوند وکړاي شو ، نن روسیه چي ښایي د نړۍ یو ډیر حساس تنظیم شوي هیواد وي رامنځ ته کړي. په روسیه کي د ګوند د مراتبو په سلسله کي پیل پیل پړاوونه لیدل کیږي ، د دي له مخي سړی اندازه لګولاي شي چي یو سړی او د هغه کورنۍ څه ډول ژوند کوي .

(د روسي هرم په قاعده کي ، ټل عام خلک وي ، د هغوي نه بیا کمونست ګوند راپورته کیږي ، دا بیا په دوه کتارونو ویشل کیږي ، اصلي غړي او ازمایښتي غړي . د ټول شوروي اتحاد د ګونه د غړیو له انتخاب څخه وروسته بیا مرکزي کمیته راوځي . د مرکزي کمیتي رئیسه هیئت چي د ۱۹۶۶ کال راهیسي ورته سیاسي بیریو وایی ، په ګوند کي تر ټولو لوړ پوړ دي ، او د هرم سر (راس) په خپله لومړی منشي دي .

په دي هرم کي د سړی د ژوند سویه او شکل دده د رتبي سره تنلسب

بسم الله الرحمن الرحيم

# سريزه

ما دا کتاب په "عربي نړۍ کې د شوروي نفوذ راپورته کېدل او لو يدل" نومولی دی ، خو لوستونکو ته به څرګنده شي چې د مصر سره د شوروي په اړيکو زيات غور يدلی يم . د دې خبرې يادونه بايد وکړم چې ما په تيرو شلو کلونو کې دسيمې د پيښو څارنه له دې امله د مصر څخه نه ده کړې چې جغرافيې او تاريخ ورته ډير اهميت ورکړی دی ، بلکې له دې امله وه چې په دې سيمه کې مصر لومړنی هيواد ؤ چې د شوروي اتحاد سره يې خپلې اړيکې ټينګې کړې او معاملې يې ورسره پيل کړې . عربي نړۍ او د افريقې شمال ته د شوروي اتحاد د نفوذ د رانتو تلوله پاره مصر د در وازې مثال درلود . نوځکه هغه چاچې له دې سيمې نه دشوروي اتحاد دنفوذ ايستل غوښتل هم يې بايد له مصر نه په کارپيل کړای وای .

د دې کتاب په برابر ولو کې مې په خپلو هغوا اسنادو او يادښتونو ډير زورا چولی دی چې د مصر د سياسي قدرت د مرکز سره مې د نژديوالي په وخت کې ترلاسه کړي دي . لومړی د ۱۹۵۲ - ۱۹۷۰ پورې د جمهور رئيس ناصر او بياد ۱۹۷۰ - ۱۹۷۵ پورې د جمهور رئيس سادات سره . خوما يواځې په همدې اسنادو بسنه نه ده کړې ، بلکې ديوشمير نورو کسانوله تجربونه مې هم يادونه کړې چې په دې پيښو کې يې برخه درلوده. دلته چې د هغوی د نومونوله يادولونه ډډه کوم ، داسې نه ده چې ګوندې د هغوي له درناوي نه سترګې پټوم ، بلکې دا يواځې له دې امله ده چې د دې کتاب په تيار ولو کې شريک ونه بلل شي ، ځکه عملاً يې پکې هيڅ برخه نه ده اخيستې .

سره تالکونو ته وختل . دی کار ته څنګه اجازه ورکول کیدي شي ؟ هغه بیا دې خبرې ته را وګرځید چې د عربو خلک وخت ته ضرورت لري چې خپل پوځونه وروزي ، خپل اقتصاد ښه کړي او خپل خلک په سیاسي توګه جګړې کولو ته تیار کړي . د دی مطلب دادی چې باید خبرې وشي ، د ملګرو ملتو په تولنه کی د یو پریکړه لیک د پاره کار وشي چې د تولنې په دریو کی دوه برخې غړی یی ملاتړ وکړي او اسرائیل کوښه پاتې شي .

کوسیګین د خپل ملګري خبرې تائید کړي . هغه وویل ، 'تاسی عربي هیوادونه په دې عقیده یاستئ چې عربان سره په دې خبره موافقه نه شي کولای د اسرائیلو سره دښمني او جنګ پای ته ورسوي . خو دا به تاسی کومې خوا ته بیایي ؟ که د جنګ حالت موجود وي ، اسرائیل به خپل پوځونه ونه باسي . امریکا ، جرمني او نور هیوادونه به د اسرائیلو ملاتړ کوي . خو آیا تاسی جنګ ته تیار یاستئ ؟ مونږ خپله څیړنه کړې ده ، خوشاله به وای چې مو درته ویلی وای - «ډیره ښه ، محکې شئ». خو زمونږ د متخصصینو نتیجه اخیستنه بل دول ده . هغوي وایي چې ستاسي له پاره د جنګ کولو بیخی سوال نه پیدا کیږي . غواړم تاسی ته ووایم چې تاسی بالکل کلک او جامد دریځ نیولی دی .

'انقلابي شعارونه کیدي شي د عربو ګټو ته تاوان ورسوي . چین ته وګورئ . هغوی ډیره سخته انقلابي لاره نیولې ده ، او وایي چې که تاسی جنګ کوئ ، دوی به درسره مرسته وکړي . خو هغوی تاسی سره څه مرسته کولای شي ؟ لس مضمونه ؟ سل میټینګونه ؟ په الفاظو او کلیماتو کی انقلابي نظریی هیڅ مفهوم نه لري ترڅو د هغی شا ته رښتینی عملي قوت پروت نه وي' .

کوسیګین بوځل بیا دې خبرې ته را وګرځید چې عربان باید لومړی خپله کورنۍ جبهه پیاوړې کړي او هغه عناصر له مخی نه لیرې کړي چې د پرمختللې لارې خنډ دي . د ده په فکر دوه کاله وخت په کار دی چې عربان د خپلې لومړۍ مرحلې تیاری پوره کړي ، او په دې موده کی باید دوی د امپریالیستانو سره په معاملو کی د ناپوهۍ نه کار وانخلي ، باید ډیر نرم وي . هغه په خپلو خبرو کی څرګنده کړه چې د جنګ د حالت پای ته رسول دومره مهم نه دي . څه شي چې ډیر مهم دی د عربو له پاره اتحاد ، د پوځونو روزنه او د مترقي رژیمونو په ښبو درول .

عارف مخالفت وکړ چې د جنګ د حالت د پای ته رسولو نه مطلب دادی

چې د سویز کانال پرانیتل شي او د اسرائیلو سره مخامخ د سولې خبرې پیل شي . کوسیگین وویل ، ضرور له ده داسې وشي . دا کیدې شي د ملکرو ملتو له لارې وشي ، او که اسرائیل د نیول شو یو ځمکو نه د پوځونو د وتلو نه ډډه کوي د جنګ حالت به هماغسې جاري وي .

بومدین هڅه وکړه چې د عربو ـ اسرائیلو ترمنځ لانجې ته باید د خلکو پرضد د نړیوال امپریالیزم د استعماري اهدافو د اوږد زنځیر د یوې کړۍ په توګه وکتل شي . هغه د شورویانو نه غوښتنه وکړه چې د دې شخړې ته د ملکرو ملتو له لارې د اوارې راوړلو په سترګه ونه ګوري . د ملکرو ملتونو په تولنه کې رایې ورکول د منځني ختیځ په شخړه ، ستونځو او خطرونو هیڅ ډول اغیزه نه شي کولای . لکه چې دی یې ویني ، امریکایان په دې پوهیږي چې د رنګ پانې تولې د دوی په لاس کې دي او هیڅکله د داسې یو پریکړه لیک سره موافقه نه کوي چې د دوی نظر پکې په سلوکې سل نه وي منل شوی . بومدین زیاته کړه ، د امریکایانو رښتینی هدف دلته د مترقي رژیمونو له منځه وړل دي .

بومدین وویل چې د منځني ختیځ شخړه دوه برخې لري ـ د فلسطین لانجه چې د ۱۹٤۸ کال د جنګ میراث دی ، او د تیري او پراختیا یې سیاست مسئله چې د وروستي جنګ نتیجه ده . امریکا غوښتل دا دواړه ستونځې په یوځل اوارې کړي . د اسرائیلو په کته او په سیمه کې د پرمختیایي رژیمونو د له منځه وړلو په بیه .

برژنف له بومدین نه پوښتنه وکړه چې د ده د تحلیل له مخې د ده په فکر د مسئلې اصلي اوارې څنګه کیدې شي . بومدین وویل چې دوه لارې شته ـ یا ومنله شي چې څه شوي هغه شوي دي او خبرې اترې وشي ، او په دې ډول پرمختیایي حکومتونه رنګ کړل شي ، بنایي څه اندازه ځمکې بیرته را پریښودې شي او یا د اصولو پرښنسټ دریځ ونیول شي . بومدین وویل چې عربي دولتونه د څه امتیازاتو ورکول منلی شي (که څه هم ده مشخص نه کړل) خو یوه اندازه شته چې د هغې نه وړاندې نه شي تلای ، او یا به د ناکامۍ سره مخامخ شي .

دوه خواوې البته په پوره بیلو بیلو فرضیو او نظریاتو ولاړې وې . په مسکو کې دا دوه ورځې خبرې اترې د هغو ستونځو او جنجالونو یو عادي مثال دی چې خامخا د یو ستر قدرت او سیمه ییزو طاقتونو ترمنځ په اړیکو کې را پیدا کیږي ، د بیلا بیلو خواوو په کتو پورې تړلي وي .

برژنف ، کوسیګین او نور رښتیا ډیر غمجن شول . داسي ښکاریده هغه ټول کاروله چې دوی او د دوی ورانديښو په عربي نړۍکې ترسره کړي وو ، خراب شول . د دوی پاملرنه اوس د ایډیالوژۍ سره دومره نه وه ، خو هڅه یې کوله چې د یو ستر قدرت په توګه څومره چې کیدي شي په سیمه کې خپل حیثیت وساتي، څکه دوی دلته ډیره سیاسي او اقتصادي پانګه اچونه کړې وه .



په مسکو کې داسي تصمیم ونیول شو چې کوسیګین به د ملګرو ملتونو د عمومي ټولنې په هنګامي غونډه کې برخه اخلي ، خو دا پوښتنه راپورته شوه چې دی په امریکا کې د رئیس جمهور جانسن سره وګوري ، که نه؟سیاسي بیرو په دې او نورو هغو موضوعګانو چې د جون د جنګ نه را پیدا شوې وې ، په دوه برخو ویشل شوې وه ، پوځیانو او تیوریسنانو په سیاست مدارانو ملامتیا اچوله چې په حالاتو یې قابو له لاسه ورکړی دی . نو چې کله په مسکو کې د برما سفیر د سوسلوف نه پوښتنه وکړه چې دا کتنه به وشي ، که نه ، هغه وویل دا کار نه شي کیدي امریکایانو سره د خبرو نه څه په لاس نه راځي . خو په حقیقت کې مونږ خبر یو چې برژنف د سیاسي بیرو غونډې ته په یوه دري ساعته بیانیه کې د منځني ختیځ په هکله د خپلې پالیسۍ نه پوره دفاع وکړه ، په پای کې پریکړه وشوه چې پودګورني باید مصر ته لاړ شي . پودګورني د سیاسي بیرو د غونډې نه مخامخ هوایي ډګر ته لاړ ، د جون په ۲۱ مه ، او برژنف ورسره تر هوایي میدان پورې د هغه ښې له پاره ملګرتیا وکړه . دا د مرستې د تقریباً یو غیر موازي اشارې په نیت وشو .

کوسیګین د جون په ۱۶ مه نیویارک ته په لاره په پاریس کې تم شو ، هلته یې د دوګول سره ماښامی وخوړ او په امریکې کې یې د نیوجرسي په ګلاسبورو کې دوه ځلې د رئیس جانسن سره غونډه وکړه .



# په کړې کې يو چاود

ګرانه ده په ټوله عربي نړۍ او مصر باندې د جون د جنګ په اغیزه کې مبالغه وشي . يو څه سوده ټول وارخطا وو ، نه پوهيدل جنګ څومره تاوان رسولی دی او په پوره حساب او مفهوم يې خبر نه وو . داسې ښځه کېده هر څه ته په ځوانيو سترګو وکتل شي ، په دې کې آن چې ناصر هم شريک و .
د ۱۹۶۷ کال د جون په پای کې پوډګورني قاهرې ته راغی ، د عقبې د خليج په هکله يوه پوښتنه وشوه ، ناصر ځواب ورکړ چې په دې هکله يواځې د پوځونو تر په شا کېدو، وروسته پريکړه کېدی شي . هغه داسې خيال کاوه چې د ۱۹۶۷ کال نه به وروسته راتلونکې هغسې شي لکه د سويز د جنګ نه وروسته چې شو .

خو ډير ژر ربښتيني حالت ځان را ښکاره کړ . څرګنده خبره ده چې په بهر نړۍ کې پيښې پرځای دريدلې نه وې ، او که عربانو په دوی کومه اغيزه کولای شوه ، دوی بايد په نړيواله سويه د قوتونو په هغه نا انډول کېدو باندې پوهيدای چې جنګ را پيدا کړی و . د څو اونيو په تيريدو سره د روس او امريکې دريځونه څه ناڅه روښانه شول . د جون په پای کې قاهرې ته د پوډګورني ناکام سفر وشو ، چې بل چيرته مې بيان کړی دی . د مسکو د خبرو اترونه د عارف او بومدين راپورونه را ورسيدل ، د ملګرو ملتونو د هنګامي غونډې ناکامي ، هيڅ ډول نتيجې ته ونه رسيدله ، او د رئيس جانسن سره په ګلاس بورو کې د کوسيګين غونډه هم بې نتيجې وه .

دې ټولو ، ناصر يوې نتيجې ته ورساوه . هغه پوي شو چې د هر بل جنګ په څير به د جون د جنګ نه وروسته هم خبرې اترې پيل شي چې خامخا به سولې ته ونه رسيږي خو د انډول يو څه پيوند ونه به راولي . هغه په دې پوهيده چې ټولې سياسي او پوځي پانې د اسرائيلو په لاس کې دي ، نو د ده له پاره ممکنه نه ده چې ټيټه خبرو اترو ته ور داخل شي ، که داسې کار وکړي دی به په آسانۍ سره مجبور شي چې په ځان باندې تحميل کيدونکې پريکړه ليک لاس ليک کړي ، لکه په ۱۹۱۹ کال کې چې په وارسا کې جرمنانو وکړ ، او سره له

دی چې روسانو دی د برسټ ليتوفسک په څېر تړون ته تشويقا وه ، خو دا يو داسې کار ؤ چې ده له ځان سره پريکړه کړې وه چې نه به يې کوي .

ناصر دې نتيجې ته ورسيد چې يواځې لاره داده چې خبرې روسانو ته ور پريږدي . لېرتر لږه ډوی د امريکايانو سره د يو ستر طاقت په توګه د بل ستر طاقت سره خبرې اترې کولای شي ، او که دا ديتانت وي چې ډېرو عربو پرې باور درلود ، دوی جنګ بايلود ، کيدې شي دا هم ديتانت وي چې عربو ته سوله راوړي شي .

ناصر روسانو ته وويل چې دی د دوو شيانو نه تيريدونکی نه دی - هيڅوک د ده نه دا غوښتنه نه شي کولای چې د مصر يو مربع فوټ ځمکه چاته ورکړي ، او نه دی د فلسطينيانو له حقوقو نه تيريدي شي . د دی دوو شيانو نه پرته روسان نور په هر څه خبرې کولای شي ، ناصر په دې ښه پوهيده که دوی دا کار وکړي نو په دې به پوی شي چې په دې ډول د شخړو د اواري او سولې امکان نشته . يواځې کله چې دوی په دې خبره پوی شي نو بيا به مصر او عربي نړۍ ته د وسلو د تيارولو په فکر کې شي چې د بل وار د پاره ځانونه تيار کړي .

په ويلونه ارزي ، څومره چې عربان په دی پوهيدل چې خبرې اترې څه ګټه نه شي رسولی ، هغومره روسان هم په دې فکر وو . هغوی يواځې په ګټلو کې د اسرائيلو د غرور ننداره کوله . نو د ١٩٦٧ کال په اګست کې د خرطوم د سر مشرانو په غونډه کې د جوړې نه کولو يو څرګند دريځ ونيول شو چې عربي ځواکونه سره نژدي کړي .

خو د روس د پاره دومره اسانه نه وه چې د عربو نمايندګي وکړي . طبعاً جنګ دوه اړخيزه بې باوري او بدګوماني په ميراث پريښې وه . عربانو په روسانو تورلګاوه چې د جنګ په بهير کې يې له دوي سره په وخت او پرځای مرسته ونه کړه ، نه په وسلو اونه په سياسي ډګر کې .روسانو په خفګان سره د دغو تورونو د منلونه ډډه کوله ، هغوي ويل ، دا پخپله عربان وو چې د خپلو طبيعي عيبونو ، نيمګړتيا وو ، وراسته تولنيز جوړښت او بې کفايته مشرانو د درلودلو له امله د جنګ په ډګر کې ناکام شول. نو د ناصر دريځ دا ؤ چې تر پخوا زيات روسان د منځني ختيځ په لانجو کې را ښکيل کړي . ده غوښتل روسان دا احساس کړي چې د مصر ناکامي د دوی ناکامي ده ، او د دوی حيثيت د مصر د حيثيت پورې تړلی دی .

نوی دریځ تقریباً یو ناڅا په پیل شو . د شوروي لوی درستیز ملرشال ماـ توی ذخـروف د پوډکـورني سره مصر تـه راغـۍ چې د مصر د پوځ او وسلـو د برابرولو په بیا جوړوني باندې له سره غـور وکړي . ناصر هغه ته خپله دري پړاویزه ستراتیژي بیان کړه ـ په لومړي پړاو کې باید ټول عربي هیوادونه پـه دفاعي سنگرکې ځالونه تیار کړي ، بیا د ځان ساتنی او پام کولو پړاو ته تیرشي ، او په پای کې د نیولو شویو ځمکو د آزادولو د مبارزې پړاو . شورویانو ددی پلان سره موافقه ښکاره کړه ، او په مسکو کې د مرکزي کمیټې په غونډه کې چې پوځي لوړ رتبه کسانو هم پکې برخه درلوده ، دوی داسي وکتلـه چې لږ تر لږه دوه کاله وخت په کار دی ترڅو عربان په یـوه برابره پیمانه پوځي عملیاتـو تـه تیار شي .

څنگه چې دی کار په سیمه کې روسان د ده د پلان سره سم ډیر راښکیلول ، ناصر د پوډگورني د هغه پیشنهاد هر کلي وکړ چې قاهره کې یې ده ته ورکـړ ، چې د شوروي د مـدیترانې سمندري پوځ بایـد مصر ته د د مي او هوا خوري د پاره راشي . د هغـه لا دا خوښه وه چې د شوروي جنگي کشتۍ پورت سعید ته راشي ـ او که د اسرائیلي بریدونو په ترڅ کې کومه یوه وویشتله شي نو کار به سم شي . د دی ټولو سره سره هغه د روسانو دغه غوښتنه په پرله پسي توگه په کلکه رد کړه چې په سکندریه کې یوه مستقله پوځي اډه جوړه کړي .



یواځې ناصر نه ؤ چې د جون د جنگ نه وروسته یې په یوه ځرگنده سیاسي ستراتیژه کار وکړ . امریکایان پـه دی ډیر ښه پوهیـدل چې پـه قاهـره کی څـه تیریږي او دوی څه غواړي او څنگه یې بایـد پـه لاس راوړي . د دوی هـدف دا ؤ چې پـه منځني ختیځ کې روان حالات همداسی وساتي ، چې د اسرائیلو په پوځي لوړتیا او د عربو د ځمکو په نیولو یې بنسټ ایښودل شوی ؤ ، او د عربي محافظه کارو دولتونو سره د امریکې د پټ اتحاد له خوا یې پوره ملاتړ کیده . په دی ستراتیژه کې دا خبره هم شامله وه چې د شوروي اتحاد سره به د پرمختلونکو عربي هیوادونو په تیره بیا د مصر د اړیکو د خرابولو د پاره کار کیږي . اوس چې هر څومره اقتصادي او د وسلو مرستې د عـربي پرمختلونکـو هیوادونو سره وکـړي ، دوی بـه پـه منځني ختیځ کې د امریکې د اندیوالانو سره سیالي ونـه کړای شي . نو امریکایانو د ناصر غوندې سړي د پاره یواځې یوه دروازه پرانیتې پریښې وه ، چې دی ځان له دغه حالت نه را وباسي او د واشنگټن سره مخامخ

خبري پېل کړي . په حقيقت کې امريکايانو چې څه ويل دا وو چې ـ 'تـه کـه هر څه غواړې ، بايد موږ ته راشي ، او زموږ شرايط ومنې' .

که څه هم ناصر پـه دې ښه پوهيـده تر هغـې چې قوت او زور نـه وي ، د امريکايانو سره خبرې هيڅ ګټه نـه لري . نو پـه کار وه چې د جبهې لومړۍ کرښه فعاله وساتله شي ، او روسان دې ته تشويق شي چې پـه سيمه کې پوځي او سياسي خطرونو اخيستلو ته غاړه کيږدي . په پای کې دوي دې کار ته تيار شول خو د تشويق کولو عمليې او کار پوره ډير وخت ونيو .

روسان ښايسته ژر په دې پوی شول چې د منځني ختيځ په هکله د امريکايانو سره په ځانګړي ډول خبرې نه شي کيدای . د نکسن په زمانه کې داسې خبرې ډيرې اوريدل کيدې چې د منځني ختيځ مسئلې بايد د نورو مسئلو سره په ارتباط کې وڅيړلې شي ، لکه ويتنام ، د اروپا امنيت او د وسلو کموالی . په حقيقت کې کله کلـه داسې معلوميده چې د هغو روسي وسلو انـدازه چې مصر تـه را رسيدې مستقيماً د امريکې سره د روس د اړيکو د حالت پورې تـړلې وه ـ چې اړيکې به ښې کيدې ، وسلې به دريدې ، چې اړيکې بـه خرابيدې د وسلو بهير بـه بيا را زياتيده .

په لومړيو کې ، زما په فکر ، شورويانو د نکسن نه ډير اميدونه درلودل ـ د ۱۹۶۸ کال د مارچ په ۳۱ مه جانسن اعلان وکړ چې جمهوري رياست ته نه کانديديږي ، په هغه باندې يې د خپلې سختې بې باورۍ څرګندونه وکړه . هغوی هغه وخت قاهرې ته وويل چې د دوی په فکر ، د نويو شرايطو په رڼا کې بـه جانسن د منځني ختيځ پـورې د داسې تـړلو نوښتونو نه کار واخلي چې د خلکو ملاتړ ورسره نه وي . په دې هکله دوي خپه وو ، خو مايوسۍ د دوی مخنيوی ونه کړای شو ، د نکسن د بريالي کيدو نه وروسته دوي قاهرې تـه خپلـه عقيده څرګنده کړه چې کيدي شي نوی جمهور رئيس د قاهـرې سره د معاملو لـه پاره ګټور وي .

رښتيا خو په دې ټول وخت کې د امريکې په وړاندې د روس دريځ ناڅاـ په او کله کله په ډراماين ښه بدليده . د مثال په توګه د ۱۹۶۹ کال په مې کې دوی له مصر نه غوښتنه وکړه چې د سويز د کانال نه پورې 'تخريبي جنګ' بس کړي ، دا جنګ ځوا دوی يو پوځي او سياسي ضرورت باله . دوی دا غوښتنه د اخطارونو د خپرولو سره ملګرې کړه ، دا خطر شتـه چې د مصر ټول صنعتي

مرکزونه وویشتل شي ، دوی بیا د ځېره کې یولړ فرمولونه وړاندې کړل ، دوی پرې کارکړی ؤ او فکر یې کاوه چې جنګ به ودرولای شي . دا د دوی د دریځ د هغې بدلون سره ملګری ؤ چې برژنف د ۱۹۶۹ کال د می د ورځې په مراسمو کې یواځې په ویتنام کې د امپریالیزم تیری یاد کړ ، د امریکې نوم یې وانه خیست . او وروسته څو کاله د می د ورځې په جشن کې د اسرائیلو نوم نه اخیستل کیده .

د پالیسیو ځینې دا بدلونونه په هغه څه پورې تړل کیدي شي چې د شوروي مشرتابه ډیر وختونه په یوه آواز خبرې نه کولې . د لومړي ځل له پاره ، پوځیانو د سیاست مدارانو په پرتله زیاتې د جنګ په ژبه خبرې کول غوښتل . د ۱۹۶۹ کال د سپتمبر په ۹ مه د سره سمندرګي د رازظفرانا په سیمه کې په پوځي پوستو باندې د اسرائیلي پوځونو له برید وروسته ، مارشال ګریچکو په مسکو کې د مصر د هیأت غړیو ته شکایت وکړ : تاسي باید ډیر زړه ور اوسئ ، تاسي باید د هغوی مخه نیولی وای . هغه غونډه څنګه شوه چې تاسي ورته د جبهې د لومړۍ کرښې هیوادونه ویل ؟ ستاسي متحده قومانده کومه ده ؟ تاسي ولې ډارېږئ ؟ د روس سمندري پوځ په مدیترانه کې دی او د امریکې شپږم لمبر سمندري پوځ پسې د سیوري په څیر ګرځي . هغوی هیڅ نه شي کولاي . که امریکایان خپلې کشتۍ اسرائیلو ته راولي ، مونږ تیار یو خپل پوځونه ستاسې خاورې ته درولو . بیا به زه وګورم چې څوک یې ګټي' !

آن کوسیګین چې تل به یې د پام او حوصلې خبرې کولې ، اوس را پارول کول . په همدی وخت کې یو سوریایي هیئت په مسکوکې ؤ ، د دولت د رئیس نور الدین آتاسي ترمشرۍ لاندې او د دفاع وزیر جنرال مصطفی تلاس هم ورسره ؤ . کوسیګین لومړی هغه ته وویل : 'زه ستا په باره کې جنرال صاحب ، هیڅ نه اورم . اورم چې د مصر په جبهوکې جګړې دي ، د اردن په جبهه کې جنګ دی ، خو تاسي سوریایان هیڅ هم نه کوئ' . جنرال تلاس وویل ، نه ، زه په چوپه کار کوم' . کوسیګین ورته وویل ، 'بده نه ده چې کله کله سرې د خپلو ښو کارونو په هکله په لوړ آواز وغږیږي' .

ناصر د ۱۹۶۸ کال په جولای کې مسکو ته تللی ؤ او تاکل شوې وه د ۱۹۶۹ کال په جون کې بیا هلته لاړشي ، خو کتنه وځنډول شوه . هغه یو شفاهي پیغام کوسیګین ته ولیږه (برژنف ته نه ، ځکه دا یوه حکومتي معامله وه ، نه ګوندي) په دې کې ویل شوي ؤ چې دی ارزو لري مصر ته به د وسلو

راليږل د روس او امريکې د اړيکو سره بدلون نه کوي . کوسيګين په ځواب کې وويل ، چې تراوسه پورې د امريکايانو سره په اړيکو کې کوم برياليتوب ته نه دي رسيدلي . هغه څه چې دوی اوريدلي وو تول يواځې اميدونه وو چې د امنيت د شوری ۲۴۲ لمبر پريکړه ليک به عملي شي او د تيري بدله به نه ورکول کيږي . هغه ټينګار وکړ چې مصر ته د وسلو برابرول د شوروي او امريکې د اړيکو په څرنګوالي پورې تړلي نه دي . د دوی په فکر امريکايان د منځني ختيځ د لانجې د پاره د اواري راوستلو پلوي کوي خو دوی دواړو خوا وو سره معامله کوي او خلک غولوي . کوسيګين وويل ، 'بايد هيره نه کړئ چې د امريکايانو مونږ ډير بدايسو ، او تل را سره مخالف کوي او له مونږ نه نفرت لري . خو ډيرې خبرې دي لکه د وسلو سيالي ، د ... امنيت او البته منځنی ختيځ چې د دوي او زمونږ ترمنځ د خبرو اترو ضرورت را پيدا کوي' .

کوسيګين په همدې لهجه زمونږ يو هيئت ته خبرې کړې وې چې په دې وروستيو کې مسکو ته په سفر تللی ؤ . هغه ويلي ؤ ، 'تاسي بايد د حالاتو په سړولو کې هڅه وکړئ ، زه پوهيږم ستاسي د پاره د دې خبرې منل ګران دي چې د دښمن الوتکې دې ستاسې د خاورې د پاسه الوتنې کوي ، او د دښمن ټانکونه او توپونه دې ستاسې په خاوره هدفونه ولې او تاسي يې ځواب نه ورکوئ . خو مه پريږدئ چې حالات له قابو نه ووځي . تاسي بايد خپل پوځونه ولرئ ، وسلې او کارتوس پيدا کړئ . تاسي بايد د دې موقع نه د خپلو پوځونو د روزلو د پاره ګټه واخلئ . تاسي بايد داسي کار ونه کړئ چې اسرائيلي جنګ خوښونکي تري ګټه پورته کړي . تاسي بايد خپله کورنۍ جبهه پياوړې کړئ او په نړيوال عامه ذهنيت کې ځانته ملاتړ پيدا کړئ .



د ۱۹۶۹ کال په جون کې په مسکو کې د نړۍ د کمونيستو ګوندونو يو کانفرنس ؤ چې د عربي نړۍ کمونيستي ګوندونو پکې برخه اخيستې وه . دا وخت ګروميکو د منځني ختيځ د لانجې د آواري د پاره يو بل پيشنهاد وړاندې کړ چې د امريکايانو د هغه پيشنهاد سره يې ډير ورته والی درلود چې اردن او ځينې نور عربي حکومتو نه يې له متن نه خبر وو . دې د واړو پيشنهادونو غوښتنه کوله چې عربان بايد دا خبره ومني چې د اسرائيلو سره مخامخ خبرو ته کښيني ، د سرحدونو د څارنې د پاره د عربو ـ اسرائيلو ګډې ګزمې او پيرې وشي او داسې نور ، هغه وخت دا ټول بيخي د منلونه وو . د مسکو په کانفرنس کې عربي

کمونیستو ګوندونو هڅه وکړه ترڅو نور هېڅتونه قانع کړي چې په پریکړه لیک کې د فلسطین د خلکو حقوق په رسمیت وپېژندل شي ، خو بریالي نه شول . د نظریاتو توپیر هغه وخت څرګند شو چې د مراکش دکمونیست ګوند عمومي منشي علي جعفر د کانفرنس د پای ته رسیدو په غونډه کې وویل ، دی یواځې په یو شرط د پریکړه لیک لاس لیک کولو ته تیار دی ، په دې پیشنهاد کې د فلسطین د خلکو حقوقو ته هیڅ اشاره نه ده شوی .

ناصر په دې فکر ؤ چې د عربي کمونیستو ګوندونو او د رئیس تیتو ، اندیرا ګاندي او د ختیځې اروپا د ځینو حکومتونو له لیارې په شوروي اتحاد باندی زور راوړي او هغوي په دې قانع کړي چې د خبرو اترو په هکله چې مصر کوم دریځ نیولی دی هغه سم دی . په پای کی ګرومیکو خپل پیشنهاد د سوریې د کمونیست ګوند مشر خالد بکداش ته وښود، هغه یې اصلي متن په روسي کی (هغه روسي لوستی شوه) او هم یې انګریزي ژباړه ولوستله . له دی وروسته ورته بیا د امریکی د پیشنهاد متن وښودل شو . هغه د پیشنهادونو په ورته والی په آسانۍ سره پوی شو ، او وې ویل په عربي نړۍ کی به یو کمونیست هم پیدا نه شي چې د ګرومیکو د پلان ملاتړ وکړي - او نه به یې کوم یو عربي ناسیونالیست ومني . د بکداش له څرګندونو نه داسی معلومیده چې امریکایانو به تل په روسانو داتور لګاوه چې دوی عربان د سوله ییز آواري د خبرو نه منع کوي ، نو روسان غواړي امریکایانو ته وښیي چې دوی نه ، بلکې عربان داسی کارکول نه غواړي . نو دوی څکه داسی طرحه وړاندې کړې ده چې د امریکا پیشنهاد ته ډیره نژدې ده ، او کله چې مصر او نورو عربانو دوی مجبور کړل چې د ګرومیکو پیشنهاد باید وړاندې نه کړي ، دوی بیا په عربو دا تور ولګاوه چې د دوی غلطي وه چې د پیشنهاد نه څه نتیجه ترلاسه نه شوه .

خالد بکداش اعتراف وکړ چې د فلسطین په هکله د نورو کمونیستو ګوندونو د دریځ نه دی ډیر نا امیده ؤ . هغه وویل ، 'مونږ باید دا ومنو چې اروپايي کمونیست ګوندونه څه ناڅه د یهودانو تر اغیزې لاندې دي ، او که د روس نفوذ نه وای نو په مسکو کی به د منځنی ختیځ په هکله پریکړه لیک نور هم کمزوری وای. د صهیونیزم په سر رومانیایان د یو پادشاه نه هم ډیر محافظه کاران وو - د اسرائیلو کمونیستان دې ته تیار وو چې د فلسطین د خلکو حقوق په رسمیت وپیژني ، خو روسانو ونه منله، . خالد بکداش زیاته کړه چې هیڅوك باید دا خبره له یاده ونه باسي چې په منځني ختیځ کی مقابله د هغې

لري . وزير ته په مسکو کي د دري کوټو اپارتمان ، يو شيکا موټر او په کليواله سيمه کي يو تفريحي کور ورکول کيږي . خو که دې سر بېره پروزارت د سياسي بيرو غړي هم وي ، ورته د پنځه کوټو کور ، پردي لرونکي زيم موټر ، او دوه تفريحي کورونه ، يو د مسکو په نژدې ګاونډ کي او بل د سمندر په غاړه کي ورکول کيږي .

همدارنګه د بهرنيو هيوادونو سره د شوروي په اړيکو کي د مراتبو روښانه لړه ښکاري ، شورويان بهرني هيوادونه د ګوندي غړيو په څېر درجه بندي کوي . په عمومي ډول د دريمي نړۍ هر هيواد له دريو نه په يوه ډله کي ځان مومي ، او هغه ته د ځان د نسبي ځاي معلومول ډېر اهميت لري ، په دغه پړاو کي کيدي شي يو هيواد د ټولونه په لوړ پوړ کي راشي ، ځکه په دي پړاو کي دا کار تقريباً د کيدونه دي چي د يو پوړ نه دي بل پوړ ته لاړ شي

د ټولو نه لوړ پوړ - ناصر د الف پوړ بولي چي يو ډېر غښتلي او منلي ملي دريځ لري . يو هيواد په دغه پړاو کي په لوي انداز کي سياسي ملاتړ او اقتصادي مرستي ترلاسه کوي ، خو دا مرستي نوري بې قيده او بېشرطه نه وي لکه څنګه چي د واده په لومړۍ خوړه مياشت کي وي . په نړيوال ډګر کي د شوروي ملاتړ دومره وړاندي هم ځي چي د يو هيواد په چارو کي د لاس وهني او د هغه هيواد د نمايندګۍ کولو بوي تري راپورته کيږي ، خو دواده په لومړۍ مياشت کي شورويان تل دي ته تيار ښکاري خپلې پيڅي بدوهي او بيرته ځانونه غاړي ته راوباسي .

د مرستو په هکله د الف پوړ ډېر امتيازونه لري . په دي پوړ کي هيواد باندي وسلې د اصلي بيي په دريمه برخه پلورلي کيږي ، پور تري شل کاله وروسته د ٥ ، ٢ په سلو کي ګټي سره غوښتل کيږي. د الف پوړ يو هيواد سره ټول د ورکړي راکړي کارونه په ډېره لوړه سويه کيږي . که څه هم غوښتني د معمولو سياسي چينلونو له لاري مسکو ته ولاړي شي ځواب يې د کريملين د مشر تابه د لوړ مقام نه راځي . په فرهنګي راکړه ورکړه کي هم ليدني کتني د بلشوي د کمپنۍ د لوړي درجي ستوري کوي ، په ۱۹۵۰ کلونو کي ګالينا اولانوفا او مايا - پليستيکايا لوړه درجه ستوري وو . ( ناصر د ۱۹۶۲ - ۱۹۶۵ پوري او بيا د ۱۹۶۸ کال نه وروسته په الف پوړ کي ؤ .)

دب په پوړ کي هم يو هيواد له شوروي اتحاد نه بنايسته ډيري مرستي تر لاسه کوي . په داسي هيواد باندي وسلې په خپله اصلي بيه پلورلي کيږي ،

نړيوالې مبارزې يوه برخه ده چې د امپرياليزم او خپلواکۍ، او د مرتجعينو او پرمختلونکو قوتونو ترمنځ روانه ده . هغه ووېل ، ’نړيوال يهوديت د شوروي اتحاد په وړاندې ولاړ دی ، دا يو داسې شی دی چې روسان ورته بايد سخته پاملرنه وکړي‘ .

د اردن د کمونيست گوند عمومي منشي فواد ناصر ته هم د کرومیکو پيشنهاد وښودل شو . د هغه څرگندونې داسې وې چې روسان د خپل يهودي لږه کي د لاسه د را پيدا کيدونکو ستونځونه ښه خبر ؤ . چا ورته ويلي ؤ چې يواځې په مسکو کی تر يو ميلون زيات يهودان اوسيږي .



که څه هم ناصر غوښتل له امريکايانو سره د خبرو زياته برخه د روسانو په غاړه ور واچوي ، خو هيڅکله يې هم دا اراده نه وه چې د امريکايانو سره د مخامخ خبرو نه ډډه وکړي . نو د ۱۹۶۹ کال په مارچ کی دايزنهاور مړک (دی په مصر کی له دې امله د درناوي ورسړی پېژندل کيده چې ۱۹۵۶ - ۱۹۵۷ کلونو کی يې د سينا نه د اسرائيلو د پوځونو په ايستلو کی پوره مرسته کړې وه) يوه مناسبه موقع وه ، د ښخولو په مراسمو کی په بهرنيو چارو کی د جمهور رئيس مرستيال محمود فوزي د يو ځانگړي استازي په توگه واشنگتن ته واستول شو . خو ده د امريکايانو په دريځ کی څه بدلون ونه ليد ، او قاهرې ته يې د بيرته راتگ په وخت د دې راپور ورکړ . هغه ته ويل شوي وو ترهغی چې د جون په جنگ کی د دوو هيوادونو ترمنځ شليدلي سياسي اړيکی بيرته نه وي ټينگې شوې ، په دې هکله د څه پرمختگ کيدل ممکن نه دي . دا د نا ميندی پيغام مسکو ته وليږل شو ، او ورسره ووېل شول کيدي شي ډيره ييځايه به وي چې مسکو له نکسن نه ډير اميدونه ولري . هغوی په ځواب کی داډ ورکړ دوی پوی دي چې امريکايانو ډير سخت دريځ نيولی دی .

اوس رښتياهم روسان لږلږ په دی پوی شوي وو ، ناصر به تل دا ويل چي اخر به دوی په دې پوه شي، چې د امريکايانو سره د منځنيختيځ د اوارېپه هکله خبرې هيڅ گټه نه لري . د ۱۹۶۷ کال نه وروسته د منځني ختيځ په چارو کی د شوروي اتحاد د برخې اخيستلو لومړی پړاو نژدې اوس په پوره کيدو ؤ ، د دويم پړاو د پيل کيدو وخت ؤ . څنگه چې ناصر په دې باور درلود چې د امريکی خوښه داوه په خبروکی د عربانو د پارهيواځې يوه لاره پرانيتې پريږدي هغه لاره چې دوي مجبوروي د واشنگتن خوا ونيسي ـ هغه پوهيده دغسې

لار د روسانو په خوا هم شته . نو ده په پوځي چارو کی د دوی برخه اخیستل په ډیره زیاته اندازه تشویق کړه ـ د مثال په توګه ، د کنډک په سویه يي د دوي د مشاورينو دشته والي غوښتنه وکړه .

د حالاتو د بدليدو تګ چي د منځني ختيځ لانجه يي د سيمه ييزي لانجي نه د يو ستر قدرت په لانجه بدله کړه ، د ۱۹۷۰ کال په جنوري کی مسکو نه د ناصر يوه پټه کتنه وه . په دې موقع ناصر برژنف او ملګرو ته يي وويل چي مصر د اسرائيلو ژورو پوځي بريدونو ته لوڅ پروت دی . د دی امکان نشته چي ملکي خلک د بريدونو نه وژغورل شي او يا د پوځيانو په روزنه کار وشي چي د سويز د کانال د پورې غاړې د ځمکو د بيرته لاس ته راوړلو د پاره ډيره ضروري ده . هغه د روسانو نه غوښتنه وکړه چي د اسرائيلو د بريدونو په وړاندې د ميزايلو يو ديوال جوړکړي ، اوکله چي روسانو وويل په څو مياشتو کی به په سام ـ ۳ ميزايلو کی د مصر عملي ته روزنه ورکړي ، نو ناصر پيشنهاد وکړ چي دوی دې خپله عمله ورسره را وليږي . هغه وويل روسان به د جنګ په لومړی جبهې کی نه ځاي پرځاي کيږي ، دا به اوس هم د مصري پوځونو مسؤليت وي ، خو دوي به د شا او څنګ د دفاع مسؤليت لري .

دا اقدام به البته ډير نړيوال جنجالونه را پيدا کړي ، يو مناسب دفاعي نظام الوتکو او ميزايلو ته ضرورت پيدا کوي ، برسيره پردی بايد روسي عملياتي الوتکې د مصر په خاوره کی ولاړې وي او روسي عمله د ميزايلو د په کار اچولو د پاره دلته وي . د سياسي بيرو د پوره غونډې وروسته پريکړه وشوه . د ۱۹۷۰ کال په اپريل کی مصر ته د نويو ميزايلو اوالوتکو او عملي را رسيدل پيل شول.

په پوځي برخه کی دغه ناځاپي نوښتونه د تازه ډپلوماتيکو پرمختګونو سره موازي وو . د ۱۹۶۹ کال د دسمبر په ۹ مه د امريکی د متحده ايالاتو د بهرنيو چارو وزير ويليام راجرز په يوه بيانيه کی وويل د 'تولو خوا وو په موافقه د يوې دايمي سولې، په بدل کی به اسرائيلي پوځونه د عربو دنيول شوې خاورې نه ووځي ، او د سولې په چوکاټ باندې به د ملګرو ملتونو د منځګړي ډاکتر ګوناري يارنګ په سرپرستی دواړه خواوې په جزئياتو خبرې وکړي ، دا به د ۱۹۴۹ کال د اوډز د اور بند د موافقو په رڼا کی کيږي . نه اسرائيلو او نه عربانو د راجرز دغې پلان ته په پاملرنې سره ځواب ورکړ ، خو واشنګټن د جوزف سيسکو په رالیږلو سره دا پلان تعقيب کړ ، دی د بهرنيو چارو په

وزارت کې د منځني ختيځ د چارو د پاره د وزير مرستيال ؤ چې د ۱۹۷۰ کال په اپريل کې يې سيمې ته سفروکړ . که څه هم له دښمنۍ ډکو مظاهرو عمان ته د ده د راتګ مخنيوی وکړ ، په قاهره کې يې تـود هرکلي وشو ، او د ناصر سره يې بې نتيجې ، خو اوږدې خبرې اترې وکړې . بيا د مې د ورځې په کليزه‌کې ناصر د امريکې نه غوښتنه وکړه اسرائيلو تـه پـه خپلـو مرستـو لـه سره نوې کتنـه وکړي . هغه ووېل ، يا دې امريکا اسرائيل مجبور کـړي د عربو د نيول شو يو ځمکو نه خپل پوځونه وباسي ، او يا دې ورتـه د وسلو برابرول وځنډوي ، که دا يوه هم نـه کـوي لـو ښکاري چې امريکايان هم پـه غير قانوني ډول د عربو د ځمکو په نيولو کې برخه لري . ناصر يو ليک نکسن ته ولېږه چې پکې د ده د مې د ورځې د کليزې څه خبرې يا دې شوې وې ، او د جون پـه ۲۵ مه نيټه راجرز بيا يو تازه نوښت اعلان کړ ـ د امريکې حکومت غوښتل د ډاکتر يارنګ ماموريت بيا را ژوندی کړي او په اسرائيلو او عربانو يې غږ وکړ ، چې ويشتل ودروي او خبرې پيل کړي . هغه همدارنګه د ۹۰ ورځو اوربند پيشنهاد وکړ او د دواړو خواوونـه يې د امنيت د شورئ د ۲۴۲ لمبر پريکـړه ليک له پاره ملاتړ وغوښت .

ناصر د جولای په ۲۳ مه نيټه د عربي سوسياليستي اتحاد کانګرس تـه پـه ناڅا پي ډول ووېل ، دی تيار دی د راجرز نوښت ومني . يو شمير عواملو دی دغې ناڅاپي پريکړې ته اړکړی ؤ . هغـه فکـر کاوه د ورانوونکي جنګ ، دوره پای ته رسيدلې وه . دې خپل هدف اجرا کړی ؤ ، د سويز د کانال په اوږدو کې يې پرتو پوځيانو ته د ويني او اور نوم وربښلی ؤ او په خپلو وروستيو پراوونو کې يې د ابا ايبان د خولې د اسرائيلو د هوايي پوځونو د توږلو، پـه کار اغيزه کړې وه . د دغې محدودې جګړې جاري ساتل بې ګټې وو ، يو نوي شي تـه ضرورت ؤ ، او ښه دا وه چې داسې يو دريځ ونيسي چې وکـولای شي د مصر د دفاع کړی د ميزايلو په کتارونو پوره کړي .



د ناصر له خوا يوې جوړې شوې کميټې د مصر په افکارو باندې نوره ښه رڼا واچولـه چې د پوځ ، استخباراتـو او د بهرنيـو چارو د وزارت استازي پکې وو . دوی د ناصر د هغه سفر د پاره مواد برابـرول او تيـاری يې نيو چې ټاکل شوې وه د ۱۹۷۰ کال د جون په ۲۹ مه يې مسکو ته وکړي ـ دا هلتـه د ده وروستی سفر ؤ ـ هغه دا مواد له روانيدلو نه وړاندې ولوستل . په کاغذ کې به

دري برخو غورشوی ؤ۔ پوځي حالت ، د مصر ، روس او امریکي اړیکي ، د مصر اونورو عربيْ هیوادونو کورنی حالات . دا لاندې یې د بهمو نتیجو لنډیز دی :

## پوځي حالت :

۱- اسرائیل اوس لګیادي د سویز د کانال په لویدیزه غاړه د ۲۰ کیلومترو په پراخوالي ځمکه باندي خپل پوځي کنترول ټینګوي . د اسرائیلو هڅه دا ده چي زمونږ وړاندې پراته پوځونه د هوايي تهدید لاندې وساتي ، د دې په بدل کی چي ښکته خوا ته د شورویانو د شته والي له امله څه نه شي کولای .

۲- اسرائیل دا د دې ځای د ناآرامیو د دوام له پاره یو تضمین بولي ترڅو په سینا باندی خپل کنترول جاري وساتي او دا د ورانوونکي جنګ تر ټولو ښه طریقه ګني .

۳- د روس د سام - ۳ ځای پرځای کولو او زمونږ په وسله والو پوځونو کی د میزایلو د راپوره کولو سره پوځي حالت زمونږ په ګټه د بدلیدو په لور روان دي . دا په سینا کی د اسرائیلو پوځونه د ستونځو سره مخامخ کوي څکه دا مونږ ته د کانال نه د تیریدلو امکانات را په برخه کوي .

٤- د دغي کیفي بدلون نه د څه نتیجو انتظار کیدي شي ؟ د اسرائیلو او شوروي د نسبتي امکان شته ، په تیره بیا د هوا له لارې ، چي باید ښاملرنه ورته وشي ؟ آیا دا به په پای کی د امریکی او شوروي ترمنځ مخامخ کیدو ته لاره آواره کړي ؟ د دی شیانو د مخنیوي له پاره به شوروي رښتیا څه اقدامو نه وکړي ؟

٥- مخکیني فقره اصلاً زمونږ او د شوروي د اهدافو ترمنځ بیلوالی څرګندوي . زمونږ د پاره د خپلو پوځونو هوايي دفاع دومره مهمه ده چي باید ژرتر ژره تر سره شي . خو روسان د هوايي دفاع پر اهمیت ښه پوهیږی ، خو دوی دا ډیره خطرناکه ویني . نو د دوی په ګټه ده چي دا کاروځندوي ترڅو څانونه په حالاتو ښه وپوهوي .

٦- په مسکو کی د ټولو نه زیاته د بحث د پاره مهمه موضوع داده چي څنګه د مصر د ګټو او د شوروي اتحاد د محاسبی ترمنځ نژد یوالی او مرسته وکړای شي .

## د مصر ـ شوروي او امريکې اړيکې :

۱- په عربي متحد جمهوريت کې د شوروي شته والی ، په منځنی ختيځ کې د شوروي د نفوذ زياتوالی او د هغې نتيجې د لويديځ د پاره د تازه سودا او انديښنې مسئله ده ، او امريکايان د داسې يو حالت سره مخامخ کوي چې مجبوريږي مونږ سره مخامخ خبرې پيل کړي .

۲- د روس ورځ په ورځ زياتيدونکی شته والی مونږ ته د امريکی سره په چنو وهلو کې ښه موقف راکوي ، کيدي شي امريکا په اسرائيلو باندې فشار راولي ترڅو د سولې او آوارې يو شکل ته غاړه کيږدي ، د مخه تردې چې د شوريانو نفوذ دلته دومره زيات شي چې بيا يې مخه نه شي نيول کيدی .

۳- په دی ډول به مصر ته د شوروي مرستې په امريکا باندې د فشار راوړلو د وسيلې په توګه په کار واچولې شي .

٤- نو بيا به څنګه شي ، آواری به راشي ؟ امريکا به د يو طاقت په توګه راپورته شي ، په اسرائيلو به زور راوړي ، چې يو آواری راشي . دا به د يو ډالر د لګولونه پرته وشي ، خو دا بل سترطاقت ، چې دا عمليه يې پيل کړې ده ، او خپلې خزانې او وينه يې پرې لګولې ده ، يوې خوا ته پريښودل شي .

٥- دا حالت به په نيويارک کی د څلورو طاقتونو په خبرو کې د شوروي اتحاد دريځ غښتلی کړي .

٦- دا کار به همدارنګه شوروي په دی کار ناراضه کړي چې مصر دې د امريکی سره مخامخ خبرې وکړي .

۷- د شوروي اتحاد هدف دادی چې په يواځې ځان سره يو آواری راولي ، څکه د دوی ګوند په دې لاره کی ډيرې قربانۍ ورکړې دي . شورويان په دې انديښمن دي چې دوی خپله د امريکايانو سره خبرې وکړي ، او که دا کار مونږ ته پريږدي .

۸- د شوروي او مصر د ګټو د بيلوالي له امله بايد د دې دوارو ترمنځ يو ريښتينی اندول ولتول شي .

## د مصر او نورو عربي هیوادونو کورني حالات :

۱- په پوځي برخه کې د شورویانو په کراره کراره قدم اخیستلو او د هر دول احتمالي سیاسي جنجالونو د پاره له وړاندې نه تیاري نیولو ، شوروي اتحاد په دې بریالی کړ چې په مصر او نورو عربي هیوادونو کې خپلو ځینو هدفونو ته ورسیږي .

۲- په دې کې شک نشته شوروي اتحاد په دې هیله دی چې زمونږ نه کار واخلي ترڅو هغو عربي هیوادونو ته ننوځي چې د دوی په مخ یې دروازې پورې دي ، لکه لیبیا ، او په ځینو نورو کې لکه سودان خپلې پښې ټینګې کړي .

۳- شوروي اتحاد په دې هیله دی چې مونږ تشویق کړي د خپلو ځینو موسسو او ادارو جوړښت داسې بدل کړو ترڅو دوی په دې باوري شي چې مصر د امپریالیزم ضد او د شوروي پلوي سیاست جاري وساتي ، او هم په کراره کراره هغه ځواکونه کمزوري کړي چې شورویان یې ملي بولي او طبیعت ، سابقه او تمایلات یې په بنستیز ډول د شوروي ضد دي .

٤- شوروي اتحاد غواړي په پوځ کې شوروي ضد احساسات مړه کړي ، خپل مخالف کسان له کارونو لیرې کړي ، په تیره بیا لوړ رتبه پوځي منصبداران .



ناصر چې په خپل وروستي سفر په مسکو کې ؤ برژنف ته یې وویل غواړي د راجرز د نوبت نه ښکاره ملاتړ اعلان کړي . برژنف لېږ اریان نه ؤ ، د ده له خولې نه ناصر څنګه د داسې یو شي منلو ته تیار شو چې 'د امریکې بیرغ پرې ولاړ ؤ ؟'. ناصر ورته څرګنده کړه چې دا یواځې د امریکایي بیرغ له امله ؤ چې د ده په فکر بنایي ګټور ثابت شي . هغه احساس کاوه چې مصر ته یو نوی پړاو پرانیتي ؤ . د سویز د کانال په غاړه د ورانوونکي جنګ اوس یو کال کیده چې روان ؤ . د مصر له پاره ډیر ګران ؤ ، په تیره بیا د اسرائیلو د هوایي بریدونو له امله په دلتا کې ډیر ملکي خلک ژوبل او وژل کیدل ، او د کانال په لویدیځه غاړه کې یې هغو کارګرانو ته د سر او ژوند ډیر تاوانونه اړول چې په استحکامي او تعمیري کارونو لګیا وو. خو د اسرائیلو له پاره د دې نه هم ګرانه وه ، څکه هره ورځ به د کانال په لویدیځه غاړه کې د ژوبلو او وژل شویو کسانو نومونه په غم او خفګان سره خپریدل . داسې ښکاریده چې اسرائیل به د اوربند هر کلی

وکړي ، او اوربند د ناصر د پاره هم ګټور ؤ . دا به هغه ته فرصت ورکړي
چې د میزایلو د یوال پوره تـه کـړي ، او ځان د نیول شو یو ځمکو د بیرتـه
آزادولو عملیاتو ته تیار کړي ، هغه وخت دا پلانونه د 'لومړی ګرانیټ' په
نامه یادیدل .

برژنف د ناصر په نظر پوی شو چې د راجرز نوښت یې خوښ دی ، خو
سم قانع نـه شو . د مسکو په دې سفر کې ؤ چې هغه ناصر تـه وویل دي بالکل
د مصر د نظر تکي ته راغلی دی ، او هغه اوس پـه دی فکر ؤ چې اسرائیل بـه
هیڅکله هم د څه شي منلو ته تیار نـه شي تر هغې چې پرې زور را نه شي ، او
په دې کې د امریکې ملاتړ ورسره دی .

اوس سره له دې چې روسان د امریکایانو پـه رښتیني نیت پوهیدل ، دوی
پام کاوه د منځني ختیځ سیمه دومره مهمه ده چې په دوي پاندې دلتـه زیات فشار
راوړل پوره خطر لري . نو پـه اصل کې شوروي اتحاد تیـار ؤ عربانو ته یو څـه
مرسته ورکـړي چې په اسرائیلو برید وشي ، او په دې ډول په منځني ختیځ کې
پر امریکایي هدفونو تیری وکړي ، په داسې حال کې چې امریکایان تیار وو اسرائیلو
سره مرستې وکړي ترڅو په عربانو بریدونه وکړي او په دې ډول پـه سیمه کې
د شوروي په هدفونو بریدونه وشي .

روسان په دې خبره رښتیا خوشاله نـه ؤ چې مصر د امریکایانو سره مخامخ
اړیکې ونیولې . دوی په دې هکله ډیر بدګومانه وو چې څه تیریږي او غوښتل یې
په ټولو شیانو خبر شي او ورتـه وویل شي. د مثال پـه توګه ، کله چې جوزف
سیسکوقاهرې ته راغئ، روسانوتري پوښتنه وکړه چې هغه سره په کومو موضوعګانو
خبرې وشوې ، څه وویل شول او د ناصر سره د ده غونډه څنګه وه . ناصر وویل
چې د شوروي سفیر تـه به ټول معلومات ورکړي ـ هغه همداسې وکـړل . خو
هغه د غونډې پریکړې ورونـه ښودلې . روسان بـه خامخا پـه دې پوي شوي وو
چې امریکایانـو د مصر نه په راتاوکـړی‌کې یوه خالیګاه پرینښې ده چې ناصر یکې
را وغورځـوي ، د منځني ختیځ د لانجې اوارې یواځې او یواځې د امریکې پـه
مرسته او د امریکې پـه خوښه کیدي شي ، یوه نتیجه د دې ښایي دا هم وي چې
شوروي اتحاد بالکل د معاملې نه بهر پاتې شي .

# وارخطـــاء د یو

د جون د جنګ او د ناصر د مړګ ترمنځ په دریو کلونو کې د بدو حالاتو نه د راوتلو له پاره عربانو په یو وخت په څو بیلا بیلو برخو کې کار وکړ. لومړی، پرله پسې پوځي مبارزه وه، د سویز د کانال په جبهه کې د ورانوونکي جنګ په شمول او د مصر او سوریې د پوځونو له سره روزل او مجهز کول. دویم، د نړیوالې ډپلوماسۍ په سطحه، چې واشنګټن، مسکو، د ملګرو ملتو ټولنه، د عربو دولتونه او اسرائیل هم پکې را نغښتي وو، په وړاندیني فصل کې ورته اشاره وشوه. دریم، په عربي نړۍ کې د ننه د توافق یوه عملیه روانه وه. څلورم، داسې هڅې په لاره اچول شوې وې چې د عربي هیوادونو او شوروي اتحاد ترمنځ د مرستو نوي او نړیوالي بنسټونه ولټول شي.

فکر کوم په دې کې څه شک نه ؤ، روسان ییخي په خپله دې هیله کې صمیمي وو چې د خپلو نو یو سودایي ملګرو او متحدینو عربانو سره د کار یو داسې چوکاټ جوړ کړي. په همدې ډول عربي حکومتونو، د مصر تر مشرۍ لاندې، چې په ډیره یا لږه اندازه یې د روسانو په مرستو تکیه کوله، په پوره صمیمیت هڅه کوله هغه وارخطاء د یو په خپل قابو کې راولي چې دوی ته مرستې ورکوي او دا د ستونځونه د خلاصون د پاره د دوی یواځنۍ هیله وه.

د یوې خوا له پاره هم د تحقیق او ځان برابرولو کار آسان نه ؤ. بهرنیو پیښو، چې زیات وختونه به یې د عربو ـ شوروي د اړیکو سره نیغ په نیغه هیڅ ارتباط نه درلود، تل د دوی په منځ کې نوې معاملې را پیدا کولې او زړې بدګومانۍ به یې را تازه کولې. د مثال په توګه د چکوسلواکیې مسئله. د ۱۹٦۸ کال په جولای کې ناصر په مسکو کې ؤ د دو بچک هغو هڅو چې غوښتل یې کمونیزم ته یوه 'انساني بڼه' ورکړي، د ده حکومت د شوروي سره د مخامخ ټکر د کمر غاړې ته راوست. کله چې ناصر را ورسید د شوروي مشرتابه کیدي شي وختي تصمیم نیولی ؤ د دو بچک خطرناکه تجربه په زور سره پای ته ورسوله شي، خو په دې هکله یې ډیره اندیښنه وه چې دغسې یو عمل به د مصر په خیر

هیواد باندی خومره بده اغیزه وکړي . مصر او شوروي اتحاد سره اوس ښه کلک تړل شوي وو ، او په مصرکی یو زیات شمیر شوروي مشاورین وو . کیدي شي مصریان په چکوسلواکیی کی د شوروي پوځي مداخله د ځان په هکله یو اخطار وبولي ، که دکتاره ووځي بایـد ورته منتظر وي ، نو تر هغې چی فرصت شته باید له شوروي نه خپل ځان را تړول کړي ؟ اوکه روسان وکولای شي د مصر ویره او اندیښنه راکمه کړي ، آیا ناصر به د پانچاشیلا د دغې ښکاره خالیگا پرضد ژایه ورنکړي ؟ چی په کلکه سره د یو هیواد پـه کورنیو چاروکې د بل هیـواد لاس وهنـه منع کوي . د روسانـو لویـه اندیښنه دا وه چی ناپیلي هیوادونه بایـد د دوی دغه عمل ونه غندي ، او څرگنده وه چی ناصر د دغو حکومتونو ترمنځ د کومې حیثیت درلـود . دوی د تیتـو د عکس‌العمـل پـه هکله لا تـردې زیات اندیښمن وو ، څکه ده د دو بچک او دوی تـرمنځ د منځگړیتوب هڅې کـړې وې . دوی په مسکوکی له ناصر نه غوښتنه وکـړه چی‌که وکولاي شي پـه دې هکله په تیتو خپل اثر رسوخ په کار واچوي .

د ۱۹۶۸ کال د اگست د ۲۰ مې نه وړاندې چی روسانو په چکوسلواکیی یرغل وکـړ ، د رواني مانورې پـه یوه کوچنۍ او ناڅاپي برخـه‌کی ما هم ځـان مشغول و موند . د مسکو نه د بیرته راتللو پـه لاره کی مې د تیتو سره مصاحبه وکړه ، زه د جولای په ۱۲ مه د ناصر سره مسکو ته تللی وم ، اوکله چی بیرته مصر تـه را ورسیدم ، فکر می وکـړ هغه څـه چی ده ویلي ؤ ډیـر ارزښتناك ؤ او باید په زیاته اندازه خپاره شي . د دې کار د تولو نه ښه لاره دا وه چی د الاهرام د جمعې د ورځې پـه گنـه کی یې خپره کـړم ، خو دا یوه اونۍ وروستـه راوتله ، د جولای په ۱۹ مه . بیا د جولای په ۱۵ ماته د بریوني د بریونکا د مانۍ نه یو تلگراف را ورسید ، رئیس تیتو پکې غوښتنه کړې وه چی د ده مصاحبه بایـد ژر تر ژره خپره شي ، او د یوگوسلاویا خبري اژانس ، تانژوگ ، به دا متن په همدي ماښام خپورکړي . ما تیتو ته ژر یو پیغام ولیږه او د خپل پلان نه می خبرکړ ، ځواب را ورسید چی پکې ویل شوي ؤ ده د لومړۍ برخې سره زیاته علاقه درلوده ، هغه برخه چی ما ترې پکې د چکوسلواکیی په هکله پوښتنې کړې وې . هغه موافقه وکړه چی تانژوگ باید یواځې همدا برخه خپره کړي . دا یو داسې ترتیب ؤ چی زما پیغې خوښ شو .

هغه پوښتنه چی ما د تیتو نه کړې وه دا وه چی دی ، د چکوسلواکیی د روانو پیښو پـه هکله څـه فکر کـوي او آیا دی د دې او د ۱۹٤۸ کال د یوگوسلوایي

د پیښو سره کوم ورته والی ویني ، هغه وخت ده د ستالین سره نالندرۍ ویشتلې .
د هغه ځواب داسي ؤ : 'د چکوسلواکیې د پیښو طبیعت بل ډول دی . زما په
فکر مونږ باید په دې کی مبالغه ونه کړو او نه تري ډرامه جوړه کړو . زما باور
نه راځي په شوروي اتحاد کی دې داسې خلک وي چی دومره تنګ نظري او
لنډپاري وي چی د سیاسي ستونځو د اواري د پاره دې د پوځي قوت نه کار
واخلي ، هغه ستونځې چی بیخي د چکوسلواکیې کورنۍ خبره ده . ځیني قدمونه
اخیستل شوي دي چی د زور د مداخلې سبب شول ، خو مونږ نن واوریدل چی
له نیکه مرغه د شوروي اکثره پوځونه د چکوسلواکیې نه په وتلو دي. (روسی
پوځونه د وارسا د تړون د مانورو د پاره چکوسلواکیه کې وو) . په دې کی
شک نشته د یو هیواد یا یوې ډلې هیوادونو لاس وهنه د یو بل هیواد په کورنیو
چارو کی لویه غلطي ده . زما باور نه دی په اوسنیو حالاتو کی په چکوسلواکیه
کی داسی څه وي چی سوسیالیزم ته خطر یا تهدید وبلل شي . که لویدیځ مداخله
کړې وای ، یا د هغوي د مداخلې ویره وای ، چکوسلواکیې پخپله د ځان دفاع
کولای شوه ـ هغه پوځ لري ، کمونیست ګوند شته ، او یو پیاوړی کارګر پوړ
شته . د دې مطلب دادی چی هیڅوک مونږ ته سوسیالیزم ساتلی نه شي . ځکه
مونږ پوره قوت لرو چی خپل سوسیالیزم پخپله وساتو' .

د تیتو اخطارونو څه ګټه نه رسوله . د روس شارزدافیر ته لارښونه وشوه
چی د اګست د ۲۰ می نیټې په نیمه شپه ناصر ته ورشي او ورسره وګوري .
ناصر په سکندریه کی ؤ ، راوینبس کړای شو ، او شارزدافیر ورته راغی . د رئیس
نه یې ښبنه وغوښتله ، روسي وویل ، ده ته یو مهم پیغام راغلي دی چی باید
د څلورو بجو نه وړاندې تاسې ته رسیدلی وای . ناصر خپل ساعت ته وکتل ،
وې ویل، 'اوس دري نیمې بجې دي' . بیا پیغام ورکړل شو . په دې عبارت : 'په
چکوسلواکیه کی حالات ډیر خطرناک پړاو ته رسیدلي دي . ځیني عناصر په
چکوسلواکیه کی د سوسیالیزم د ماتولو په کار لګیادي او نژدې ده چی په اروپا
کی د قوتونو انډول د امپریالیستانو په لور دروند شي . دا په تموله نړۍ اغیزه
اچولای شي . مونږ ته معلومات دی چی د چکوسلواکیې حالات د نړۍ د نورو
برخو د پیښو سره اړیکې لري ، د مثال په توګه ویتنام ، منځنی ختیځ ، هماغسې
چی پرو سږ کال امپریالیزم اسرائیل راوپارول په سیمه کی د آزادو شو یو رژیمونو
مقاومت ویلی کړي . له دې امله د چکوسلواکیې جمهوریت شوروي اتحاد او نورو
دوستو هیوادونو نه د ژر او سمدستي مرستو د وررسولو غوښتنه کړې ده ، چي

په سلوکي ٥ ، ٢ برخي کتي سره ، خو د شلو کالو پرځاي دولس کاله وروسته پور بېرته ورکوي. د مرستو غوښتنليکونه معمولاً د دوو هيوادونو د کډو هيئتونوله خوا څېړل کېږي او زيات وختونه داسي کېږي چي د غوښتني د ټولي اندازي په نيمايي باندي موافقه کېږي . پرله پسي خبري اتري کيدي شي دا اندازه د لومړنۍ غوښتني د اصلي اندازي په دريو کي دوه برخوته پورته کړي خو هيڅکله به هم له دي نه زياته نه شي .

د ج په پوړ کي يو هيواد ژر په دي پوهيږي چي بيخي د مسکو د بيرو - کراتانو سره کيوتى دي . دا بيا د هغه هيواد کار دي چي هڅه وکړي ځان د ب يا د الف پوړته پورته کړي ، خو په دي کي پوره ستونځي وي . دا د کريملين د مشر تا به ، کوندي او حکومتي ټول ماشين يو ځل بيا په خو زيدو راولي . يو هيواد چي لوړ پوړ ته د ځکيدو غوښتنه وکړي ، دا تر هغي بې کتي وي ترڅو داسي نوي پيښي رامنځ ته شوي نه وي چي مسکو مجبور شي په نوموړي هيواد له سره کتنه وکړي .

ښايي څلورم د 'د' پوړ هم ورسره شي. دا د سرو رسمياتو او کله کله د پټي دښمنۍ پړاو دي. (په ۱۹٥۹ کال کي د خروسچف سره له خبرو وروسته چي مصر ته د شوروي له خوا د مهماتو او سامانونو په برابرولو کي ځنډ راغئی ، زما په ياد دي ناصر ووېل ، لکه چي مونږ د 'د' په پوړ کي يو ' د ۱۹۷۳ کال د اکتوبر له جنګه وروسته چي شوروي د ژنيو له خبرو اترو نه وويستل شو ، دا وخت هم مصر ځان د 'د' په پوړ کي وموند .)

✱ ✱ ✱

اوس دي خبري ته راځو چي د ناصر د کتاب اصلي او مهمي برخي کومي دي - د دريمي نړۍ مشرانو ته د شوروي اتحاد سره د خبرواترو په دوران کي د څه کولو او نه کولو مشوري . هغه په دي خبره ټل ټينګار کاوه ، چي دا بايد عادي ونه ګڼلي شي ، دغو مشوروته غوږ نيول او عملي کول يې دوي سره پوره مرسته کولاي شوه - کيدي شي سړي د نااميندي او بې ځايه ستړتيا نه وژغور لاي شي .

## داسي کوئ !

١ - بايد په داسي يوه ژبه خبري وکړئ چي دواړه خوا وي پري ښې پوهيږي ، ځکه خرابه ژباړه ډيري ستونځي را پيدا کوي روسان ټل ټينګار کوي د خپل ژباړونکي نه کار واخلي ، ځکه هغه هيڅ اشتباه نه کوي ! په مشهورو ژبو لکه انګليسي او فرانسوي کي د دوي ژباړونکي ښه دي ، خو په لږو مشهورو

ورسره پوځي مرسته وشي . دا پوځونه به د چکوسلواکيې نه د خطرونو د ورکيدلو وروسته ډير ژر ووځي يعنې کله چې د هيواد قانوني ځواکونه پـه دې پوی شي نور هلته د پوځونو د شته والي څه ضرورت نشته . مونږ غواړو تاسې جلالتمآب خبر کړو چې هلته زمونږ د پوځونو تلل د چکوسلواکيې د حکومت په بلنه شوي دي ، چې د آزادو شو يو هيوادونـو د پاملرنې وړده» . پـه پيغام کې پـه تفصيل سره هغو خطرونو ته ګوته نيول شوې وه چې آزاد شوي هيوادونه يې تهديدول ، او د مصر د حکـومت نـه يې غوښتنه کـړې وه څو د دوی د دغې عمل دليـل منطقي وبولي چې د نورو د بنيګنې د پاره دا کار شوی دی .

د ناصر ځواب داسې وُ : «زه ستاسې د پيغام پوره مننه کووم چې مو را ليږلی دی ، خو مونږ فکر کوو د امپرياليستانو د دسيسو په وړاندې نورې لارې چارې هم موندل کيدې شوې» . شارژدافير وويل ، «رئيس صاحب زه خوشاله يم ، تاسې خطرونه وليدلای شول . د حالاتو نه مونږ ډير متأثر وو او مجبور وو چې عمل وکړو . دا د ورځو او آن چې د ساعتونو مسئله وه» . ناصر وويل ، «خبره داده چې امپرياليستان به د هغه څه نه ګټه پورته کړي چې تاسې يې د خپل ځان پرضد کوئ . زه چې په مسکو کې وم ، ما احساس کړه چې پيښې په ډيـر تيزوالي سره روانې دي . زه پوهيدم چې د رئيسه هيئت او د مرکزي کميتې غونډې بـه شوې وي . ما ګومان کاوه چې يو اقدام به کوي ، که څه هم ما دا خيال نه کاوه چې دومره زورور اقدام به وي» او تاسې به د چکوسلواکيې د مقاماتو سره ډيپلوماتيکي اړيکې ساتئ» . شارژدافير وويل ، «مونږ هغه تول وکړل چې څه موکولای شول ، خو ..» ناصر : «زه مننه کووم چې د عمل نه مو وړاندې خبر کـړم ، خو دا زما د احساساتو او اصولو خلاف دی بايد ووايم چې زه ځينې شرطونه لرم» . شارژدافير : «د چکوسلواکيې مسئله چې يوځل اواره شي ، د منځنې ختيځ د لانجې آواری به بيا ډير اسان شي ، ځکه امپرياليستان به پـه دې پوه شي چې آزادي بښونکي قوتونه به آسانۍ سره تر اغيزې لاندې نه راځي ، او د دوی سره به هر ډول ګوتې وهل څه نتيجه ونه لري» . ناصر : «که درته رښتيا ووايم : زه ستا پـه خبرو کې پوهښتنه نـه لـرم ، زه تا سره بحث کول نـه غواړم ، نو تبصره نـه کـوم . د مصر مطبوعات به ستاسې د حکومت دغه عمل ونـه غندي . خو تـه بايد زما پـه نظر به پوی شي ، څـه چې شوي هغه زمونږ او ستاسې په اړيکو لويـه اغيزه کوي ، او هم ستاسې او يوګوسلاويې په اړيکو . چکوسلواکيه ما ته د اصولو خبره ده ، خو د يوګوسلاويې له پاره د ملي ګټو يوه ډيـره ژونـدۍ مسئله ده . زما باور دی

چې دا بـه په منځني ختيځ کي يو نوی پړاو را منځ ته کړي'. شارژدافیر : 'زه فکر کوم دا نوی پړاو تیار پیل شوی وي'. زه د خپل هیواد په دپلوماتیکي خدماتو کی د شلو کالو راهیسې کار کوم ، ۱۳ کاله مې په عربي متحد جمهوریت کی تیر کړي دي . زه د ۱۹۵۶ کال د دري هیوادونو د ګډ تیري په وخت کی دلته وم ، او هم د ۱۹۶۷ کال د جون پـه جنګ کی . دا لومړی ځـل دی چې ما حس کړې ده زما حکومت د بنسټیز اهمیت لرونکی یوه پریکړه کړې ده . داسې يو تصمیم د هغه څه نه زيات شيان په خپله غیږه کی را نیسي چې د عمل د اجراء نه سمدستي وروسته را پیدا کیږي ، دا خپله داسې يوه پالیسي ده چې اغیزه به يې د نړۍ په هره برخـه کی ولیدله شي'. لږ ساعت وروسته ناصر بیا د روس له شارژدافیر نه شکریه وکـړه ، خو خبره يې په دې پای ته ورسوله چې برژنف باید د ده له نظره بـه خبر شي .

پـه آسانۍ سره لیـدل کیدل چې روسانو څـه هدف درلود . دوی ناصر پـه چکوسلواکیه کی د خپـل عمل پـه هکله د وړاندیني اخطار له پاره تاکلی ؤ (دا یواځنی عربي مشر ؤ چې دوي خبر کړ ) په دې هیله چې کیدي شي دی د دوی په ګټه يو عکس‌العمل ښودلو تـه تشویق شي چې نور عربي هیوادونه بـه هم بیا له دغې اوازنـه ملاتړ وکړي . پـه يو وخت کی دوي د یوګوسلاویې سره د ده د نږدې اړیکو درلودلو نـه ښه خـبر وو ، او په دې هیله وو چې هلته بـه هم تر يوې اندازې منځګړیتوب وکړي. او د شارژدافیر پیغام بې له شکه په دې نیت لیکل شوی ؤ چې داسې رمزونه تري راپورته شي چې ګونـدې د امریکایانو سره د روسانو د نږدیوالي له امله باید په منځني ختیځ کی د زړه پوري پرمختګونو ته سترګې په لاره شي .

ناصر روسي شارژدافیر ته وعده ورکـړه چې د مصر په مطبوعاتو کی به په چکوسلواکیه بانـدې د روس تیری نـه غنـدل کیږي . د داسې دریځ نیول ډیـر ګـران کار ؤ ، پـه حقیقت کی د عربـي سوسیالیستي اتحاد پـه د ننه کی يو شمیر کمونیستانو د روس د دغه عمل نه د ملاتړ مضامین لیکلي وو ، ما تصمیم ونیو يو داسې مضمون ولیکم چې د يو سنـد په توګه پـه دې هکله د مصر پـه نظر رڼا واچوم .

پـه دې مضمون کې مې ولیکل : 'مونږ د يو هیواد په کورنیو چارو کې د بل

هیواد مداخله او لاس وهنه نه شو زغملای ، په تیره بیا چې دا لاس وهنه پوځي بڼه ولري . هیڅ ډول منطق دا کار روا کولای نه شي . د چکوسلواکیې په هکله باید وویل شي ، یو کمونیست رژیم چې د خطر سره مخامخ ؤ ، کافي خبره نه ده . د چکوسلواکیې مشرتابه حق درلود کمونیزم ته د خپلې خوښې لاره ونیسي ، او هغه لاره چې دوی نیولې وه د چکوسلواکیې د ټولو خلکو ملاتړ ورسره ؤ . که چیرې کمونیزم دکوم خطر سره مخامخ ؤ ، دا به د چکوسلواکیې د مشرتابه لیمکړتیا وه . که د ټولنیزو عقایدو کومه برخه د چکوسلواکیې د مشرانو د ملاتړ وړنه وه ، دا ممکنه نه ده چې دا باید د بهر نه په زور ساتل شوې وای . پوځي مداخله بیخي غلطه ده . د هغه سړي شخصیت چې ګناه‌کوي د ګناه په دروند والي ځه اغیزه نه‌کوي . مونږ قانون لـدې امله نه شو بدلولای چې جرم د دښمن پرځای کوم دوست کړی دی .

روسانو پردې مضمون اعتراض وکړ ، خو نه دوي او نـه مونږ ناندرۍ وهل خوښ کړل . د ځه شي په هکله چې ناصر رښتیا اندیښمن ؤ دا ؤ چې د روس نه مصر ته د وسلو او ضروري مرستو د راوړلو لنډه لار د یوګوسلاوۍ نه تیریده ، دا باید د خطر سره مخامخ نه شي . رښتیا هم دا لاره دوه میاشتې بنده شوه ، خو بیا بیرته پرانیتل شوه . تیتو هم سره له دې چې د روس په دغه عمل ډیر خوابدی ؤ ، نه غوښتل دا مسئله دې یوې ښکاره مشاجرې او اختلاف تـه لاره پرانیزي .



هغه جنجالـونه چې بدګوماني تـري را پیدا کیده یواځې د روسانو له پلوه نه وو . دا اکثره وختونه د هغو عربي غورځنګونو له خوا وو چې د انقلابیتوب ټاپه یې په ځانولګولې وه او روسان پـري ډیـر غـولیـدل . نو پـه مسکـو کې د نړیوالو کمونیستو ګوندونو د کنفرنس تر پیل کیدو لږ وړاندې د مې په ۲۵مه په سوډان کې کودتا وشوه ، محمد احمد محجوب لیرې شو او جعفر النمیري قدرت ته ورسید . د سوډان کوچني خو فعال کمونیست ګوند په کودتا کې برخه واخیستله اوځینو غړیو ته یې د نمیري په لومړي حکومت کې چوکۍ هم ورکړل شوې . دا طبعا روسانو ته یو ډیر بریالی پرمختګ ښکاره شو .

د کودتا نه وروسته د سوډان د کمونیست ګوند عمومي منشي احمد سلیمان مسکو ته د سفیر په توګه واستول شو . هغه او د انقلابي شورئ غړي خالد-

حسن عباس دواړه مؤظف شول د نـوي حکومت لـه پاره د شوروي اتحاد سره د مرستو د برابرولو په هکله خبرې اترې وکړي . د وی د دې خبرې هیڅ ګومان نه کاوه چې ستونځې به پکې را پیدا شي . نـو چې دوي کله د پودګورني سره وکتل ، هغـه تـه يې ووېل د سوډان اقتصادي حالت ډېر خراب دی ، او د ۵۰ میلونو نغدو سټرلنګ پونډو د پورغوښتنه يې تري وکړه ، ترڅو خپل اقتصاد په پښو ودروي او وسلې پرې راونیسي . پودګورني وارخطاء شو ، وي ویل ، 'تاسې د خپلو مصري دوستانو سره مشوره نه ده کړې ؟ هغوی به درته ووايي ، مونږ هیڅکله هم چاته نغد پور نه ورکوو ـ دا د اصولـو خبره ده . تاسې وسلې د څه له پاره رانیسئ ؟ دا د وسلو را نیولو څه لیونتوب را پیدا شو ؟ د افریقې په دې ټولو آزادو شو یو هیوادونو څه وشول ؟ سوډان د کوم تهدید او خطر لاندي دی چې زمونږ وسلو ته ضرورت لري' ؟

د پودګورني او د روس د بهرنۍ سوداګرۍ د وزیـر سره خبرې اتـرې څه نتیجې ته ونه رسیدې ، نو احمد سلیمان ناصر ته یو پیغام راولیږه که دی مرسته وکړي . هغه ووېل ، نمیري د خبرو د نه بریالیتوب نه خبر شو ډیـر نا آرامه شو ـ نو اوس که ورته ناصر ووایي چې د شورویانـو سره څه ډول اړیکې ټینګې کړي او معاملې ورسره وکړي . ناصر مجبور شو نمیري ته ووايي ، 'د دوی سره معاملې کول یو لوی غم دی ، خو په آخرکې به ټول هغه څه په لاس درشي چې ته يې غواړې . او دوی یواځینۍ منبع ده ، ته مجبور يې ورسره معامله وکړې' . ناصر خان داسې ومونډ چې ګواکې دی د مسکو او خرطوم دکمونیستانو ترمنځ د ترجمان په توګه عمل کوي .



بیا د ۱۹۷۰ کال پـه جنوري کې د سوډان لـه کودتا نـه دري میاشتې وروسته ، په لیبیا کې انقلاب وشو ، پادشاهي يې ړنګه کړله او د ځوانو پوځیانو یوه ډلـه يې قدرت تـه ورسوله ، معمر القذافي يې مشر ؤ او ځانونـه يې د ناصر شاګردان بلل . پـه لومړیو کې دا هم روښانـو تـه یـو امید ښښونکی پرمختګ ښکاریده ، خو د اسلام په هکله د دوی پـه خبرو دومره نـه پوهیدل . ډیـر ژر څرګنده شوه چې د لیبیا مشر خپل زیات وخت پـه روس او کمونیزم بانـدي پـه انتقادونو تیروي . قذافي په مدیترانه کې 'بهرني سمندري پوځونه' ټول یو ډول غندي ، دا په روسانو ډېر بدلګیږي ځکه دوی په دې نامـه هلتـه خپل پوځونه لیږلي چې د امریکې د شپږم لمبر سمندري پوځ سره سیالي وکړي . هغه همدارنګه

'واردې شوې ايډيالوژۍ' وغندلې ، او د کمونيزم د نړيوال نفوذ نه نا خبره غوندې ښکاريده .

مسکو د تاتار د جمهوريت د کمونيست گوند د لومړي منشي او د مرکزي کميټي د غړي صالح بيتايف په مشرۍ ليبيا ته يو هيئت وليږه، قذافي د هيئت سره وکتل خود جوړې کولوځه نښې نښانې يې ونه ښودلې . هغه وويل ، د ده خلک کمونيستان نه دي او په مديترانه کې بهرني پوځونه نه غواړي . بيا د بلې لارې نه هغه پوښتنه وکړه ، 'تاسې د اسرائيلو حکومت څو د قيقونه وروسته په رسميت وپيژاند' ؟' 'امريکايانو څلور دقيقې وروسته په رسميت وپيژاند . تاسې څلور ساعته وروسته په رسميت وپيژاند . توپير يې څه دی' ؟

بيتايف څرگنده کړه ، څنګه چې په ليبيا کې کمونيست گوند نشته ، نو د دواړو هيوادونو ترمنځ به څه جنجال نه راپورته کيږي ، خو دې خبرې څه خوند ونه کړ . هغه چې بيرته مسکو ته ورسيد او راپور يې ورکړ ، دوی يوه هڅه وکړه د ليبيا د انقلاب اصلي څيره او ما هيئت ځانته معلوم کړي ، خو دا کار ډير بنستيز نه شو کيدي ، بيا پريکړه وشوه چې د شوروي اتحاد مشر مفتي بايد ليبيا ته سفر وکړي ، او د ليبيا يې ديني پوهانو يوه ډله بايد د شوروي اتحاد د مسلمانو جمهوريتونو په سفر لاړه شي . دا به د عربو او شوروي اتحاد په اړيکو کې دومره په شاتګ ونه بلل شي خو دا يو سفر هم ونه شو .



ښايي په عربي نړۍ کې داسې بل يو غورځنګ نه و لکه د فلسطينيانو غورځنګ چې روسان يې اندېښمن او وار خطاء کړي وو . دوی ونه شو کولای فلسطينيان د منلوړ يوه کنتار کې راولي . دوی ليدل چې د فلسطينيانو مقاومت يو سوچه ملي غورځنګ و او هيڅ ډول ټولنيز پروگرام يې نه درلود . داسې ټولنې لکه د فلسطين د آزادۍ له پاره د خلکو جبهه چې د منلوړ ټولنيزو اصلاحاتو خبرې کولې ، دوی ته عجيبه ټولگي ښکاريده او د دوی د سفکوروي اصلي کرښې نه ډير ليرې بلل کيده . د شورويانو په سترگو کې يو گوريلا يې غورځنګ لکه فلسطينيان چې هڅه يې کوله داسې شي چې بايد د کليو او ښارونو کارگران رهبري او تنظيم کړي . د روسانو باور دا و چې د فلسطين بورژوازي د خپلو گټو له پاره کار کوي او دوی به خامخا د اسرائيلي اشغالگرو سره مرستې کوي . روسان يوځل بيا د ناسيوناليزم د قوت په پوهيدلو کې پاتې راغلل ، چې د تاريخ په ځينو وختو کې د طبقاتي مبارزې نه ډير وړاندې اوپيا وړي دي.

يو هيواد چې د يوځای دښمن سره مخامخ کيږي بايد سره يو او په اتفاق شي ، کله چې د يو هيواد يوه برخه د بلې برخې سره مخامخ کيږي نوځامخا تجزيه کيږي . د ډيرو هيوادونو په ژوند کې دا دواړه پړاوونه راغلي او يو به په بل کې پټ ورننوتي وي ، خو دا به غلطه وي که سړی د دې هر يوه د اهميت نه سترګې پټې کړي .

د هغې وخت په هکله چې مونږ خبرې کوو ، د فلسطين د مشرانو له پاره بې وخته وه د داسې يو ټولنيز پروګرام خبرې يې کړې وای چې روسان ترې راضي شوي وای ،که څه هم دوی دا غوښتل ، خو دا کار يې ونه کړ . لويديځه غاړه اوس هم يوه زړه عنعنوي ټولنه وه ، داسې يو پروګرام به ورته بې معنی او خطرناک وای . او دې کار به د لويديځې غاړې اصلي مالي ملاتړ کوونکي سعودي عربستان او د خليج هيوادونه هم له دوی نه اړولي وای . په دې لومړيو وختو کې د فلسطينيانو غورځنګ د مياشتې د يو ميلون سترلنګ پونډو په خواوشا کې لګول ، چې مرسته کوونکو ورته ورکول . روسان همدارنګه د فلسطين د آزادۍ د ټولنې په ديني دريځ نه پوهيدل ، او هم يې د ياسر عرفات په دې خبره سر نه خلاصيده چې يورشلم ته به يې 'مقدس ښار' وايه .

د روسانو په سترګو کې د الفتح عملياتو چې د فلسطين د مقاومت اصلي ساتندويه ډله وه ، د لانجو د را پيدا کولو پرته بله ګټه نه درلودله ، چې اسرائيلو ته يې ډير لږ تاوان اړولی شو او هغوي ته يې دا پلمه په لاس ورکوله څو خپل زور او ظلم زيات کړي ، دا يواځې د ناصر په ټينګار ؤ چې روسانو د فلسطينيانو سره اړيکې ونيولې . روسان د مقاومت په غورځنګونو باندې په ډيرو بنسټيزو عملي معيارونو قضاوت کوي ، هغه معيارونه چې د دويم نړيوال جنګ په موده کې خپله په دوی د تطبيق وړ وو ـ دوی رښتيا دښمن ته څومره تاوان اړولی شي ، پوځي يا اقتصادي ؟ البته په دې معيارونو په فلسطينيانو باندې لږ حساب کيده يا پرې بيخي حساب نه کيده . خو روسان په دې نه پوهيدل چې په ځينو شرايطو کې ، په تيره بيا په هغو حالاتو کې چې مقاومت ته منابع وي او هغوي چې پرضد يې مقاومت ترسره کيږي نا اميده وي،ډيرکوچنۍاو بې اغيزې مقاومت هم يوه سيمبوليکه بيه لري . د فلسطينيانو د الفتح په هکله په لومړيو وختو کې دا خبره رښتيا وه . دا هغه وخت ؤ چې ګولدا ماير او نور اسرائيل بيخي له دوی نه منکر وو چې فلسطينيان بيخي نشته دي ، نو د يو بم چاودل هم چې يا به يې لږ ضرر رساوه يا به يې بيخي تاوان نه رساوه ، د دې د پاره بسيا ؤ چې لږ ترلږه دوی شته ، او د پرديو له خوا د خپل هيواد لاندې

کول نه مني .

خو د ۱۹۶۸ کال په مارچ کی د کارامي د جګړې نه وروسته چې فلسطيني ګوريلايانو د يوه لوی اسرائيلي زغره لرونکي تولي په مقابل کې وکړه ، په عربي نړۍ کې د ننه او بهر د فلسطيني جنګياليو حيثيت ډير غښتلی کړ ، او دا يو داسې شی ؤ چې روسانو پري سترګې نه شوي پټولای . خو د دې سره سره هم هغوی ډير په کراره وړانـدې لاړل . د ۱۹۷۰ کال په فبروري کی دوی دا نوبت په لاره واچاوه ، فلسطينيان يې مسکو ته را وغوښتل، که څه هم دا بلنليک د افريقا آسيا د پيوستون د کميټې لـه لارې ليـږل شوی ؤ . طبعاً دا بلنـه ومنـل شوه ، خو له بده مرغه فلسطينيان هغه وخت په خپلو منځو کی ډير بې اتفاقه وو . پـه مسکو کی د هيئت د غړيو ترمنځ د عربو پورې تړلي هر ډول جنجالونه راپورته شول ، او استازو په خپلو منځو کی پوره ناندرۍ وويشتلې .

د الفتح مشر ياسر عرفات هم د هيئت په غړيو کی ؤ ، هغه لوړ رتبه مامور چې ده وليـدی شو د صدر اعظم لومـړی مرستيـال مازاروف ؤ ، پونا ماروف ، اوليانوفسکی او رومانتسيف د مرکزي کميټې غړي يې هم وليدل . روسانو ټينګار کاوه د دوی کتنې بايد پټې پاتې شي ، خو فلسطينيانو ته يې ډاډ ورکړ چې دوی به د نورو عربي هيوادونو سره برابر ګڼل کيږي ، هغه هيوادونه چې د اسرائيلو سره په لومړۍ کـرښه کی پـراتـه دي ، دوی سره بـه د هغوی پـه شان مرستې کيږي . دوی د مقاومت په هکله ډيرې زياتې پوښتنې وکړې . تنظيم يې څنګه دی ، هدفونه يې څه دي ، څنګه خپل هدفونه لاس تـه راوړي شي ، او داسې نور . خو دوی همدارنګـه د فلسطينيانـو نـه وغوښتـل چې د ملګرو ملتو ۲۴۲ لمبر پريکړه ليک ومني . په داسې حال کی چې فلسطينيانو په دې هکله بيخي بل نظر درلود ، څکه پـه دې پريکړه ليک کې هيڅ د دوی نوم نـه ؤ اخيستل شوی ، يواځې د 'مهاجرينو ستونځه ، پکې ذکر شوې وه . د روسانو پـه سترګـو کی د فلسطين د مقاومت رښتيني ګټه په دې کې وه چې دوی په اسرائيلو او امريکی باندې د زور را وړلو ظرفيت درلود . د دغې اهميت اندازه په ښه توګه د هغه انعکاس نـه لګيدي شي چې مسکـو تـه د دوی د هيئت د رسيـدو پـه وخت کې د شوروي په مطبوعاتو کې شوی ؤ . د پـراوډا او ازوستيا پـه وروستي مخونـو کې درې کرښې ځای ورکړل شوی ؤ .



که څه هم د روسانو سره د بل هـر عربي هيواد پـه پرتلـه د مصر اړيکې

ځواني او اوږدې وې ، د خوابدۍ او بدګومانۍ پېښې هم ډکې وې . د مثال په توګه ، شوروي ته د مصر د پوروڼو بیرته ورکول . دا پوروڼه پوره ډیر شوي وو ، او روسانو يې د لاس ته ور وړلو د پاره هره لوبه کوله . د مصر د تیلو د ذخیرو په هکله ډیرې خبرې کیدې ، په تیره بیا د لویدیځې صحرا د سیوا په سیمه کې ، او روسان په دې کار باندې خوابدي وو چې امریکا يي کمپنیوته د تیلو دغه کارونه ورسپارل شوي وو . سمین سکاچکوف او نورو روسي متخصصینو ناصر ته پیشنهاد وکړ چې د مصر او شوروي ګډ تخنیکي ټیمونه به د تیلو په را ایستلو کار وکړي . دا کار وشو ، خو کله چې امریکا يي کمپنیو تیل را وایستل او مصر ته يې زیات امتیازات ورکړل ، نو روسانو چې د ۴۰۰۰ فوټو نه ژورې برمې نه شواې کولاې ، په داسې حال کې چې امریکایانو د ۱۷ - ۱۸ زرو فوټو ژورتیا پورې برمې کولې ، روسانو هیڅ شي زاونه ایستلی شول . او مصارف هم ټول د مصر له بودجې نه ورکړل شول .

بیا د روسي متخصصینو پوښتنه راپورته شوه . په دې کې شک نشته چې د روسي متخصصینو او مشاورینو د شمیر زیاتوالي څه جنجالونه را پیدا کړل . د پاملرنې وړ ستونځو برسیره چې د ژبې ، رواجونو ، ټولنیزو ځانګړتیا وو او نورو له امله را پیدا شوې وې ، روسي متخصصینو کولای شول د مصر لوړ رتبه مقاماتو ته ژر او په آسانۍ سره ځانونه ورسوي ، او دې کار د مصر په لوړ رتبه ما مورینو کې پوره خوابدي را پیدا کړه . پوځ د وسایلو د ناوخته را رسیدو له امله ناراضه ؤ ، او کله چې د وسلو د برابرولو د وروسته والي خبرونه خپاره شول ، خاڅا خلک خبریدل ، ډیر زیات خلک په دې باندې د روس نه خوابدي شول . امریکایانو طبعاً دا هڅه کوله په مصر کې دروس ضد احساسات راوپاروي ، داسې به ویل کیدل چې سینا اسرائیلو نیولې ده او نور مصر ټول روسانو نیولی دی او داسې نورې خبرې کیدې . که څه هم دا ټول تورونه بالکل بې بنسټه وو خو پرله پسې تکرارولو يې خاڅا بده اغیزه درلودله .



د روسي پوځي مشاورینو شته والی ؤ چې زه يې هم په یو کوچني جنجال کې راګیر کړم . پیښه داسې را څرګنده شوه ، روسانو ته یوه بدګوماني را پیدا شوې وه چې په مصر کې د دوی پرضد داسې عوامل په کار لګیادي چې کیدي شي دوی د مصر نه په شړلو مجبور کړي .

دا د ۱۹۷۰ کال په هغه لنډه موده کې ؤ چې ما موافقه وکړه د اطلاعاتو

د وزیر په توګه کار وکړم او د ناصر سره د همدې کال د جولای په میاشت کې مسکو ته په سفر کې ملګرتیا وکړم. یوه موضوع چې مونږ پرې د روس د مشرتابه سره خبرې وکړې دا وه، مونږ د نورو زیاتو روسي پوځي مشاورینو غوښتنه وکړه چې مصر ته راشي - مونږ غوښتل د کنډک په سطحه په اردو کې روسي مشاورین وي. برژنف د دې کار سره زړه‌نازړه موافقه وکړه. هغه وویل، مونږ له دې ویرېږو چې‌که په مصر کې زمونږ د متخصصینو شمیر زیات شي، کیدي شي د خلکو احساسات د هغوی پرضد راوپارېږي. کیدي شي خلک دې ته «نوی امپریالیزم» ووایي'. ناصر ورته ډاډ ورکړ چې داسې کار به نه‌کیږي. هغه وویل، 'زه د کار مسؤل یم، که زه هر وخت پوه شوم چې روسي مشاورین زمونږ په کورنیو چارو کې ګوتې وهي، زه به هغوی ټول سره را یو ځای کړم، په سکندریه کې به یې په یوه کشتۍ کې کینوم، او اديسه ته به یې را ولیږم'. برژنف په دې خبره خوشاله نه شو، او ناڅاپه یې ما ته مخ راواړا وه، ویې ویل، ګزپودین هیکل په دې هکله ډیر ښه پوهیږي. ما ترې پوښتنه وکړه چې مطلب مو څه دی. هغه وویل، 'ستا وزارت یو راپور تیار کړی دی، چې په مصر کې د روسي متخصصینو پرضد د خلکو عمومي نفرت ډیر زیات شوی دی'. ما ورته په اریانتیا سره وویل، 'زما وزارت! هیڅکله داسې نه دي شوي'. ناصر ما ته وویل، ښه به وي چې معلومات وکړي اوځان پوی کړي. ما ټینګار وکړ چې داسې کوم راپور نشته، برژنف بیا خپله دغه ادعا تکرار کړه. هغه وویل، زما یقین دی چې د ګزپودین هیکل په دفتر کې داسې یو راپور شته چې وایي خلک د شوروي مشاورینو د شته والي په هکله ډیر بد فکر کوي'.

خبرې نورو موضوعګانو ته اوړېدې شوې، خو چې زه بیرته قاهرې ته را ورسیدم، دوه ورځې وروسته مې پوښتنې پیل کړې. هغه څه مې پیدا کړل، خو دا عجیب وو. د وزارت چارې چې ما ته راوسپارل شوې، ما د تحسین بشیر نه چې بیا وروسته د رئیس سادات رسمي ویندوی شو، غوښتنه وکړه یوه کمیټه په خپله مشرۍ سره جوړه‌کړي او د وزارت د معلوماتو د څانګې د کارونو په اغیزمنتوب باندې غور وکړي. د دې څانګې د کار یوه برخه دا وه چې هره ورځ د عوامو د نظریاتو او افکارو سروې وکړي. دا کار په هیواد کې د معلوماتو د را ټولولو د دفترونو په کتلو او د هغوي په مرسته ترسره شو. تحسین بشیر او د هغه یو دوست عثمارل باس (اوس د بهرنیو چارو په

وزارت کې د سکرتر مرستيال ؤ) ، د الکبرا سيمې ته لاړل ، په د لتاکې يو صنعتي ښار دی ، او د معلوماتو را ټولولو د سيمه ييز مدير نه يې پوښتنې وکړې چې دی خپل ورځني معلوماتو نه څه ډول را ټولوي ـ دوی غوښتل ځان پوی کړي چې دغې راپور کوم علمي بنسټ درلود ، که نه ، آيا سيمه ييز مامورين پخپله د پوښتنو او سروې کولو د پاره موضوعګانې ټاکي ، او که داسې وي ، نو موضوعګانې څنګه خو ښوي ؟ دوی ته وويل شول چې راپور هيڅ ډول علمي بنسټ نه لري ، دوی هغه خبرې را ټولوي چې خلک يې په خپلو منځو کې په کافي ګانو او سرايونو کې کوي ، او د هغه څه په هکله د دوی نظريات چې په اخبارو کې يې لولي . تحسين بشير او ملګري يې خپلو پوښتنو ته زور ورکړ . دوی څنګه پوښتنې کوي ، آيا دوی رښتيا په دې پوهيدي شي چې خلک د يو شي په هکله څه فکر کوي ، د داسې يو شي په هکله لکه پوځي حالات ، اقتصادي ستونځې او يا د مثال په توګه د عربو د سر مشرانو د غونډې امکان ؟ د مثال په توګه ستا په يو راپور کې ويل شوی دي چې خلک د ’روسانو په شته والي خوشاله دي، . ته څنګه په داسې يوه خبره باوري کيدي شي ؟ ستا قضاوت پرکومو بنسټونو ولاړ دی ؟

ترهغې ځايه چې زه پوهيږم ، د برژنف د تورونو يواځنی بنسټ دا د الکبراد سيمې سروې وه . دا څکه کيدي شي څنګه چې دا ښار د مصر د صنعتي مرکزونو څخه يو دی ، او روسانو دلته خپل يو ډول نماينده ګان درلودل . هغه څه چې زه يې ډير اريان کړم دا ؤ چې په دري اونيو کې دننه زما د وزارت دوو مامورينو خپله شخصي ځانګړې پوره سروې وکړه ، کيدي شي ډيره صحيح به نه وه ، خو د دې سروې راپور په مسکو کې د کمونيست ګوند د لومړي منشي ميز ته ورسيد .

ما ناصر ته کيسه وکړه چې څه شوي دي ، او هغه ومنله . دا چې ايا هغه برژنف ته وويل که نه ، او دا چې برژنف ومنله او که نه ، نه پوهيږم . خو زما د پاره دا بسيا وه چې پوی شوم ، ناصر دا پيښه چوپ کړه . خو ما سره پوره انديښنه او ويره پيدا شوه چې څنګه د هيوادونو لويې ستراتيژۍ او پاليسۍ د بې بنسټه آوازو او دروغو خبرونو سره ګډيدی شي .



د روسي مشرانو سره له خبرو اترو وروسته ناصر دوه اونۍ د بريونيا په

ژبو لکه برمایي ، سواهیلي او عربي کي باید د هغوي له ژباړونکو نه ډډه وشي .
(مصریانو د عربي - روسي ژبي په یو ترجمان سره خبري پیل کړي چي د مسکو
د ختیځو علومو په څانګه کي يې زده کړه کړي وه . خو ډیر کمزوري ؤ .
د خروسچف سره د ناصر لومړنۍ ستونځه د خرابي ژباړني نه را پورته شوه .
نو باید په انګلیسي یا فرانسوي خبري وکړئ.)

۲ - مسکو ته د تګ نه وړاندي باید ډیري لنډي کیسي ، ټوکي ، متلونه
او فولکلوري متالونه یاد کړئ . داشیان د خبرو اترو په جنجالي وختونو کي
ډیره مرسته کولای شي او ستونځي اوارولای شي . باید پام وکړئ د لویدیځو
مشرانو او ختیځو رهبرانو ترمنځ ډیر توپیر دي ، په لویدیځ کي مشران له لوړ
اقتصادي پوړه راوځي ، خو د شوروي مشران ټول په کوند کي رالویږي ،
او زیات يې له شوروي نه د باندي لا تللي هم نه وي . د برژنف غوندي سړي
په در سره ډیر وخت په ټوکو او متلونو ویلو تیر کړي او یا به درته د هغو
وختونو کیسي کوي چي دي په پوځ کي سیاسي کمیسار ؤ . تاسي باید وکولای
شئ د دغو ټوکو او کیسو مقابله وکړئ .

۳ - د دویم نړیوال جنګ تاریخ باید ولولئ او په هغي کي دشوروی اتحاد په
بنسټیز رول باندي څان ښه پوه کړئ. ډیره مهمه ده چي په جزئیاتو پريپوه شئ چي
کوم جنرال په کومه جبهه کي وجنګید ، او داسي نور. باید پوره حوصله وکړئ
چي دوي درته په وطني لوي جنګ کي د خپلو تجربو کیسي بیا بیا وکړي .
دا د شوروي اتحاد د دي نسل د لارښوونکو مشرانو په ژوند کي تر ټولو ښه
یادګارونه دي .

٤ - تاسي باید پیاوړي هاضمه او پیاوړي سر ولرئ ترڅو هغه خواړه هضم
کړای شئ چي روسان يې په میلمستیا وو کي خوري او څکي . که دا کار نه شئ
کولای ، د ټولونه لومړي باید ورته خپل معذرت وړاندي کړئ . خپل کوربه
ته باید وریاده کړئ چي د روغتیايي یا دیني عواملو له امله الکل نه څکئ .

ه - ستاسي د هیئت مشر باید پرنورو غړیو پوره کنټرول وساتي . د خبرو
اترو په دوران کي به ټول دي ته پاملرنه کوي چي په ډله کي د هر یوه غړي
مقام او درجه معلومه کړي . په تیره بیا دوي ډیره علاقه لري په هیئت کي
دویم لمبر سړي پیدا کړي . (یو وخت هغوي د مصر په هیئت کي دویم سړي
د مصر د جنګ وزیر فیلډ مارشال عبدالحکیم عامر وباله ، نو په خبرو کي به يې

روغتون کې د تداوۍ لاندې تیرې کړي . هغه د جولای په ۲۱ مه قاهرې ته راستون شو . روسي ډاکترانو هغه ته په ټینګه توصیه کړې وه چې باید استراحت وکړي ، خو هغه چې په میرسا ماترو کې لس ورځې د مه وکړه (ډاکترانو ورته لږ ترلږه یوه میاشت د مه توصیه کړې وه) په اردن کې د پاچا حسین د پوځ او فلسطیني ګوریلایانو ترمنځ کورنۍ جګړه ونښته . ناصر مجبور شو د دې لانجې په پای ته رسولو کې مشغول شي او د سپتمبر په ۲۱ مه نیټه یې په قاهره کې د عربي سر مشرانو یوه غونډه را وغوښتله کنفرنس یوه اونۍ وروسته پای ته ورسید ، خو اجل را ورسید . ناصر وفات شو . . .



# شکونه ، دسیسې ، زړه‌نازړه‌توب

د ناصر مرګ ټوله عربي نړۍ وښوروله . غمونه او ویرونه پیدا شول ، ډېر ژور او پخپله ، هر چیرې د مراکش نه نیولې تر خلیج پورې . په ټوله دریمه نړۍ کې ژور غم او خفګان را ښکاره شو . که څه هم په ښکاره شوروي اتحاد خپل عادي مخ په کنټرول کې وساته ، خو په هیڅ یو بل هیواد هم د ناصر مرګ دومره اغیزه ونه کړه لکه په دوي .

البته د شوروي مشران خبر وو چې ناصر ناجوړه ؤ ، د دوي ډاکټرانو د ده ناروغي تشخیص کړه او هغه یې تر تداوۍ لاندې ونیو ، او دوی دی د ډېر فشار او کار کولو نه پرهیزاوه . روسانو هڅه وکړه ډېره زیاته په یوه سړي تکیه ونه کړي ، او د همدې هدف له پاره یې کله کله دا هڅې هم کړې دي چې په عربي نړۍ کې د خپلې خوښې مشران وروزي ، خو په پای کې دوي بیرته دې نتیجې ته رسیدل چې مصر په منځني ختیځ کې د کونجي حیثیت لري او ناصر بې رقیبه او بې سیاله عربي مشر دی .

روسانو ته په پرله پسې توګه دا خبره په ثبوت رسید له چې ناصر په ټولو عربي حکومتونو باندې پوره نفوذ لري اوهم په ټوله عربي نړۍ کې د خلکو پوره مینه او ملاتړ ورسره دی . دوي لیدل چې د سوډان او لیبیا غوندې هیوادونو کې انقلابونه کیږي چې د ده د شخصیت او نظریاتو نه یې الهام اخیستی دی . په دې وروستیو وختو کې دوي ولیدل چې ده په یواځې ځان د اردن کشاله آواره کړه ، هلته چې د پاچا حسین پوځ په فلسطیني ګوریلایانو برید وکړ . ناصر په پاچا حسین زور راوړ چې د قاهرې د سر مشرانو په غونډه کې ګډون وکړي ، او دا ناصر ؤ چې په سوریه یې زور راوړ څو په اردن باندې خپل پوځي وړاندې تګ ودروي . د ناصر دغو وروستیو بریالیتوبونو په روسانو ډېره زیاته اغیزه وکړه ، ځکه د اردن شخړې دوي دې ته ور نژدې کړي وو چې د امریکایانو سره په جګړه کې مخامخ شي . د بحران د زور په وخت کې د امریکې شپږم لمبر سمندري پوځ په مدیترانه کې ځانګړي مانورونه اجراء

کول ، ژوندي جنګي مهات يې په کار اچول ، او رئيس نکسن د کتني لـه پاره هغې سيمې تـه ورغلی ؤ . د روغتيـا ،پوهنې او عامـه ښيګڼو د ځانګې منشي اليوټ رچرډسن ويلي ؤ چې د شپږم لمبر سمندري پوځ د توپونو ډزې بايد پـه قاهره او مسکو کې واوريدې شي . همدارنګه داسی ويل کيده چې اسرائيل دې ته تيار کړای شوي وو په اردن کې مداخله وکړي، دا کار د امريکايانو په ملاتړ او مشوره کيده . که داسی شوي وای ، مسکو هيڅ نه شو کولای . دا به بلـه مسئله وای چې ستر قدرتونه به يې ناندريو ويشتلو ته خامخا راکښ کړي وای .

خو ناصر د عربو ټول پادشاهان او جمهور رئيسان قاهره کې را ټول کړل ، هغوي موافقې ته ورسيدل چې جګړه بايد ختمه کړي . اوس ناصر مړ ؤ .



کوسيګين جنازې ته راغئ ، خو هغه د کريملين د غم او خواشينې د ښکاره کولو برسيره ډير نور څه د څرګندولو له پاره درلـودل . هغـه مشورو ، څيړنې او خبرداري ورکولـو تـه راغئ . د جنازې د مراسمو لـه تيريـدو وروستـه يې غوښتنه وکړه د هيواد ټولو لوړ رتبه مقاماتو سره وويني . دري غونډې ترتيب شوې ، لومړی يوه بنـده غونـډه وه چې يواځې پوځي موضوعګانې پکې وڅيړل شوې ، او دوه نورو کې پراخې سياسي خبرې وشوې .

کوسيګين د دوو اصلي بـرخو سره ډيـره علاقـه درلـوده ـ د ناصر وارثان کيدي شي سره ويشل شوي وي ، د دوی سيالي به ارتجاعي ځواکونو ته موقع ورکړي په سياسي قدرت داره واچوي ، او دا کار به ، ښايي د سياليود يوې برخې په توګـه ، د مصر نـوي مشران ، هـر څوک چې دي ، کيـدی شي د ځانونـو د تثبيت له پاره يو ځل بيا اسرائيلو سره يوه نوي جنګ ته ور وړانـدې شي . نو هغه په پرله پسې توګه خبرداری ور کاوه چې بايد 'بې اتفاقي او ماجرا جويي' ونه کړئ . په لومړی برخه کې هغه يواځې په مشورو ورکولو بسيا وکړه ، خو په دويمه برخه کې هغه د زور راوړلـو لـه پاره وسايل درلـودل ، د جنوري او جولای د تړونونو لـه مخې مصر تـه لـه شوروي نـه د وسلـو د را ليږلو د کار ځنډول ، په تيره بيا هغه سامان چې د سويز د کانال نه د پورې وتلو له پاره ډير ضرور ؤ ، لکه د پلونو د جوړولو سامان .

کوسيګين کوښښ کاوه داسې وښئي چې ګواکې د ناصر مړګ به ډير لږ بدلون راولي . هغه وويل ، 'بايد درته ووايم چې د ناصر پـه ژونـد کې مونږ څه ډول کارونه کول ، د هغـه نـه هير وو اکثره کسان چې دلتـه ناست وو د ناصر پـه

ژوند کې د هغه ډېر نژدې ملګري وو او مسکو ته يې په سفرونو کې د هغه ملګرتيا کړې وه . 'مونږ له هغه نه هيڅ شی نه پټاوه ، او هغه هم له مونږ نه څه شی نه پټاوه . دا ډېره مهمه ده چې مونږ بايد يو بل له هر څه نه پوره خبر کړو . هره خوا بايد د بلې خوا په فکر او نظر ځان پوي کړای شي . مونږ نه غواړو ستاسې په پلانونو کې لاس و هنه وکړو ، خو بايد له ياده ونه باسو چې زمونږ پوځونه دلته په مصر کې دي . مونږ برسيره د کټو د ګډون نه د وينې ګډون لرو . دا ډېره مهمه ده ، او دا يو داسې شی دی چې تاسې ورته بايد تل ډېره پاملرنه وکړئ .

د کوسيګين پيغام د احتياط يو پيغام ؤ . هغه دا څرګنده کړه چې روسان غواړي اور بند اوږد شي . هغه په غونډو کې وويل ، په داسی حال کې چې شوروي اتحاد دا پوښتنه راپورته کول نه غواړي چې مصر دې خپلې نيول شوې ځمکې نه آزادوي ، د مصر تياری په دې هکله هغه وخت د باور وړدی چې روسي مشاورينو او متخصصينو ته نور دلته د پاتې کيدو ضرورت نه وي . په دې تکي هغه په ځانګړې توګه ټينګار وکړ . هغه وويل ، 'مونږ تيار يو تاسې سره مرستې وکړو هغه ورځ به ژر را ورسيږي ، او هغه د مصر د پوځي کسانو د روزلو په کار ډېر ټينګار وکړ ، چې دوی ته بايد سياسي پوهه ورکړ له شي ، او عوام تشويق شي د دوی ملاوتړي . هغه وويل چې شوروي اتحاد به هيڅکله هم مصر ماتې ته پرينږدي ، خو بايد د ډپلوماتيک آواري امکان ته ډېره زياته پاملرنه وشي .



د جنازې ميلمانه رخصت شول ، د غم ورځې تيرې شوې . د اکتوبر په ۱۵ د خلکو د عمومي رايې ورکولو نه معلومه شوه چې د ناصر نه وروسته به انور سادات د هغه پرځای جمهور رئيس وي . هغه په هيواد کې د ننه او بهر د ډېر يو جنجالي حالت سره مخ شو . د ناصر په ځپليو کې هر چاته ګرځيدل پوره ګران او خطرناک کار ؤ . ناصر يوه نړيواله پيژندل شوې څيره او د خپل هيواد يو افسانوي مشر ؤ ، او ډېر ژر به انتقاد کوونکي د ده او د ده پرځای د ناست سړي ترمنځ پرتله کول پيل کړي . رښتيا خو مونږ اوس پوهيږو چې انور سادات ډېر پوه او برياليٰ جمهور رئيس ؤ چې چا داسې فکر نه کاوه ، او په بل هيڅ شي کې ده خپل ځان او شخصيت دومره قوي او کلک نه ښود لکه د شوروي اتحاد سره په معاملو کې چې ؤ .

د ۱۹۷۰ کال د سپتمبر راهيسې د ۱۹۷۷ کال تر لومړيو مياشتو پورې که د انور سادات شپږ نيمو کالو د جمهوري رياست دورې ته په غور سره وکتل شي ، هلته چې د ده کيسه پای ته رسيږي ، د شوروي اتحاد سره د ده اړيکی په پنځه پړاو ونو د ويشلو وړدي . لومړی ، د بې باورۍ يوه دوره وه ، دا وخت سادات په دې لګيا ؤ چې په هيواد کې خپل ځان ټينګ کړي ، ده او روسانو يو د بل اندازه ځان ته معلومو له . دا يو اسان وخت نه ؤ ، او پـه دې وخت کی د وروستيو ستونځو او بدګومانيو تخم وشيندل شو . بل پړاو د تاو تريخوالي د را پيدا کيدو ؤ ، چې د ۱۹۷۲ کال په جولای کې د شوروي متخصصينو د شړلو اندازې ته ورسيد .

دريم پړاو د اوبو د شيندلو ؤ . د ۱۹۷۳ کال د اکتوبر جنګ . پـه دې پړاو کی د يو لنډ وخت د پاره د مصر او شوروي اړيکې د صميميت او باور لوړې څوکې ته ورسيدلې چې د سويز د لانجې راهيسې کـله دومره ښې شوې نـه وې . خو دې لنډ وخت پسې ډير ژر څلورم او پنځم پړاونه را ورسيدل، په لومړي کی شوروي اتحاد په ډيره اغيزمنه توګـه د منځني ختيځ د آواري له خبرو اترو نه وايستل شو ، او په دويم کی د امريکې او مصر ترمنځ هلې ځلې پيل شوې چې په ګډه کار وکړي ، ترڅو شورويان بيخي د منځني ختيځ له کاره وباسي .



سادات د سياسي او پوځي چارو ګودام چې ده ته په ميراث کی پاتې شوی ؤ وکوت ، ده دوه بيل بيل او سره يـو د بل مخالف نوښتونه د زنځير د کړيو په څير تړلي وموندل . د يوې خوانـه د عربو ـ اسرائيلو د لانجې د آواري لـه پاره هلې ځلې په لاره اچول شوې وې ، او د بلې خوا نـه د نوي جنګ د پاره تياری نيول کيده .

د امريکی د بهرنيو چارو د وزير راجرز پلان چې د ۱۹۶۹ کال د دسمبر پـه ۹ مـه يې وړانـدې کـړی ؤ ، د ۱۹۷۰ کال د جون پـه ۲۵ مـه يې د يولـړ پيشنهادونو سره تعقيب کړ ، د کانال په اوږدو کی د اور بند يوه ځانګړې غوښتنه هم پکې وه . دا د ناصر له خوا منل شوې وه ، او د اګست په ۷ مـه يو اور بند تطبيق شوی ؤ . د امريکی او شوروي اتحاد دواړو حکومتو نه په دې هيله وو چې اور بند اوږد شي ، او سره له دې چې اسرائيلو دا پلان نه ؤ منلی او عربان پري هم شکمن وو ، د امريکی د بهرنيو چارو وزير په ډيره فعاله توګه په دې لګيا ؤ چې د سولې يو فرمول ولټوي .

خو د سولې د پاره د خبرو اترو په پرتله د جنګ تیاری په خورا چټکۍ روان ؤ . د ناصر د ژوند په وروستیو درېو کلونو کې هغه خپله ټوله پاملرنه دې ته اړولې وه ، نور هر څه پرېښودي ، او د ۱۹۶۷ کال د جنګ د تاوان نه وروسته خپل پوځ ژرتر ژره بیا په پښو ودروي ، او د دې جنګ د نتیجو مخ راوګرځوي . هغه د جنرال حسن البدري په مشرۍ یو هیئت ټاکلی ؤ چې د ماتې علتونه وڅېړي ، او ساعتونه یې په دې فکر او غور کړی ؤ . د شوروي مشاورینو مارشال ذخروف او جنرال لاشینکوف په مرسته ، هغه د وسله والو پوځونو د روزنې یو پروګرام په کار اچولی ؤ چې په عملیاتو او مانورونو کې ډېر بریالی او نه ستړی کېدونکی ثابت شوی ؤ .

ناصر په دې ښه پوهیده چې جنګ په عربي نړۍ کې د مصر د مشرتابه وقار ته پوره ضرر رسولی دی ، او فلسطینیان چې د یواځني رښتیني انقلابي عنصر په بڼه راپورته شوي دي د پاچا حسین د فشار له امله یې د کارونو مخه نیوله کیږي . د پرمختلونکو عربو دوه ستنې را پرزولې کیږي . ناصر دا احساس کاوه چې د ده د هیواد والو او ټولو عربانو په سترګو کې ، د جمهور رئیس په توګه د ده پاتې کېدل ، او د میدان نه پرېښودل لکه ده چې د جنګ نه سمدستي وروسته د خپل کار نه استعفی ورکړه ، یواځې هغه وخت د منلوړ او منطقي کار دی چې دی وکولای شي خپل پوځ داسي جوړ او رهبري کړي چې د عربانو نیول شوې ځمکې او د لاسه تللی وقار بیرته وګټي .

هغه وخت چې مړشو د بلې جګړې له پاره تیاری ډېر پرمختللي پړاو ته رسیدلی ؤ . د عملیاتو د شفر نوم 'لومړی ګرانیټ' چې د اکتوبر د جنګ د ستراتیژۍ د بنسټ په توګه عملي شو ، تصویب شوی ؤ . وسله والو ځواکونو خپل هدفونه پیژندل ، او د هغوی هرکلی یې کاوه . د هغوي له پاره یواځې همدومره پاتې وه چې د جنګ د پیل کېدو ساعت ورته اعلان شي . هیچا دوی د خپلو هدفونو نه ګرځولای نه شول .

په داسې حال کې چې سادات غوښتل د خپلې خوښې لاره ونیسي خو مجبور ؤ دې د واړو نوښتونو ته ادامه ورکړي - پرېږدي چې پوځي تیاری وشي ، خو د سوله ییز آواري راوستلو د پاره هم هره ممکنه لاره ولټوله شي . د هغه لومړۍ ازموینه دا وه چې د کانال په اوږدو کې اور بند نوی کړي ، د هغې موده د فبروري په ۷ مه پای ته رسیدله . ولسي جرګې ته یې په یوه بیانیه کې

د فبروري په ٤ مه خپل دا تصمیم څرګند کړ ، دی د یوې میاشتې د اور بند د اوږدولو سره موافقه لري ، او همدارنګه هغه پیشنهاد وکړ ، چې که اسرائیل خپل پوځونه د کانال د ختیځې غاړې نه ترشا کړي ، مصر به د کانال د پاکولو کار پیل کړي ترڅو بیا د کشتیو په مخ پرانیتل شي . دا پیشنهاد ډیر عملي ؤ ، دا د موشي دایان د هغه نظر سره برابر ؤ چې د څه وخت راهیسې یې پیدا کړی ؤ ، چې د اسرائیلو سیاسي او پوځي موقف به په دې کار سره ډیر قوي شي که دوی د نړیوالو اوبود لارې نه خپل پوځونه بیرته کړي او د سینا ستراتیژیکي لوړو غاښو ته یې بوځي .

د روسانو دا اشاره خوښه شوه ، خو هغوی اوس هم په دې نه پوهیدل چې نوی جمهور رئیس څنګه سړی دی . هغوی د مصر د صدر اعظم په توګه د ډاکتر محمود فوزي انتخاب بیځایه باله ، ډاکتر محمود فوزي یو معتدل سړی ؤ ، په هیواد او بهر کی ښه پیژندل شوی او د درناوي وړ ، خو د ده د مقررۍ سره د مصر په حکومت کی علي صبري او ځینو نورو چې روسانو خپل ملګري بلل مخالفت کاوه . هغوی د سعودي سره د سادات د اړیکو په نژدي کیدو خبر وو ، که څه هم دا خبره د پوهیدو وړوه چې دا اړیکې باید ټینګې شي ، ځکه د ناصر په وخت کی ده د عربي تاپو ، خلیج او د یمن د جنګ او اړیکو مسؤلیت په غاړه درلود . اوس به کمال ادهم چې د نورو کارونو برسیره د سعودي د پادشاه مشاور او د سعودي عربستان د استخباراتي ماشین آمرؤ ، د جمهور رئیس ځای ته ډیر تګ راتګ کاوه . دا یو داسې شی ؤ چې روسانو پري باور نه شوکولای .



سادات د روس په بدګومانیو ښه خبر ؤ ، او غوښتل یې لیری یې کړي . همدارنګه هغه د وسله والو پوځونو د پاره د شوروي نه د پیرودل شویو مالونو او سامان الاتو د وروسته والي او په وخت نه را رسیدلو باندې هم پوهیده . په تیره بیا د وه شیانو د ده اندیښنه زیاته کړې وه ـ یو د سویز د کانال نه د تیریدو د پاره د پلونو سامان ، او بل د داسې بم غورځونکو جنګي الوتکو نشتوالي چې د امریکا یې فانتم ډوله الوتکو سره سیالي وکړي شي ، چې اسرائیلو درلودلې . داسی الوتکې ډیرې ضرور وې، د دښمن د هوایي بریدونو نه د خپلو پوځونو د ساتنې د پاره هم او د کانال نه د تیریدو په وخت کې او هم د اسرائیلو په مقابل کی د ځوابیه هوایي بریدونو له پاره چې اسرائیلو به په دلتا کې په

ښارونو او کلیو باندې کول . د اسرائیلو دغو بریدونو ډیر زیات خفگان را پیدا کړی ؤ او د بدلې اخیستلو اوریې د خلکو په زړونو کې را تازه کړی ؤ . د دې له پاره چې هم د شورویانو اندیښنې او ویرې کمې شي او هم ورته د مصر ضرورتونه ښه ور څرګند شي ، سادات تصمیم ونیو ، شاراوي جمعه په یو پټ ماموریت مسکو ته ولیږي ، او برژنف ته یې د جمهور رئیس یو شخصي لیک د ځانه سره ویووړ . شاراوي جمعه ځکه د دې کار له پاره وټاکل شو چې دی د عربي سوسیالیستي اتحاد عمومي منشي ؤ او هم د دفاع د تنظیم مسؤل سړی ؤ . داسې یوه ټولنه چې روسانو ورته د پوره هیلې په سترګو کتل .

د لیک تاریخ د فبروري ٤ ؤ ، هغه ورځ چې د اور بند د تاریخ داوږدیدو اعلان وشو . لیک داسې پیل کیده ، 'شاراوي جمعه زما اندیوال او دوست دی ، زه پرې پوره باور لرم' ـ دا واقعیت هغه وخت شکمن ښکاریده ځکه دوه میاشتې وروسته دی د زندان د تورو دروازو شاته ورتیل وهل شو ، په دې تور چې غوښتل یې سادات له پښو وغورځوي . رئیس پردې ضرورت خبرې کړې وې چې باید د هغه څه په وړاندې کلک ودریږي چې ده ورته د 'ترقۍ ، آزادۍ او سولې د دښمنانو ترمنځ ناپاکه اتحاد' وایه . هغه ویل ، چې دا د شوروي د غوښتنې پربنسټ ؤ چې د اور بند موده اوږده شوه خو هغه دا 'یو ډیر سخت تصمیم' وباله .

ما شاراوي جمعه ته ویلي دي چې تاسی ته د هغه څه په هکله پوره معلومات درکړي چې امریکایان یې مونږ سره کول غواړي' ، په لیک کې زیاته شوی وه 'خو مونږ د دې مخالف یو . مونږ نه غواړو خپله آزادي په امپریالیستانو وپلورو . مونږ پوهیږو چې څه ډول پرمختګونه روان دي ، مونږ په خپلو مسؤلیتونو پوره پوهیږو . زمونږ هیواد به ترپایه جنګیږي . مونږ په دې هیله یو چې تاسې به را سره د لوړ بند د جوړولو ترپایه ملګري یاستئ . زمونږ دوست پودګورني را سره ؤ ، مونږ هیله لرو چې د خوشالۍ په وختو کې به تاسې هم را سره ګډون وکړئ' . (دا مصر ته د برژنف د را بللو یوه اشاره وه ، لوسړی ومنل شوه او بیا وځنډول شوه) .

شاراوي جمعه بیله دینه چې څه نتیجې ته رسیدلی وي له مسکو نه بیرته را وګرځید . نو رئیس سادات پریکړه وکړه د مارچ په ۷ مه د اور بند د پای ته رسیدلو وړاندې باید یوځل بخپله مسکو ته لاړ شي ، د جنګ وزیر محمود فوزي یې د ځان سره ملګری کړ . دا سفر چې پټ ؤ د مارچ په لومړۍ نیټه پیل شو .

د شوروي مشرانو ، برژنف ، کوسیگین او نورو سره د ده کتني ډیرې جنجالي او ګراني وې . هغه ټول شکونه او ګومانو نه چي د ناصر پـه ژوند کې د مصر په هکله د دوي سره را پیدا شوي وو ، اوس چي هغـه مړ ؤ پوره زور یې پـري اچاوه . هغـوي خبر وو چي مصر د څـه پوځي عملیاتـو پروګرام لـري ، خو د هغوي په رښتینوالي او شکل نـه پوهیدل ، او دوی پـه دې خوشالـه وو چي دوی له دینه خبر کړای شوي نه وو څکـه بیا خو پـه دوي بانـدې د پلان او عملیاتو د اجرا کولو مسؤلیت راتلی .

سادات د برژنف سره پـه خپلـه لومړۍ کتنـه کی ، وروستـه لـه دې چي د کـوربنو نـه یې مننـه وکـړه وویل (( زه تل خپلـو خلکو تـه دا وایم چي کـه د شوروي اتحاد مرستې نه وای ، مونږ به د لوی جنجال سره مخامخ وای )) بیا یې د پوډګورني هغه خبره را یاده کړه چي په تیره جنوري کی یې په قاهره کی ویلي ؤ چي باید د دوو هیوادونو ترمنځ اړیکې ښې ټینګې او باوري شي . هغه زیاتـه کړه : (( زما نه تل پوه پوښتنه کیږي ، د عربي سوسیالیستي اتحاد مرکزي کمیټه ، د دفاع عالي شورئ ، او که د جبهې د لومړۍ کرښې قوماندانان وي - او هغه داده ، که اسرائیل بیا پر مونږ برید کوي مونـږ بـه څه کـوو ؟ آیا مونـږ بـه وکولاي شو پر هغوي باندې هماغسې درانه بریدونه وکړو ؟ تاسی ته د زړه له کومې ویل غواړم ، چي دا یوه داسې پوښتنه ده چي زه یې ځواب نه شم ویلی . زه خپل سمندري پوځ ته تللی یم ، د هغوي د قوماندانانـو سره می کتلي دي ، دوی ما ته د هغو ټولو شیانو ویلي دي چي دوي یې نه لري او اسرائیل یې لري . کـه زه د جبهې لومړۍ کرښې ته لاړشم ، او هغوی ته ووایم چي اوس د کانال نه د تیریدو وخت دی ، نو قوماندانان به راته د هغو تجهیزاتو او وسایلو ووایي چي دوي ورتـه ضرورت لري . د هوایي پوځونو د قوماندانانو هم دا حال دی .

(( خلک وایي چي کلـه شوروي اتحاد پـه چکوسلـواکیی کی پوځي عملیات کـول ، دوی وکـولای شول د ناټو د ټول رادار سیستم کار پـه ټپه ودروي - دی کار لـویدیځ ډیر اریان کړ . مونږ د دې واقعیت نه منکر یـدی نه شو کـه شوروي اتحاد نه وي مونږ خپل وسله وال پوځونه هیڅکله هم بیا نـه شو جوړولای ، او مونږ به هیڅکله هم دغه الکترونیکي سامانونه چي مونږته را روان دي ، نه وای ترلاسه کړای . خو اوس هم د عربي سوسیالیستي اتحاد په مرکزي کمیټه کی زمانه دا پوښتنه کیږي . زمونږ د غم او خفګان خبره داده چي مونږ د یو میلون په څلورو کي دري برخې سړي په پوځ کې لرو ، خو بیا هم مونږ

ددې ورتيا نه لرو چې د کانال نه تېر شو .

'امريکايانو مونږ سره تماسونه نيول پيل کړي دي ، هغوی مونږ تـه وايي چې شوروي اتحاد درسره هيڅ مرستـه نـه شي کـولای ـ يـواځې امريکا دا کار کولای شي ، نو مونږ مجبوريو په هغوي باور وکړو او د هغوی مشورر ته غوږ ونيسو. او بيا هغوی زمونږ په هيوادکی د شورويانو د شته والي پوښتنه راپورته کوي . هغوی مونږ ته دا خبره مخامخ نه کوي ، خو دا د نکسن د ليکونو نـه څرګنديد له چې ماته يې راليږلي دي او هم کانګرس ته د هغه په بيانيه کی ياده شوې ده . هغه څه چې هغه يې تل په خپلو خبروکی يادوي په منځني ختيځ کی د شوروي شته والی دی .

'مـا د سولې خپـل نـووښت تيـار کـړی دی ، چې پکی د سويز د کانال د پرانيتلو پيشنهاد هم شتـه ، او مـا امريکايانو تـه ويلي دي چې کـه دوي پـه اسرائيلو زور راوړي،خپله برخه رول ولوبوي ، زه تيارېم د امريکی سره سياسي اړيکي بيرته جوړې کـړم . خو دا بايـد د يوه پوره او مکمل آواري يوه برخـه وي . زه ستاسی د مشورو په رڼا کی د بل هر عربي مشر نه د سولې په هلوځلو کې زيات وړاندې تللی يم' .

(د ۱۹۷۱ کال د فبروري په ٤ مه سادات په خپله بيانيـه کی چې اور بند يې د مارچ تر ۷ مې پورې اوږد کړ وويل ، دی د سولې د موافقې منلو ته تيار دی ، البته د سولې يو رښتينې تړون ، د اسرائيلو سره ـ دې خبرې د اسرائيلو صدر اعظمه ګولډا ماير پوره اريانه کړه) .

سادات زياته کړه ، 'تاسي ته ډاډ درکوم ، زه خپـل راتلونکی د شوروي اتحاد د را تلونکي پورې تـړلی ويـنم . زه تيارېم هره هغـه څـه چې شوروي اتحاد غواړي لاس ليک کـړم ، د خپلې ادعا د ثبوت د پاره وايم . زه ښه پوهيږم چې زما رښتينی دښمن امريکا او لويديځ امپرياليزم دی . دا هغه څه دي چې ما تيره جمعه سفير ويندګرادوف ته وويل. زه چې شوروي اتحاد سره د هر شي لاس ليک کولو ته تيارېم ، دا يواځې له دې امله نه ده چې زه پوهيږم دا زما د هيواد په ګټه ده ، بلکی له دې امله چې کله زه د فشار لاندی يم ، نه غواړم زما دښمنـان داسې فکر وکړي چې د مقابلې قدرت نه لرم .

(ناصر او عامر ته مخ اړاوه .) دا خبره مهمه ده چي ټول هيئت په يو اواز خبري وکړي .

۶ - بايد په دي پوه شئ، په شوروي اتحاد کي څو بيلا بيلي ژبي ويل کيږي. مونږ دا يو سوچه حکومت بولو خو هلته تل کوږنه شخړي وي چي کيدي شي سري پکي ناڅا په ونښلي. تاسي به بدلي بدلي خبري ، او يا به خبري په بدلو بدلو شکلونو واورئ ، دا په دي پوري اړه لري چي آيا تاسي د مشرانو سره خبري کوي، د پوځ، که د تيکنوکراتانو يا بيروکراتانو سره. هغه شي چي مهم دي د مشرانو خبره ده ، که د نورو په خبرو مو ډير باور وکړ ځان به د جنجال سره مخامخ کړئ . (د مثال په توګه د ۱۹۶۷ کال د جنګ په ماښام چي د مصر د جنګ وزير له مسکونه را روانيده ، خپل شوروي انډيوال مارشال ګريچکوچي ورسره د مخه ښي له پاره راوتلی ؤ ، ورته وويل : ځان ورته کلک کړئ ! که هغوي په تاسي بريد وکړي ، او يا امريکايان ځان وخو ځوي ، زمونږ قواوي به ستاسي مرستي ته درشي . زمونږ سفير په مسکوکي څه موده وروسته د ګريچکونه پوښتنه وکړه ، چي آيا د هغه دا خبره رښتيا وه ؟ ګريچکو وويل : دا يواځي د لاري د سر يوه خبره وه).

هغه څه چي له پوځيانو ، تيکنوکراتانو او يا له بيروکراتانو څخه اورئ ، کيدي شي بالکل رښتياوي، خو داسي هم کيږي دا په روان بحث کي د يوي تاکلي خوا نظر وي چي تراوسه پوري پري سره وروستي پريکړي ته نه وي رسيدلي . په دي شيانو باندي به ډير حساب کول لويه غلطي وي . خوبياهم دغسي خلک کله کله په خبرو اترو کي د قانوني چينلونو په توګه په کار اچول کيدي شي . په شوروي اتحاد کي يواځي په دفترونو کي سوداګري نه کيږي . په تيره بيا په ميلمستياوو او د ښه راغلاست په مراسمو کي به داسي مهم څه واوري او پوه به شي چي کارونه په کوم لور روان دي . د مثال په توګه کيدي شي د څه وخت راهيسي به په دي لګياوي چي له روس نه غنم وغواړئ ، خو برياليي نه شوئ ، بيا به په کومه ميلمستيايا غونډه کي څوک ستا سفير يا د هيئت کوم غړي ته ووايي ، ښايي دا اوس ښه موقع وي چي ستاسي مشران د غنمو غوښتنه وکړي، کيدي شي به دي کي څه رمز وي چي دا کار کيږي . خو د عمومي پاليسۍ او ... له و پلانونو په هکله يواځي هغه څه منئ چي د ګوند لومړی منشي ... و ...

۷ - دا خبره به ستاسي خوښه ش... جي د شوروي په مشر تا به کي به

„ نو زه په خپل موقف او دریځ له سره نوې کتنه کووم. لومړی، دا خبره تکرارول غواړم چې په سیمه کې د شوروي شته والی زمونږ د هیواد په ګټه دی. دویم ، زمونږ اوسنۍ او راتلونکې متقابلې اړیکې باید په یو څرګند او ټاکلي بنسټ ولاړې وې . تاسی باید ما سره مرسته وکړئ ترڅو زه د هغه فشار مقابله په ښه توګه وکړای شم چې را باندې وارد شوی دی . دریم ، زه هم د ناصر په څیر تیاریم په خپل هیواد او د عربو په سیمه کې هر ډول عواقبو ته کلک ودریږم . څلورم ، زه پرته له دې چې مونږ باید د اوس او راتلونکې د پاره ښه اړیکې جوړ کړو ، بله کومه ځانګړې غوښتنه نه لرم . که امریکایان د خپلو پلانونو په وړاندې خپل هدف ته رسیږي ، د شوروي او زما له خوا به ورسره عکس‌العمل ښکاره کیږي ، څکه د دې مطلب به داوي چې امریکایان په سیمه کې په خپلو هدفونو کې بریالي شول په داسی حال کې چې روسان ناکام شول . دا به دسیمې د حالاتو کونجي د دوی په لاس ورکړي“.

سادات مصر ته د شوروي اتحاد د مرستو نه د مننې څرګندونه یوځل بیا تکرار کړه او وي ویل ، لکه څنګه چې ده خلکو ته اعلان کړې ده ، د ده پریکړه ده چې شوروي اتحاد ته په مصر کې د دوي د مرستو له امله اسانتیاوې برابرې کړي . هغه وویل چې دوی باید د مصر د کورنیو حالاتو په هکله اندیښنه ونه کړي ، څکه هلته ارتجاعي فعالیتونه نشته ، او که پیدا شي په پنځه دقیقو کې یې کرارولی شم . خو د خلکو په منځ کې په پوره اندازه امریکایي تبلیغات کیږي ، او د شوروي پرضد مفکوره خپریږي . ده وویل ، ’او دا کار ما بیا هغې پوښتنې ته راولي چې د هر چا په خو له ده ـ که چیرې اسرائیل د اسنا او ناک حمادي په څیر ځایونه بیا بمباري کړي ، مونږ به یې د ځوابیه برید قابلیت ولرو ؟ څرګنده خبره ده زمونږ خلک خپله بدله اخیستل غواړي ، دوی د بدلې د پاره را پاڅیدلي دي . زمونږ خلک وږل شوي او تپیان شوي دي . اسرائیلي جنرالان ډیر مغرور دي . د چا په دې باور دی چې د چکوسلواکیې نه وروسته شوروي د فانتم الوتکې نه ښه الوتکه نه ده جوړه کړې ؟ خلک دا پوښتنې کوي‘.

سادات بیرته د فبروري د ٤ مې نیټې خپل د سولې نوښت ته را وګرځید. هغه وویل چې د ده د معلوماتو له مخې امریکایانو د سولې دا نوښت منلی دی او تیار دي مصر ته یو څه نیول شوي ځمکې پریږدي . خو هغه زیاته کړه چې دی په دې پوهیږي چې اسرائیل به د هر تخفیف له پاره بیه وټاکي ، او دا احتمالي بیه ښایي په سیمه کې د شوروي د شته والي ختمول وي .

د امریکې سره د اړیکو په هکله چې برژنف معلومات وغوښت ، سادات وویل ، دا په قاهره کې د هسپانیې د سفارت له لارې تر سره کیږي (د ۱۹٦۷ کال راهیسې د امریکې سره سیاسي اړیکې شلیدلې وې ، د هسپانیې سفارت دلته د دوي د ګټو څارنه کوله) . هغه وویل چې اسرائیلو د ایټالویانو او یونانیانو په خوله مونږ سره د تماس نیولو هڅې کړې دي ، خو ده نه دي منلي ، او ده په قاهره کې د شوروي اتحاد سفیر په دې خبر کړی دی .

په ځواب کې برژنف او کوسیګین عملي مسئلې ته را وګرځېدل ، هغوی پوښتنه وکړه ، د مارچ د ۷ می نه وروسته به څه کیږي . 'آیا تاسي دا مسئله خېړلې ده ؟ آیا تاسی کوم پلان لرئ ؟ تاسی د عربي سوسیالیستي اتحاد سره په دې خبرې کړې دي ؟' سادات وویل ، دوي په دې مسئله څلېریشت ساعته کارکوي خو تر اوسه وروستۍ نتیجې ته نه دي رسیدلي ، خو د اوربند نور اوږدول رد شوي دي . په پوځي اړخ کې ، دوی په دې مفکوره لګیا دي چې جنګ به بیا پیل کیږي ، خو په سیاسي اړخ کې دوی دې ته په تمه دي چې امریکایان څه پرمختګ کوي او 'زمونږ دوستان' څه کوي .

دې ځواب روسان قانع نه کړای شول . برژنف وویل ، 'مونږ ستاسی دوستان یو ، نو باید هیڅ شی زمونږ د صمیمي خبرو کولو مخنیوی ونه کړي . تا وویل چې د اوربند د اوږدولو سره مخالفت کوي . خو د مارچ په ۸ مه ، ۹ مه یا ۱۰ مه به څه پیښیږي ؟ آیا ته پوهیږې د اسرائیلو عکس‌العمل به څه وي ؟ آیا اسرائیل به په تاسو برید کوي ؟ آیا هغوي به ستاسی د میزایلو په سیمه تیری کوي ؟ که هغوي دا کار وکړي ، تاسی به څه کوئ ؟ آیا تاسی به پوځي نوښتونه په کارو اچوئ ، که داسی وي ، نو څه ډول او کوم عملیات ؟ آیا تاسی د کانال نه د تیریدو نیت لرئ ؟'

د سادات ځواب دا ؤ چې د جنګ وزیر د څو تصادفي پیښو پلان وړاندې کړی دی ـ د تخریبي جنګ ، ځانګړو عملیاتو او د محدودو عملیاتو پلان . 'زمونږ خلک لس کاله جنګ ته تیار دي ، د یو میلون ، دوه میلونو ، دري میلونو خلکو قربانۍ ته ، لکه تاسی چې په جنګ کې شل ملیونه خلک د لاسه ورکړل . مونږ دې ته تیار یو چې زمونږ مؤسسې رنګې شي خو په یو شرط ، چې که دښمن زمونږ په منځ برید کوي ، مونږ هم بیرته د هغوی په منځ برید وکړو' .

برژنف د سادات هغه خبره را یاده کړه چې د چکوسلواکیې د نیولو په وخت کې شوروي اتحاد د ناتو د رادار سیستم د کاره غورځولی ؤ . هغه وویل ،

'ستاسې د معلوماتو له پاره بايد ووايم چې مونږ په چکوسلواکيه کې نوې وسلې په کار وانه چولې. په نيمه شپه کې مو رئيس سوبودا راويښ کړاو ورته و مو ويل چې مونږ ستاسی د سرحدونو نه درتيريږو. خو دزې نه کوو. نو دې ته ضرورت نه ؤ چې د اروپا د رادار سيستم له کاره و غورځوو. تاسې بايد په هغه څه باور ونه کړئ چې په لويديځ کې ويل کيږي'.

سادات ووېل، 'نه، زما خو ښه ده چې د لويديځ په خبرو باور وکړم. مارشال ګريچکو بايد فخر وکړي چې څه وشول'.

برژنف ووېل، 'دا ښه نظريه ده، د لويديځ ابرو توی شوه، ځکه چکوسلواکيه په شپږو ساعتونو کې ونيول شوه. خو دا يوازې او يوازې د پوځې عملياتو نتيجه نه وه'.

سادات ټينګار وکړ، 'نه، نه، په هغه شکل چې لويديځ يې خبرې کوي، دا يو لوی برياليتوب بولي. په ډير لنډ وخت کې پوځي عمليات په پوره برياليتوب سره سر ته ورسيدل'.

کوسيګين پوښتنه وکړه چې 'آيا دې کار تاسی ته داسې کومه مفکوره در پيدا کړې ده چې تل اييب په يوه شپه کې ونيسئ'؟ ټولو و خندل. بيا برژنف بحث بيرته رښتيا و ته را وګرځاوه، هغه ووېل، 'ستاسې ستونځه داده چې په لاره کې مو شګې دې، اواره ځمکه ده، اولو څه ده. د پټيدنې ځای نشته او دا پوځې عمليات ګرانوي'.

خبرې اترې په دې ډول وشوې، روسانو ووېل چې دوی تيار دي مصر ته څلور راکټ ويشتونکې الوشن الوتکې ورکړي، خو عمله به يې روسان وي، او دا تصميم به مسکو نيسي چې دا الوتکې څه وخت او په کوم ځای کې په کار واچولې شي. برژنف ووېل، 'که مونږ تاسې ته هغه ټولې وسلې چې تاسې يې غواړئ نه درکوو، دا مطلب يې نه دی چې مونږ ويريږو خو مونږ په دې فکر کوو چې هره وسله بايد د جګړې په ځانګړې او مناسبه برخه کې په کار واچوله شي'. د دې او يو څو نورو ټانکونو سره سادات خوشاله راوګرځيد.



سادات د مسکو نه بيرته راغئ او په کورنۍ جبهه کې د تهديد کونکې حالت سره مخامخ شو. هغه چې بيا وروسته د 'علي صبري ډله' وپيژندله شوه د مخه يې لا د اوربند د اوږديدو سره مخالفت کړی ؤ. اوس هغوی بله او ډيره مهمه موضوع پيدا کړې وه، د رئيس جمهور سره يې د ده د هغه پيشنهاد په سر مخالفت

پیدا شوی ؤ چې غوښتل یې د مصر ، لیبیا او سوریې ترمنځ یو ډول اتحاد را منځته کړي (په لومړیو کې پکې سوډان هم ؤ ، خو بیا وروسته هغه پاتې شو) . سادات د اتحاد د جوړیدو په لور خپله خوښه و ښودله ، د علي صبري ډلې د دې پرضد عمل وکړ ، او په مشرتابه کې د ننه د بې اتفاقۍ اوازې بهرنۍ نړۍ کې خپرې شوي .

داسې پیښه وشوه ، د مصر هغه ټول لوړ رتبه مامورین چې روسانو ډیر ښه پیژندل ، او په تیره بیا د دوی دوستان بلل کیدل ، اوس د جمهور رئیس پرضد ودریدل . دا ټول هغه کسان وو چې د عربي سوسیالیستي اتحاد په مرکزي کمیټه ، پارلمان او استخباراتو کې یې لوړې چوکۍ درلودې ـ د ټولو نه مهم یې علي صبري د جمهور رئیس مرستیال ، شاراوي جمعه د کورنیو چارو وزیر او د عربي سوسیالیستي اتحاد عمومي منشي ، ضیاءالدین داؤد د عربي سوسیالیستي اتحاد د اجرائیوي عالي کمیټي غړی ؛ لبیب شقیر د ولسي جرګې منشي ، سامي شرف د جمهوري ریاست د چارو وزیر او محمد فایق د اطلاعاتو او کلتور وزیر ؤ .
په حقیقت کې هغه لانجه چې دا خلک یې په یوه کمپ کې راوستل (بندیان شول) ، او جمهور رئیس یې په بل کمپ کې ، دا اصلاً د لیبیا سره د یوځای کیدو له امله نه وه ، نه د شوروي اتحاد سره د اړیکو له امله او نه بله داسې کومه ځانګړې موضوع وه . دا ربنتیا د قدرت له پاره یوه مبارزه وه چې نوي جمهور رئیس غوښتل ځان ښکاره او د خلکو ملاتړ تر لاسه کړي ، او د ده د پخوانیو انډیوالانو ډلې غوښتل کارونه باید د دوي په لاس کې وي ، او دوی تقریباً د دې هدفونو د لاس ته راوړلو او ساتلو له پاره د هر ډول خطرونو منلو ته ولاړ وو .

سره له دې چې مبارزه د قدرت وه ، خو په خبرو او بحثونو کې یې ورته د ایډیالوژۍ جامې وراغوستې وې ، او دې کار یې له شکه روسانو ته غلطه مفکوره ورکړه . د علي صبري ډلې هڅه کوله ځانونه د ښستیزو او قانوني نظریاتو مدافعین وښیي چې د مصر انقلاب ورته شوی ؤ . هغوی په دې نه پوهیدل چې د یو ملي مشر په توګه د ناصر لوی بریالیتوب دروغي جوړې د یو سمبول په بڼه ؤ ، او په هغو لومړنیو خطرناکو میاشتو کې ، چې ناصر نور هلته نه ؤ ، د ټولو نه لوی ضرورت دا ؤ چې ویره کمه کړي او د هیواد تیږه نه جوړ کړي ، نه دا چې لا یې خراب کړي ، او د دې کار د کولو د پاره لیږه د مه او سړه سینه په کار وه . له دې امله ؤ چې د ډاکټر محمود فوزي غوندې سړی صدراعظم وټاکل شو .

په کریملین کې خلکو ته حالات ساده خو بدمرغه ښکاریدل . د ناصر د وارثانو ترمنځ بې‌اتفاق چې دوی يې اندیښنه درلودله او د مخنيوي خبرداري يې ورکړی ؤ ورځ په ورځ را ښکاره کیدله او نوي جمهور رئیس د هغوی پرضد کرښه کې ولاړ ؤ . دا یوازې له دې امله نه ؤ چې د علي صبري نسبتاً بنسټیزې ایډیالوژۍ ته دوی ډیره زیاته پاملرنه کړې وه ، دوی د لیبیا او سوریې سره په یوځای کیدو کې یوه لویه بدمرغي لیدله . آیا قذافي اوس هم روس او کمونیزم ته په بد ویلو کې زیاتی نه کاوه ، او د سوریې نوي مشر پوځي منصبدار حافظ اسد په زور د بعث کینې لاسې حکومت له پښو نه ؤ غورځولی ؟ د دوی په دې تکي هم سر خلاص نه شو چې د سعودي عربستان سره د مصر د نژدیوالي یو علت دا ؤ چې عربستان ورته ډیرې مالي او مادي مرستې ورکولای شوی .

په دې کې شک نشته چې د روس بدګوماني په دې زیاتې شوي چې د جمهور رئیس سادات هغه خبره چې کمال ادهم ته‌يې کړې وه ، د واشنګټن نه راووته . ادهم د جمهور رئیس سره په سیمه کې د روس د شته والي له امله د امریکې د اندیښنو ویلي ؤ . سادات ورته د دې د ضرورت خبرې کړې وې ، خو زیاته کړې يې وه چې کله د اسرائیلي پوځونو د وتلو لومړی پړاو بریالي پای ته ورسیږي بیا به د روسانو د ایستلو چاره کوو . دا خبره د سناتور جیکسن له خوا راوتلې وه ، دی د اسرائیلو د کلکو پلویانو څخه ؤ او په کانګرس کې د شوروي اتحاد مخالف . شک نشته چې دې کار شوروي اتحاد او مصر دواړو ته لویې ستونځې ورپیښې کړې .



د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند څلیریشتم کانګرس ټاکل شوې وه د ۱۹۷۱ کال د مارچ په ۳۱ مه په مسکو کې پرانیستل شي ، او پریکړه وشوه چې د مصر یو پیاوړی لوړ رتبه هیئت پکې ګډون وکړي . دا پریکړه د قدرت د مبارزې په جریان کې چې څوک باید لاړ شي ، لوی خنډ را پیدا کړ . زما په فکر شورویان په دې پوهیدل او اندیښنه يې درلودله . په پای کې څو بیل بیل هیئتونه لاړل ، او هر یوه د بل نه خپل رازونه پټ وساتل . د عربي سوسیالیستي اتحاد هیئت د عمومي منشي عبدل محسن عبدالنور په مشرۍ ، سامي شرف د یو بل هیئت مشر ؤ چې د سادات پیغام يې برژنف ته ویوړ ، او داسې نور . البته د کانګرس د پای ته رسیدلو وړاندې سامي شرف د برژنف سره ونه لیدای شول ، او کله چې کتنه وشوه ، په نیم ساعت کې ایله هغه د جمهور رئیس پیغام برژنف ته وویلی شو ،

تر دې وخته دی د خپلو پیغامونو په اورولو لګیا ؤ . هغه داسې خبرې پیل کړې : 'زه د ملګري برژنف نه شکریه کوم ، چې د ډېرو مشغولیتونو سره سره یې ما ته د لیدلو موقع را کړه . زه باور لرم چې ده به د هر چا سره کتاي نه وي ، او دا زما له پاره یو شخصي امتیاز دی . زه باور لرم چې زمونږ ترمنځ اړیکې به د تل د پاره ښې او دوام ولري او راتلونکې ورځې به د هغه دریځ له امله چې مونږ نیولی دی د هغې دوستۍ ثبوت وي چې د عربي متحد جمهوریت او شوروي اتحاد د ګوندونو ، خلکو او حکومتونو ترمنځ شته . هیله ده ملګریه برژنف ، اجازه را کړئ چې خپل شخصي جذبات څرګند کړم - ما سره ستاسې د نن ورځې کتنه په دې شرایطو کې د داسې یو حقیقت ښکارندوی ده چې زه پرې عقیده لرم ، څنګه چې سامي شرف د مصر د لوي مشر او استاد جمال عبدالناصر وفادار او منونکی دی ، د شوروي دوستانو په وړاندې په اړیکو کې هغه یو ځانګړی مقام لري' .

سامي شرف د مصر په مشرتابه کې د درزونو او مخالفتونو اشارې ورکړې ، 'زمونږ د ډلې' خبرې یې وکړې ، برژنف ته یې وویل چې په قاهره کې د شوروي سفیر به یې په ټولو کیسو خبر کړي . (په رښتیا خو ونګرادوف ډېره هڅه کوله داسې ونه ښیې چې د مصر په کورنیو سیاسي چارو کې دې اخته وي . سامي شرف یو ټیپ تیار کړی ؤ ، دا د هغه د بندي کیدو نه وروسته په لاس راغئ ، چې د ده او ونګرادوف ترمنځ د یوې کتنې خبرې پکې ثبت وې ، دا نږدې د پنځوسو دقیقو رکاټ ؤ چې ونګرادوف پکې زیات نه زیات دوه دقیقې خبرې کړې وې). سامي شرف دومره احمق سړی ؤ چې ستړي او ناجوړه برژنف ته یې د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د ۱۹۲۰ کال په نهم کانګرس کې د 'لوی لارښود لینن' د بیانیې نه یو ډیر اوږد اقتباس شوی متن واوراوه .



کله چې سامي شرف د خپلو خبرونه وزګار شو او د رئیس پیغام یې برژنف ته ورکړ ، په دې کې لږ ترلږه یو نوی پیشنهاد ؤ - چې د مصر او شوروي اتحاد ترمنځ اړیکې باید د یو تړون له مخې فرمول بندي او تنظیم شي . نو په دې بنسټ د مې په لومړۍ نیټه د مسکو نه یو پیغام را ورسید چې دریواړو لویو مشرانو برژنف ، کوسیګین او پودګورني لاس لیک کړی ؤ ، په دې کې ویل شوي ؤ : 'مونږ په غور سره ستاسې په را کړل شوي پیشنهاد چې سامي شرف د ځانه سره راوړی ؤ ، او د دوستۍ او همکارۍ د یو تړون غوښتنه پکې شوې وه ، کتنه کړې

ده . موږ فکر کوو چې داسې یو تړون بـه ډېر مهم وي او د نړیوالو په عامه ذهنیت بـه ډېره ښه اغیزه وکـړي . او هم بـه دا په اسرائیلو او امریکې د زور راوړلو یوه وسیله وي ، هغوی چې د عربي متحد جمهوریت په وړاندې په مبارزه کې غواړي خپلـو هدفونو ته قانوني بڼـه ورکړي او د تیري نتیجې ویلې کړي .

د دې خبرې یادولو تـه ضرورت نشته چې دا تړون بـه د تل د پاره د دښمنانـو هغه هیلې تر خـاورو لانـدې کـړي چې زمونـږ دوو هیوادونـو ترمنځ د اړیکو د خرابولو د پاره یې لري . موږ دې ته تیار یو دغسې یو تړون لاس لیک کړو ، هر وخت او ځـای چې ستاسې خوښه وي ، او که ستاسې اعتراض نـه وي موږ دستي د دې د متن په تیارولو کار پیل کوو .

د جمهور رئیس د لیک روحیه او د شوروي ځـواب دواړه مهم وو ، ځکه داسې ویل کیده چې تـړون د شورویانو له خوا پیشنهاد شوی ؤ او هغوی پرې له دې امله ټینګار کاوه څـو هغه تاوان پوره کـړي چې په اصطلاح د 'شوروي پلـوي ډلې' د لیرې کولـو له امله ورتـه رسیدلی ؤ . خـو لکه څنګه چې ولیـدل شول ، د تړون مفکوره پخوا تردې وړاندې شوې او منل شوې وه چې د شوروي د پلویانو د لیرې کولو تصمیم ونیول شي او عملي شي .

د شوروي د مې د لومړۍ نیټې په لیک کې یو پیشنهاد دا ؤ چې د شوروي د مشرانو څنې یو باید د ښه نیت په سفر د مې په لومړۍ نیمایي کې یوځل مصر ته راشي . هغوي په دې نه پوهیدل چې په قاهره کې اصلاً څه تیریږي ، ځکه د بندي کیدو نـه یواځې دوه ورځې وړانـدې سامي شرف د شـوروي د سفیر ولادیمیر ونګرادوف نـه پوښتنه وکړه چې ښه به نـه وي د شوروي یو لوړ رتبـه نماینده قاهرې ته راشي ، ځکه دا بـه یواځې 'د جمهور رئیس د دریځ د پیاوړي کیدلو سره مرسته وکړي' . سفیر اصلاً په تکتیکي ډول هغه ته د ځواب ورکولو نه ډډه وکړه .

علي صبري او د هغه ملګري د مې په ١٦ مه ونیول شول ، او پودګورني قاهرې ته ٩ ورځې وروسته را ورسید ، د ځانـه سره یې د تړون لومړی نقل متن راوړ . زه د تړون د ټولې مفکورې سره مخالف وم ، ما فکر کاوه چې دا به خلکو تـه د ١٩٣٦ کال د انګریزانـو او مصر ترمنځ تـړون را یاد کـړي ، چې خلکو تري ډیره بده خاطـره درلودله . کله چې د سادات پـه غوښتنه ، د بهرنیو چارو وزیر محمود ریاض ما ته تیلفون وکړ او د دې په هکله یې زما نظر وغوښت ، ما ورته وویل چې د تړون موده (٢٠ کاله) هماغه د ١٩٣٦ کال د تړون موده ده .

تړون وشو خو موده يي ۱۰ کالو ته راکمه شوه .

د مى په ۲۷ مه نيټه د تړون په لاس ليک کولو سره امريکايان اريان شول . فيصل پادشاه واشنګټن ته په يو رسمي سفر تللی وُ چې کله د تړون د لاس ليک کولو خبر خپور شو ، نکسن د ده نه د تړون د اهميت په هکله ژوري پوښتني وکړې . آيا د دې مطلب داکيدي شي چې د بهرنيو چارو د وزير راجرز تولې هلې ځلې د هيڅ سره برابرې شوې ؟ فيصل پادشاه د جون په نيمايي کی قاهرې ته راغئ ، او روسانو ډيره علاقه درلوده چې د پادشاه دغه سفر تعبيرکړي ، او هم د قاهرې ، رياض او تهران ترمنځ د اړيکو د تودوالي په اهميت ځانونه پوی کړي ، همدارنګه امريکايانو غوښتل د تړون تطبيقي او عملي اړخونه ځان ته معلوم کړي .

# بیلوالی زیاتیږي

سادات د لومړي لوبي ازموینې نه بریالی راووت . د جمهور رئیس په توګه اوس دی د پوره واک خاوند ؤ ، خو د علي صبري د ډلې لارې د شوروي اتحاد سره اړیکې کړ کیچنې کړې وې . اوس د جنجال یوه نوې منبع په جوړیدو وه ، دا ځل د مصر له سرحداتو نه بهر - په سوډان کې .

ډګرمن جعفر نمیري چې په سوډان کې د ۱۹۶۹ کال د می کودتا په لاره اچولې وه ، د پراخه سیاسي ملاتړ د ترلاسه کولو له لارې ځان ټینګ کړی ؤ . د سوډان د کمونیست ګوند اکثرو غړیو ، چې په عربي نړۍ کې د ښه نظم درلودونکو ګوندونو څخه ؤ ، په لومړیو کې د ده ملاتړ وکړ ، سره له دې چې ده په سیاسي ګوندونو بندیز ولګاوه او یو د سوډان سوسیالستي اتحاد یې جوړ کړ ، دا د ناصر د عربي سوسیالیستي اتحاد په څیر ؤ . د نمیري دا خو ښه وه چې د سوډان کمونیست ګوند به هم د مصر د کمونیست ګوند په لاره لاړ شي او په رسمي ډول به ځان رنګ کړي ، خو دوی دا کار ونه کړ . د دې پرځای ، د ګوند مشر عبدالخالق محجوب ، دا ګوند په مستقله لاره روان کړ او د لسو کسانو نه جوړې شوې د انقلابي قوماندې شورا د دري پلویانو غړیو بابکر النور ، فاروق عثمان حماد الله او هاشم العطاء سره یې په پټه اړیکې ټینګې کړې .

داسې شواهد موجود وو چې د سیاسي تو نل په دا بل سر کې کمونیستان د نمیري د مخالفینو سره یو ځای لګیا وو ، د امت د ګوند د غړیو سره چې اوس غیر قانوني ؤ . په ۱۹۵۶ کال کې د سوډان د استقلال ګټنې په وخت کې د امت ګوند د هغو دوو ګوندونو څخه یو ډیر محافظه کار او ملي ګوند ؤ چې لږ و ډیر یې سیاسي قدرت په خپلو منځو کې سره ویشلای ؤ . دې ګوند زیات ملاتړ په انصارو کې درلود ، د مهدي د کورنۍ د پلویانو په منځ کې یې زیات ملاتړ درلود ، چې په ۱۸۷۰ کې یې د مذهبي ناسیونالیزم یو غورځنګ پیل کړ ، او په ۱۸۸۵ کال کې د ګورډون د مړګ سبب شو او ۱۳ کاله وروسته د انګریزي - مصري پوځ له خوا بیا سوډان ونیول شو .

د انصارو د قبيلې اصلي ځاي د ابا جزيره ده چې د خرطوم جنوب ته ۱۵۰ ميله ليري د سپين نيل په غاړه پرته ده . د ۱۹۷۰ کال په مارچ کې په دې جزيره کې د ډيرش زرو انصارو په شاو خوا کې سره را ټول شوي وو . ټول وسله وال وو ، ماشين ګن ، هاوانو نه او د ټانک ضد وسلې او تومانچې يې درلودې . د مارچ په ۲۷ مه نميري يوه هڅه وکړه چې خپله دغې جزيرې ته ورشي او د انصارو سره خبرې وکړي خو ورسره دښمنانه ګوزاره وشوه ، او لکه څنګه چې يې په دا بله ورځ خلکو ته خطاب کاوه ، ويې ويل چې د ده سر د خطر سره مخامخ ؤ .

انور سادات دا وخت په سوډان کې ؤ ، دی هلته د ناصر له خوا ليږل شوی ؤ چې د نميري سره شخصي تماس ونيسي . د حالاتو د ډير خرابوالي له امله نميري د بهرنيو مرستو د لاس ته راوړلو د ضرورت احساس وکړ ، او ناصر ته يې يوه غوښتنه راولیږله ، د ابا په جزيره باندې د بريد له پاره څو مصري هوايي پوځي يونټونه راوليږي . سادات د ده د غوښتنې ملاتړ وکړ . خو ناصر ونه منله . هغه نه غوښتل مصر د سوډان په کارونو کې نيغ په نيغه ور داخل شي ، په دې يا بله توګه سوډانيان د مصر په وسلو ووژل شي . بيا نميري انصارو ته يو اخطار ورولیږه ، او سوډاني الوتکې په جزيره باندې ور والوتلې . د دې الوتنو او ورپسې د بمباريو له امله په انصارو کې د مړګ ژوبلې اندازه ډيره درنه وه . د انصارو مشر امام هادي المهدي چې ور باندې د اړو دوړ د راپوروته کولو تور ؤ ، په مرموز ډول د سرحدي پيره دارانو له خوا هغه وخت ووژل شو چې حبشې ته يې د تښتيدلو هڅه کوله .

نميري عبدالخالق محجوب او د مهدي وراره سيد صادق المهدي چې د جون راهيسې په زندان کې پراته وو په يوه پوځي الوتکه کې کينول او قاهرې ته يې وليږل ، ناصر ته يې يو ليک ورسره واستاوه چې دوی په زندان کې وساتي . ناصر زه د يو دوستانه پيغام سره صادق المهدي ته ورولیږلم چې ورته ووايم دی بايد قاهره د سياسي پناه ځای ونه بولي ، خو دا ښه وه چې دی د سوډان نه راووت ، ترڅو کارونه په سوله کې پرمختګ وکړي ، د عنعنوي او بنيادګرو ځواکونو ترمنځ کشش پيدا نه شي ، ځکه دا د کورنۍ جګړې پرته بله نتيجه نه لري . صادق المهدي د ناصر په پيغام عمل وکړ او په قاهره کې يې څو کاله آرام تير کړل .

خو محجوب هر چا ته په هجرت کې د خپل ژوند نه په شکايتونو سر شو .

ځیني کسان وي چي په تا یې سره شرطونه تړلي وي او داسي احساس کوي چي د هغوي برخلیك تا سره تړلی وي . هغوي ستا د بریالیتوب سره ځانګړي مینه لري ، ستا په ملاتړ په سیاسي بیرو کي خبري کوي ، که ته ناکامیږي ، هغوي هم له ځانه سره ناکاموي . نو هڅه وکړئ خپل ملګري وپیژنی او د هغوي سره سمه ګوزاره زده کړئ . که هغوي کي د ښوئیدلونښي را ښکاره شي نوته هم ښوئیدلی یې. (دمثال په توګه زمونږ ډیر ملګري چي مسکو ته تللي وو. دالکزنډر شیلیپین د ښوئیدو او لویدلو جریان ته یي په اریانتیا سره کتل ، هغه سره مونږ ډیري معاملي درلودي ، هغه د لوړي وزیر له مرستیالۍ نه په کراره کراره د کارګرانو د اتحاد یې د مسلکي ټولني د منشیتوب معمولي چوکۍ ته راښکته شو د هغه د رتبي او چوکۍ د راښکته کیدلو نښي هغه وخت راښکاره شوي چي د رهبرۍ د کدر په کړیو کي د هغه د لاس لاندي دوو کسانو ، د تاس آمر کاریموف او د جاسوسي د ټولني د یو مدیر ولادیمیر سیمیکاستني ، محبوبیت مخ په کمیدو شو . مونږته څرګنده شوه چي کله کله د مشرتا به په لوړ پوړ کي د کسانو موقف د هغوي د لاس لاندي کارکوونکو مامورینو له موقف نه لیدل کیدي شي .)

٨ - لکه چي لیدل شوي ، د شوروي د مشر تا به له پاره دا خبره ډیره د اهمیت وړده چي خلک په کلکه درجه بندي کړي . په عمومي ډول هغوي له ټولو هغو کسانو سره دوستانه ګوزاره کوي چي دوي ورسره په خبرو اتروکي برخه اخیستي وي، خوهغوي په هر هغه چا بدګومانه وي چي امریکي کي یې درس ویلی وي او یا یې د نړیوالو موسسو سره کارکړي وي . (دوي په هغو ټولو کسانو بدګوماني کوي چي د نړیوال بانک او یا د نړیوال مالي صندوق سره یې نژدي کارکړي وي ، په بله ژبه دوي په حقیقت کي د مصر د مالیي او اقتصاد په وزیرانو بدګومان کاوه . دوي هڅه کوي کار ډیر اسان کړي - په خلکو باندي د دوستانو یا دښمنانو ټا پي ولګوي . ناصر یو ځل دوي په دي کي را ایسار کړل، هغه وویل : زه پوهیږم تاسي فکر کوي چي علي صبري ستاسي سړی دی، او ذکریا محي الدین د امریکي سړی دي ، دا رښتیا نه ده. داسي وشول چي علي صبري مي تاسي ته در ولیږه او ذکریا محي الدین مي امریکي ته ولیږه ، خو دوي دواړه زما سړي دي .)

٩ - که له شوروي نه د کومي ځانګړي مرستي غوښتنه کوئ ، دوي ته باید ډیر وخت ورکړئ . هغوي نه غواړي په ناڅاپي غوښتني سره اریان شي .

د مسکو نه داسې معلومات ونه را تلل چې د شوروي متفکرين په دې ډېر خوږيږي چې دی په زور شړل شوی دی او هلته بندي دی ، انديښنه يې ده چې ده ته به څه پېښيږي . يو سړی چې د عربي نړۍ د خيړنې د کومې مؤسسې غړی ؤ په مسکو کې يې د مصر د سفارت سره تماس ونيو او پوښتنه يې تري وکړه ، آيا د دې امکان شته چې محجوب بېرته سوډان ته لاړ شي که نه ، او هلته د ده د تګ په هکله قاهره څه فکر کوي ، دا به څه جنجال را پيدا کړي ؟

بيا ناصر محجوب را وغوښت او ورته ويې ويل ، دا ته چې په کومو خبرو لګيا يې ډيرې بيځايه دي . 'زه درته وايم چې همدلته اوسه . خو زه تا يا بل څوك نه بنديکوم . د دې دفتر نه چې وځي دوه پاکټونه به وسومې چې د هغوي په مرسته به وکولاي شې په نړۍ کې هر چيرې چې وغواړې هلته ولاړ شې . دا بالکل ستا خپله خوښه ده چې چيرته ځې' .

نو محجوب چې د ناصر دفتر نه راووت دوه پاکټونه يې راپورته کړل ، په يوه کې يو پرانيتي هوايي تکټ ؤ او په بل کې څو سوه سټرلنګ پونډه وو . هغه مخامخ هوايي ډګر ته لاړ او په هغه لومړۍ الوتکه کې ورروخوت چې خرطوم ته روانه وه . هلته چې ورسيد ونيول شو او بندي شو .

د ۱۹۷۱ کال په نيمايي کې د نميري او کمونيستانو ترمنځ شخړه وروستۍ درجې ته ورسيدله . د جولاي په لومړيو کې محجوب له زندان نه پټ وايستل او پټ شو . د جولاي په ۱۹ مه کيڼ افراطيون راپورته شول . يوې ډلې ياغيانو د پوځ مرکزي دفترونه ونيول ، نميري يې ونيو او بندی يې کړ . د نميري لږ تر لږه ديرش کسه وفاداران او پوځي منصبداران په ډيرو بدو شرايطو کې ووژل شول .

د خپلو وړاندينيو څرګندونو سره سره چې ويل به يې دوی نه غواړي د پوځي اړو دوړ له لارې خانونه سياسي قدرت ته ورسوي . کمونيستانو په کودتا کې تر ټولو زياته فعاله برخه درلودله ، دا کودتا د هاشم عطاء له خوا رهبري شوه . قاهرې ته چې د کودتا خبر را ورسيد سادات ډير ژر يو ځانګړی استازی خرطوم ته وليږه چې د نميري د سر د سلامتۍ حال ځانته معلوم کړي ، خو د عطاء يواځنی ځواب دا ؤ چې د کاره ليري کړل شوی جمهور رئيس به ژر د محاکمې ميز ته راکش کړل شي او په دې هکله د خبرو اترو څه ضرورت نه ويني .

همدارنګه د انقلابي قوماندې په شورا کې د کمونيستانو دوه پخواني پلويان

غړي بابکر النور او فاروق عثمان حماد الله ، چې د کودتا په وخت کې په لندن کې وو ، خرطوم ته د بريالي راستنيدلو په تکل کې شول. بابکر النور د نميري وروسته د جمهور رئيس په توګه نومول شوی ؤ . خو کله چې د دوي د سورلۍ د برتانوي هوايي کرښې يوه الوتکه د ليبيا د خاورې د پاسه د خرطوم په لور په هوا کې را روانه وه ، ورته د ښکته کيدلو امر ورکړل شو . دا د واړه سړي د الوتکې نه را ښکته کړل شول ، بنديان وساتل شول او بيا د سوډان مقاماتو ته لاس تړلي ورو سپارل شول .

خو د قذافي د دغې مداخلې پرته هم کودتا د ماتې سره مخامخ وه . د خلکو له خوا د کودتا بيخي لږ ملاتړ وشو چې د نشت سره برابر ؤ ، او په ۷۲ ساعتو کې وفادارو پوځونو بيا د پايتخت کنترول په خپل واک کې ونيو . د پوځ مرکزي دفترونه بيرته ونيول شول او نميري آزاد شو .

په خرطوم کې د شوروي نمايندګانو د کودتا د مشرانو سره نژدې تماس ساتلی ؤ او مسکو د دوی د ملاتړ ته را وتلی ؤ . روسانو هڅه کوله اوس د کودتا د مشرانو په وکالت مداخله وکړي ، د نميري سره مخامخ او هم غير مستقيم د مصر د حکومت له لارې . پوماناروف دا وخت په قاهره کې ؤ ، شخصاً يې د کارګرانو د اتحادې د مشر شفيعه احمد الشيخ په وکالت ، چې په هغه کال کې يې د لينن د سولې جايزه په ګډه ګټلې وه ، سادات ته پيشنهاد وکړ . سادات د نميري سره په تيلفون خبرې وکړي ، هغه ته وويل شول چې د روس غوښتنه ډيره ناوخته را ورسيده ـ شفيعه الشيخ ، د محجوب او څوارلسو نورو سيمه ييزو او لوړ رتبه مشرانو سره يو ځای اعدام شوی دی . دوی البته په ډيره چټکۍ سره بيله دې چې محاکمه يا شکنجه شي د خپلو اعمالو په سزا رسيدلي دي .



روسان د وينو د دغې حمام په هکله چې د دوي دوستان پکې ولمبيدل ډير ناراضه وو ، اود نميري او سوډان پرضد يې په پراخه پيمانه بد تبليغات پيل کړل . پوځي او نورې مرستې يې بندې کړي ، او د سوداګرۍ اړيکې خراب شول . د سوډان حکومت د هغه څه پرضد سخت عکس العمل ښکاره کړ چې ورته د سوډان په کورنيو چارو کې د شورويانو د پرله پسې مداخلې هڅې ويل شوي وې . د انقلابي شورا يو غړي عبدالهاشم قاسم د شوروي سفير احضار کړ او په ډيره سخته ژبه يې ورته يو ليکلی يادښت ورکړ . متن يې داسې ؤ ، 'د سوډان انقلابي شورا د شوروي اتحاد نه غوښتنه کوي د سوډان د حکومت پرضد خپل

کمپاین په بشپړه توګه پای ته ورسوي . هغه کمپاین چې دلته یې د ځینو کمونیستي مشرانو د وژلو له امله پیل کړی دی . تاسې باید پوی شي چې د دغې کمپاین جاري ساتل به په راتلونکي کې د سوډان او شوروي په اړیکو ډېره بده اغیزه وکړي . د انقلابي قوماندې شورا دا حق یواځې د ځان بولي چې د سوډان د حیثیت او وقار د ساتلو له پاره د هر عمل ضرورت وي ، وکړي ، مګر که په ځلېریشتو ساعتو کې ورته د منلو وړ ځواب را ورسیږي' .

شورویانو اصلاً دغې اخطار ته سم او پر وخت عکس العمل وښود . په مسکو کې د سوډان سفیر د شوروي د بهرنیو چارو وزارت ته وغوښتل شو ، او په لاندې عبارت ورته لیکلی یادښت ورکړل شو : 'مونږ اوس هغه پیغام د څېړنې لاندې نیولی دی چې د سوډان د انقلابي قوماندې شورا را لیږلی دی ، خو تر هغې چې دا څېړنه پوره کیږي ، مونږ غواړو تاسې خبر کړو هغه اخطار چې د سوډان د انقلابي قوماندې د شورا له خوا شوروي اتحاد ته ورکړل شوی ، په عبارت او ژبه دواړو کې ډېر راپارونکی دی ، او شوروي اتحاد هغه بالکل ردوي . هیڅوا ته اجازه نشته چې شوروي اتحاد په دې ډول مخاطب کړي . آن چې په امپریالیستي کمپ کې زمونږ دښمنان ډېره موده پخوا په دې پوی شوي دي چې د داسې خبرو زمانه ډېره پخوا تیره شوې ده ، او مونږ اریان یو چې د سوډان مشران دې ته اوس را رسیدلي دي' .



رئیس سادات ۱۹۷۱ کال د 'تصمیم کال' اعلان کړی ؤ ، خو د اونیو په تیریدو سره دا په کراره کراره معلومیده چې په دې کال کې د کومو پوځي عملیاتو امکان نه ؤ . د پورته تګ پرځای د مصر له پاره هره ورځ حالات د اندیښنې وړ کیدل . سیاسي حالاتو په داسې یو لور پرمختګ کاوه چې یو کال دوه وړاندې یې بیخي سوال نه را پیدا کیده . د یوې خوا نه بورژوا عناصر چې د تیلو د پیداوارو له امله یې اقتصادي نفوذ مخ پر زیاتیدو ؤ ، ورځ په ورځ زیات پیاوړي کیدل ، له بلې خوا نه هغه کسان چې ځانونه یې مترقي بلل (د علي صبري ډله) په حقیقت کې د قدرت د نیولو سره ډېره علاقه درلودله اوبس . د مسکو او قاهرې ترمنځ د تفاهم فاصله هره ورځ زیاتیدله .

د لارې د پاکولو په یوه هڅه کې سادات پریکړه وکړه یو ځل بیا مسکو ته لاړ شي ، د بهرنیو چارو وزیر محمود ریاض او د وسله والو پوځونو لوي

درستیز جنرال محمد صادق يې له ځانه سره بو تلل . د ۱۹۷۱ کال د اکتوبر په ۱۲ مه يې د روسانو د مشرانو برژنف ، کوسیګین ، پودګورني ، ګريچکو ، پوناماروف او وینډګرادوف سره په یوه غونډه کې ګډون وکړ . د خبرو د جريان نه ځرګنده شوه چې رئیس نه شي کولاي په چټکۍ سره د یوې بلې جګړې په لور لاړ شي ، هغه جګړه چې ګومان پرې کیده ټولې ستونځې به آوارې کړاي شي ، ده د نويو سياسي لارو د پرانيتلو په هکله د ملاتړ او مرستې غوښتنه وکړه ، خو ځه ګټه يې ونه رسوله .

برژنف غونډه په دې ډول پيل کړه : د انديښنې وړده چې دوی سره په دومره ډيره موده کې ونه ليدلاي شول . دښمنان لګيا دي زمونږ د دوو هيوادونو ترمنځ پانې ټکوهي ، نو دی هيله لري له تشريفاتو پرته په صميميت کې خبرې اترې وکړي .

سادات دی په خپلو خبرو کې را ونيو . هغه وويل ، زه به خبرې پيل کړم ، زمونږ د تير مارچ له کتنې نه را پديخوا ځه پيښې شول . په هغې کتنه کې مونږ د اور بند او ورپورې د تړلو مسايلو په هکله خبرې وکړې . بيا د هغې نه وروسته مو د ليبيا او سوريې سره د يو ځاى کيدلو پريکړه وکړه ، مونږ په مصر کې يوه ستونځه درلودله ـ د مشرتا به د بې اتفاقۍ ستونځه . د يووالي مسئله د بې‌اتفاقه کيدلو اصلي علت نه وُ ، خو ما داسې ګومان وکړ چې کيدي شي دښمنان زمونږ د بې اتفاقۍ نه ګټه پورته کړي ، نو ځکه مې په چټکۍ سره عمل وکړ . ما د شوروي سفير راوغوښت او ورته ومې ويل چې په مشرتابه کې لانجه را پيدا شوې ده او غوارم آواره يې کړم ، علي صبري له ميدانه وباسم . ما ورته وويل . زه له دې ويريږم ، لويديځ کې به داسې آوازې شي چې د مسکو سړی له منځه ووت او اوس مصر د لويديځ په لور روان شو . بيا دوه ورځې وروسته ، راجرز قاهرې ته راغئ ، او نوي پيشنهادونه يې وکړل ، چې دې کار زمونږ او ستاسې ترمنځ بدګوماني زياته کړه . خو ما درته ويلي وُ چې د راجرز د راتګ نه ډير وړاندې ځه روان وو ، او د راجرز سره له کتلو وروسته بيا ما وينډګرادوف راوغوښت او هغه ته مې د راجرز سره د خپلې کتنې تفصيل ووايه چې تاسې مې پرې خبر کړئ .

هغه‌وويل ، تا له ما نه غوښتنه وکړه چې د يو اواري د پاره کار وکړم . زه تا سره موافقه لرم . ما په اپريل کې پودګورني ته وويل چې که د اواري

د پاره په سلوکې نیم امکان هم وي ، زه به پرې کار وکړم . زه هغه خبرې راپه یادوم چې ما پوډګورني ته د ټرون د لاس لیک نه وروسته د مسکو په لور الوتکې ته ترختو وړاندې کړې وې : ما ورته وویل ، «زه له تاسې نه یوائې یو شی غواړم ، په ما اعتماد وکړئ» د می له ۱۳ می وروسته زه د کړکیچ سره مخامخ شوم ، تصمیم می ونیو او اله ګوله می اواره کړه . خو لویدیځ له دې نه ګټه پورته کړه او هڅه یې وکړه داسې وښیي چې ګوندې ما خپل دریځ بدل کړ ، سوسیالیزم ورانوم او د ناصر له لارې ګرځم . هغوی دا خبره وشاربله چې امریکایانو مونږ سره د یو سوله ییز اوارې د موندلو له پاره اړیکې ټینګې کړي دي . نو ما د سپټمبر د ۱۶ می په خپله بیانیه کې دا هر څه په ډاګه کړل ، د جولای په ۶ مه راته نکسن یو پیغام راولیږه ـ د هغې جزئیات می تاسې ته لیږلي وو ـ په هغې کې یې له ما نه تاسې سره زمونږ د ټرون په هکله معلومات غوښتی ؤ ، او غوښتې یې ؤ څان پوی کړي چې مونږ اوس هم د عمل آزادي لرو ، که نه ؟ ما ورته وویل ، د امریکې سره زمونږ اړیکې تر څلورو ورځو پخوا پورې شلیدلې وې کله چې هغوي زمونږ د بهرنیو چارو د وزارت یو مرستیال محمود ریاض سره تماس ونیو» .

سادات بیا د سوډان پیښو ته راوګرځید . هغه وویل : 'هغه وخت پوډګورني ما سره په قاهره کې ؤ ، ما هغه ته د سوډان په هکله خپل نظر ووایه. ما ورته وویل : «یوه میاشت وخت ما ته راکړئ ، زه به نمیري مسکو ته درولیږم . دی به ترهغې وخته پورې په دې پوی شي چې له مسکو پرته ده ته څوک د مرستې لاس نه ورکوي . اوس هم په سوډان کې هوا ګرمه ده او د خلکو وینه هم توده ده . خو هغه پریږدئ ، زه به نمیري درولیږم»' .

سادات بیرته د مصر ـ شوروي د اړیکو مسئلې ته راغئ . هغه وویل : 'لکه څنګه چې درته ما د مخه ویلي دي ، زمونږ او د شوروي اتحاد هدفونه یو شی دي . مونږ خپل دریځ نه دی بدل کړی . سربیره پردې ما د مارچ په ۲۳ مه یوه غوښتنه وکړه چې مونږ باید ګډه ستراتیژي ولرو . زه نن بیا دغه غوښتنه تکراروم . ما پاناماروف ته وویل چې مونږ له ډیرو مارکسیستي هیوادونو لکه چین او کیوبا نه تاسې ته په دوستۍ کې در نژدې یو . زه تل خپلو خلکو ته دا وایم چې تاسې مونږ سره د ضرورت په وخت کې په ډیر اخلاص او ریښتینولۍ ودریدئ . زه تاسې ته هغه څه وایم چې پرې ریښتینې عقیده لرم ـ هغه دادي چې

لویدیځ امپریالیستان غواړي زمونږ او د شوروي اتحاد ترمنځ پانـه تکوهي . دا یواځې د امریکې او صهیونیزم په ګټه ده اوبس . لکه څنګه چې ما ویلي ، زما په عقیده امریکا دري هدفونه لري ، او په دې کې د اسرائیلو سره سترګه په سترګه کوري . لومړی ، دوی غواړي له سیمې نه د روسانو شته والی لیرې کړي او د عربانو او شوروي ترمنځ بدګوماني را پیدا کړي . دویم ، دوی غواړي مصر لوخ او بې ملګرو کړي ، څکه مصر بنودلې ده چې یو عصري او پرمختللی هیواد څنګه جوړیدي شي ، په داسې حال کې چې دوی غواړي دا یو وروسته پاتې افریقایي هیواد وي ، او د ګابون نه زیات اهمیت ونه لري . دریم . دوی غواړي په عربي نړۍکې تول پرمختیایي حکومتونـه له منځه یوسي ، یوځل چې مصر یواځې شي بیانو دا کار اسان دی' .

رئیس سادات را یاده کړه چې کوسیګین د ده نه د سعودي عربستان د دریځ په هکله پوښتلي ؤ . هغه وویل ده د پادشاه فیصل سره د امریکې او مصر د اړیکو په هکله په صمیمیت خبرې کړې دي ، او فیصل وعده کړې ده چې دوه اونۍ وروسته به شهزاده فهد امریکې تـه ولیږي . سادات وویل ، له فیصل نـه د ده غوښتنه داوه ، چې کله ما ته (سادات ته) دا موقع تر لاسه شي په منځني ختیځ کې د امریکې پالیسي را ښکاره او افشاء کړم ، هغه (فیصل) ته به دا خبره ګرانـه هم وي ، که د مصر پر خوا نـه دریږي ، باید بې طرفـه پاتي شي . فیصل ډیر احساساتي شو او ویې ویل ، دی به تل د سادات پر خواوي . رئیس سادات وویل چې د شاه سره یې هم اوږدې خبرې کړې ، د هغه پـه فکر امریکایان داسې یو نامکمل اواري غواړي چې مصر بـه سینا په دې شرط بیرتـه تر لاسه کړي چې ځان له نورو عربو نه وشلوي . خو که هغه (سادات) د امریکې د پالیسۍ رښتینوالی افشاء کړي د هغه دریځ به هم بالکل د فیصل په څیر وي . .

سادات خپلې خبرې په دې ډول پای ته ورسولې، هغه د دوه شیانو غوښتنه وکړه : امریکایان تل دا وایي چې دوی بـه اسرائیل د عربو نـه لوړ او وړاندې کړي ، خو دی د شوروي نـه غواړي چې لږ ترلږه مصر د اسرائیلو سره برابر وشمیري . او دویمه غوښتنـه یې هماغه ده چې له پودګورني نـه یې کړې وه ـ د اعتماد خبره . هغه وویل : 'زمونږ دوستي تکتیکي نـه ده ، دا یوه ستراتیژیکي موضوع ده' .

سادات د شوروي مشرانو سره هماغه ورځ یوه بله غونډه هم وکړه ، په

هغې کې ده د علي صبري د ډلې خبره راپورته کړه . هغه وویل : 'نه غواړم تاسې زما په هکله په اوازو باور وکړئ ، هغه کسان چې اوس بندیان دي ځینې يې سفیر ویندګرادوف ته ورغلي وو او هغه ته يې ویلي وو چې زه مصر په امریکایانو پلورل غواړم او د ناصر له کرښې نه اوړم . خو زه مصر په امریکایانو نه پلورم او زما لاره بدله شوې نه ده . په هیواد کې د نظریاتو بیلوالی را پیدا شو . رئیس یو ډول خبرې کولې او ملګرو يې بل ډول . د هیواد کورنی حالت اوس ډیر ښه دی' .

برژنف خبره ونیوه ، ما چې کله د مصر د کورني حالت په هکله پوښتنه وکړه زما مطلب اقتصادي حالت ؤ ، او د بنې اړخ د ځواکونو قوت ، نه د علي صبري معامله . سادات وویل ، د ښي اړخ ځواکونه ډیر کمزوري دي : زه هغوي په یوه ثانیه کې له منځه وړلی شم . ښي اړخ په مصر کې غابنونه نه لري ، او زه يې غابښونو پیدا کولو ته نه پریږدم' .

په دا بل سهار د اکتوبر په ۱۳ مه بله غونډه وشوه . برژنف د سادات صفت پیل کړ او وې ویل ، دی ډیر خوشاله دی چې د دواړو هیوادونو ترمنځ د دوستۍ د اړیکو دوام ویني ، هغه دوستي چې بنسټ يې رئیس ناصر ایښی دی . ده وویل ، شوروي اتحاد مصر ته له هغه څه نه ډیر زیات ورکړې چې دوي ځیني سوسیالیستي هیوادونو ته ورکړي دي . د مصر په وړاندې د شوروي دریځ تکتیکي نه دی ، بلکې د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د ۱۹۷۱ کال د مارچ په څلیریشتم کانګرس کې پري پوره خبرې او پریکړه شوې ده .

برژنف بیرته د علي صبري د ډلې موضوع ته را وګرځید . هغه وویل : 'ما به د مصر د کورنیو چارو په هکله هیڅ نه وو ویلی ، که تا دا خبره لومړی راپورته کړای نه وای . تا په مشر تا به کې د لانجې د را پیدا کیدو خبره وکړه . دا خلک مونږ پیژنو څکه هغوی به تل ستا او د رئیس ناصر نمایندګان وو . هغوی مونږ سره په خبرو اترو کې برخه اخیستي ده ، او تر هغې چې زما په یاد دي هغوي کله هم دلته په خپل سر نه دي راغلي . وروستی سړی چې ما ولید سامي شرف ؤ . زه ډیر ناوزګاره وم ، خو چې راته وویل شول د رئیس سادات پیغام ورسره دی ، ما هغه ولید . زمونږ د خبرو اترو تفصیل د پوناماروف سره شته ـ که غواړئ لیدلای يې شې . زما په یاد دي هغه وویل چې دی د ناصر مرستیال ؤ او اوس د سادات مرستیال دی . زه باور نه شم کولای د سادات استازی دې د سادات دښمن وي . نو زه خپل ورور سادات ته دا ویل غواړم

چې مونږ د هغه څه سره هيڅ کار نه لرو چې دوی به کيدي شي ويلي وي . مونږ ته ويل شوي دي چې دوی ځينو په تحقيقاتو کې ويلي دي چې شوروي اتحاد د دوي په نيتونو خبر ؤ ، خو زه درته ډاډ درکوم ، داسې نه ده'.

برژنف د سوډان او ليبيا په پر مختګونو هم انديښمن ؤ او هم اريان . هغه وويل ، د ناکامې کودتا نه يوازې دوه مياشتې وړاندې شوروي د هغه د پاليسيو د ملاتړ له پاره نميري ته يو پيغام ليږلی ؤ ، سره له دې چې دغې پيغام د سوډان کمونيستان وځورول . هغو تورونو چې ګوندې شوروي د کودتا ملاتړ کړی مونږ ډير خپه کړو . د قذافي په هکله بايد ووايم : 'مونږ هغه نه پيژنو ، هغه موکله نه دی ليدلی ، مونږ د هغه يا ليبيا پرضد څه نه لرو . خو زه نه پوهيږم هغه ولې پر مونږ د خولې بريدونه کوي ، کمونيزم او شوروي اتحاد ته بد وايي'.

برژنف وويل : دوی ته ډيره ګرانه ده په دې پوي شي ، يو هيواد چې د مصر سره په يو فدراسيون کې ؤ ، شوروي اتحاد ته بدرد وايي . 'مونږ د خلکو د خبرو نه په هغوي قضاوت کوو . قذافي ولې مونږ ته بد وايي ؟ مونږ هغه ته څه بد نه دي رسولي ، او مونږ هيڅ دليل نه لرو هغه ته بد ورسوو . هغه په شوروي اتحاد باندې د خولې د بريدونو له امله بورژوا مطبوعاتو ته يو سوغات دی . هغه څه چې قذافي وايي ، شوروي ته څه تاوان نه شي رسولی ، او يو وخت به راشي چې دی به په هغو ټولو خبرو پښيمانه وي چې د شوروي په هکله يې کوي . مونږ د عربو خلکو سره په خپلو اړيکو خوشاله يو او وياړو ، خو ځينې شيان شته چې سر مو پرې نه خلاصيږي'.

د پخوا په څير د برژنف پيغام ، د کورنۍ بيدارۍ او ټينګښت يو پيغام ؤ . 'مونږ يو ډير پياوړی ګوند لرو ، پياوړی کمسومول ، پياوړی انقلاب ، نو هيڅ ډول کورنی دښمن مونږ ته ضرر نه شي رسولي . هغه وويل ، زمونږ ټولنه د بلشويکي انقلاب پر بنسټونو جوړه شوې ده ، خو په مصر کې له د ننه خوا نه تخريب ډير اسان کار دی . دا تصادفي خبره نه ده . د مصر راډيو او تلويزون کې داسې څه ښودل کيږي چې زمونږ دوستي کمزورې کوي . مونږ فکر کوو په مصر کې داسې هڅې په لاره اچول شوې دي چې زمونږ د دوو هيوادونو ترمنځ اړيکې خرابې کړي'. خو هغه د سادات د ځينو غوښتنو سره هم نظري ښکاره کړه چې پر هغه بايد اعتماد وشي - 'مونږ خوشاله يو خپل ګران او صميمي دوست رئيس سادات دلته په مسکو کې وينو'.

برژنف زياته کړه 'تاسې وايې چې خلک مو صميمي او تاوده دي ، کيدي

شي زمونږ خلک دومره تودوخه ونه لري خو د ربښتیا وو او دروغو په وړاندې ډیر حساس یو . د هغوی په توپیر پوهیدي شو . په ټوله نړۍ کې خلک په دې پوهیږي چې مونږ تاسې سره مرستې کوو ، خو دا د شوروي بزګرانو ، کارګرانو او د شوروي خلکو په خوښه کیږي . په دې هیواد کې هر سړی له تاسې سره د مرستو کولو په اصولو باور لري' . دې خبرو برژنف ته موقع ورکړه را یاده کړي مصر ته د شوروي پور اوس پنځه میلونه روبله کیږي . 'د دې مفهوم دادی چې مونږ مالونه صادر وو خو په مقابل کې څه نه تر لاسه کوو' . هغه وویل : 'زه ګیله کول نه غواړم ، خو دا ددې له پاره دریادوم چې زمونږ د اقتصادي مرستو په ستونځو باندې پوې شي' .

غونډه په تازه اخطارونو سره پای ته ورسیدله . برژنف وویل : 'مونږ باید د امپریالیزم په وړاندې خپلې مبارزې ته زور ورکړو . مونږ باید په کوم سیاسي دام کې ښکیل نه شو ، او مونږ باید له خپل دریځ نه یو سانتي متر هم په بیرته لاړ نه شو . مونږ باید هیڅکله هم د خپلو خلکو او دوستانو سره خیانت ونه کړو . امریکایان تاسې ته د خپلو راتلونکو انتخاباتو له امله پیشنهادونه کوي ، خو دا په بدله څیره کې د مصر او د هغه د دوستانو ترمنځ د پانې تکو هلو هڅه ده' . برژنف سادات ته وریاده کړه چې دی په راتلونکي کال کې د نکسن سره ګوري ، او حتماً به منځني ختیځ د خبرو اترو له پاره د موضوعاتو څخه وي . دا ډیره مهمه ده چې تر هغې باید د مصر مشران د امریکایانو له خوا په ایښودل شو یو دامونو کې ونه نښلې .



په مسکو کې د صمیمي نظریاتو د تبادلې سره سره د شوروي او مصر د مشرانو د متقابل باور کوم ربښتیني بنسټ کینښودل شو . د سادات او شوروي اتحاد ترمنځ د اړیکو لومړی پړاو د دویم پړاو په لور روان ؤ ، دا ډیر سخت پړاو ؤ ، د دې پړاو لوړه څوکه د ۱۹۷۲ کال په جولای کې د شوروي مشاورینو شړل ؤ .

د ستونځې یوه برخه په مصر کې د شوروي د یو زیات شمیر استازو ژوره لاس وهنه وه . د شوروي مامورینو له خوا د مصر نه د سرو زرو د ایستلو قاچاق روان ؤ ، (د رمضان جنګ ته تیاری ، ۱۶۰ مخ) ، د جنګ د وزیر جنرال محمد صادق او لوړ رتبه پوځي مامورینو ترمنځ د خولې جنګ روان ؤ ، د سمندري پوځ جنرال ګروشیکوف له خوا په سره سمندرګي کې د مرساترو او بیرینیس په

سیموکې د روسي جنګي کشتیو د ځانګړیو اسانتیاوو د برابرولو غوښتنه کېدله ، د روسانو له خوا دا هڅې هم روانې وې چې د قاهرې په لویدیځه خوا کې هوايي ډګر د مصر د مقاماتو له صلاحیت نـه وباسي او په خپل کنټرول کې یې راولـي ، روسي اوسیدونـکي دلتـه د قاهـرې نـه بیل کـړي ، د ښار پـه منځ کې د دوی د متخصصینو او سیاسي استازو کورنیو د کارونو او سوداګرۍ له پاره ډیر ځایونه را نیولي وو . په ما باندې خپله پـه پراوداکې ډیر بد ویل کیدل له دې امله چې ما په الاهرام کې یو مضمون خپورکړی ؤ چې روسانو د اوسني حالت ، نه سوله او نـه جنګ ، نـه ډیره ګټـه پورته کـړې ده ، ځـکه دې مصر زیات پـه روس پورې وتاړه .

دا ځانګړی تحلیـل د جنګ د هغـو لوبـو یوه نتیجه وه چـې د الاهـرام د ستراتیژیکو څیړنو پـه مرکز کې د لاس لانـدې وه ، او د کمپیوټر نـه پکې کار اخیستل کیده . د نورو شواهدو پواسطه یې ملاتړ کیده . د مثال پـه توګه ، ما دا وخت د ایټالیې د کمونیست ګونـد د مشر ، لیوجي لانګو سره پـه روم کې د ده په ګوندي دفتر کې یوه مرکه کړې وه . ما د 'نه سولې ، نه جنګ' په هکله څـه تبصره کـړې وه . هغه زما نـه پوښتنه وکـړه : 'اواري راوستلـو تـه ستاسې ولې دومره تادې ده ؟ زه داسې ګومان کوم په مصر کې به د اوسني حالت دوام ټولو پرمختلونکو عناصرو ته موقع ورکړي خپله پوړیزه مبارزه لا پیاوړې کړي او د خلکو د سیاسي شعور او پوهې سطحه لوړه کړي . دا به تاسې په دې بریالـي کـړي چې ټولنیـز او ملي انقلاب په یو وخت کې وړانـدې بوځي' . ما چې دا مرکه خپره کړه ، نانـدرۍ راپورته شوې ، داسې څرګنده شوه چې ګونـدې ځیني کمونیستان په هره بیه چې وي د منځني ختیځ د ستونځې د اواري سره مینه نه لري .



د شوروي نه هوښیارۍ د مصر په وړاندې خپل دریځ ته ډیر تاوان ورسا وه ، او امریکایانو د امکان تر اندازې پورې د شوروي د غلطیونه ګټـه پورتـه کړه . خو د دې له پاره چې سادات ولې خپله پاملرنه له شورویانو نه د امریکایانو په لور راواړو له ، ژور علتونه شته .

د سادات د مسکو له کتنې نه لږ وړاندې ، د ۱۹۷۱ کال د سپتمبر په پای کې ، په واشنګټن کې د ویلیام راجـرز محمود ریاض او د دواړو خوا وو د یو شمیر نورو لوړ رتبه ماموریینو ترمنځ یوه کتنه شوې وه ، په هغې کې یوه وروستۍ هڅه وشوه چې یوې (موقتي موافقې) تـه ورسیږي ، د امریکې د بهرنیو چارو

هر شي او کار باید د پلان له مخي وشي ، د دوي د کار پلان ډیر جامد دي . د مثال په توګه ، که تاسي کومه فابریکه غواړئ ، دي ته باید د دوي په راتلونکي پنځه کلن پرمختیایي پلان کي ځاي پیدا شي ، که ژرغوښتونکي وي ، بیانو باید خپله شوروي کي کوم ځاي بې فابریکي پاتې شي .

۱۰ - په یاد ولرئ چي کرنه شوروي ته تر ټولو مهمه ده . تاسي له هغوي نه د وسلو یا فابریکو غوښتنه کولاي شي ، خوکه د سختي لوږي سره مخامخ نه یاستئ ، هیڅکله له دوي نه غنم مه غواړئ . هغوي رښتیا غنم نه شي درکولاي . دا غوښتنه به دوی وډارکړي او بښني غوښتلوته به یې مجبورکړي.

۱۱ - په یاد ولرئ چي شورویان هره سیاسي مسئله د امریکایانو د په نظر کي ساتلو سره څیړي او ټاکي . امریکا د دوي له پاره یوه لویه اندیښنه ده . امریکا د دوي پههره فیصله باندي اغیزه کوي حتي په هغو پریکړو چي د امریکي پوري هیڅ اړه هم نه لري. (د امریکي دهر جمهور رئیس په هکله څیړنه د دوي په سیاست کي بدلون راولي . هغوي د نکسن په هکله یو ډول فکر کاوه ، په کنیډي پسي خفه وو ، خو جانسن هغوي ډیر ویرولي وو . برژنف اوتانت ته وویل ، دا سړی هره لوبه کوي ، نړۍ ورته باید په تاپیا کي اوسي .

۱۲ - په یاد وساتئ چي شورویان ستاسي نه په جلا مهال ویش فکر کوي. کیدي شي ستاسي ستونځي د ځواب غوښتنه کوي، خو دوي هرڅه ته د تاریخي او انقلابي تکاملي پروسي په جریان کي ګوري . د مثال په توګه دوي چي دعربو سره د اسرائیلو او عربو په ستونځه خبري کولې ، د جوړښت په هکله به یې تل د برست لیتوفسک د تړون مثال راوړ . لینن ته به یې اشاره کوله چي هغه تل دي ته تیار ؤ ، خپله یوه زیاته اندازه ځمکه دښمن ته پریږدي ترڅو چي د روس دري ایالتونه دښمن لاندي هم کړي ، خو هغه دي ټولوته د موقتي قرباني په سترګه کتل چي بیا په خپل وخت بیرته لاس ته راوړل کیدي شي .

۱۳ - په یاد ولرئ چي شوروي اتحاد د بل نړیوال جنګ نه ډیر زیات ویریږي . هغوي به تاسو ته تل په خپلو خبرو کي درپه یاد وي چي شوروي اتحاد په لوی وطني جنګ کي شل میلونه خلک له لاسه ورکړل ، هغوي په دي تکي ډیر ټینګار کوي یواځي هغه کسان د هستوي جنګ او مقابلې فکر کوي چي اصلاً د جنګ په معني نه پوهیږي .

۱٤- تاسي باید په دي پوه شئ چي د شوروي مشرتوب دسلاوله بزګرانو نه جوړ دي ، او په اسانۍ سره خندلی او ژړلی شي . هغوي په دي ډیر خوشالیږي

وزیر په دې ټینګه عقیده درلودله . د غونډې نه څه د زړه پورې نتیجه راونه وتله ، په قاهره کې داسې ګومان کیده چې بهرنۍ مهمې پریکړې نورې د امریکې د بهرنیو چارو په وزارت کې نه کیږي ، بلکې دا صلاحیت اوس د رئیس نکسن د امنیتي مشاور هنري کیسینجر لاس ته ورغلی دی .

د کیسینجر صلاحیت په سیاهم پورته ؤ ، او د سیا او د مصر د استخباراتو د هغه وخت د مدیر ، جنرال احمد اسمعیل ترمنځ یو مخابراتي چینل پرانیتل شو . دې چینل سره د یو شمیر بهرنیو موسسو له خوا مرسته کیدله ، هغوی د تیلو په تولیدونکو هیوادونو کی د ورځ په ورځ زیاتیدونکي اقتصادي او سیاسي قوت برسیره په د پلوماتیکي برخه کی په تیره بیا په منځني ختیځ کی د امریکې د نفوذ د پرمختګ لـه پاره کار کاوه . فیصل پادشاه او د ایـران شاه دواړو د دې سره مینه درلوله ، او کله کله به یې د واشنګټن او قاهرې ترمنځ منځګړیتوب هم کاوه . پادشاه فیصل تل د ناصر د سیاستونو سره ډیـر ژور مخالفت درلـود ، اوس یې د منځګړیتوب له لارې په راتلونکي کی یو چانس لیده او په دې یې باور درلود چې د ریاض ـ تهران ـ قاهرې په محور به د امریکا د ملاتړ سره ، عربي نړۍ به بیرته بنیاد ګرانه او محافظه کارې لارې ته رهبري کـړي ، د کومې نـه چې د ناصر خطرناکې بنستیزې پالیسۍ اړولې وه .

خو د استخباراتي غیر رسمي او پټـو چینلونـو سره جنجال دادی چې سړی هیڅکله ډاډه کیدي نه شي د دغو لارو نه راغلیـو معلوماتونـو بانـدې څومره باور وکړي . رئیس سادات ته زښته ډیر پیغامونه را رسیدل پیل شول ، بیلابیلو اجنټانو به ورته را رسول . ټولو به دا دعویٰ کوله چې د واشنګټن د لوړ رتبه مقاماتـو نـه ورتـه لاربنو نـه شوې ده . دا چې نکسن یا کیسینجـر بـه د دغو پیغامونو اجازه ورکړې یا به یې دا نوویښت کړای ؤ ، د ثبوت لاره نـه وه ، خو ددې ټولو زور په دې خبره ؤ ، که مصر ځان ـلـه روسانو نـه خلاص کـړي ، 'امریکا به هر څه ورکړي' .



د ۱۹۷۲ کال د اپریل پـه ۲۸ مـه بیا پودګورني قاهـرې تـه راغئ ـ پـه دیارلسو میاشتو کی د شوروي ـ مصر د مشرانـو پنځمه غونـډه ـ خو د سادات د خبرو په فهرست کی د متخصصینو مسئلې ته ښکاره هیڅ اهمیت ورنه کړای شو . څه شی چې هغه غوښتل د خپل میلمه سره پـري خبرې وکـړي د منځني ختیځ ورځ په ورځ خرابیدونکي حالت ؤ . هغه دا احساس کاوه چې په اروپا او جنوب

ختیځه اسیا کی د روس پالیسي په دې وروستیو کی څه بریالیتوبونه ترلاسه کړي دي ، خو په منځني ختیځ کی یې هیڅ بریالیتوب نه ویني .

سادات حالات هاغسې بیان کړل چې ده لیدل ـ امریکا په ډیره چټکۍ سره پرمخ روانه وه ترڅو په سیمه باندې بیا خپل کنټرول راولي ، هغه وویل ، د امریکی سمندري پوځ په اوبو کنټرول لري ، د دوی اجنټان اسرائیل ورځ په ورځ خپلې پښې کلکوي ، او د امریکې ځیني ملګري د فلسطین د مقاومت پاتې شوني له منځه وړي . د ۱۹۷۲ کال د مارچ د ۱۵ مې نیټې د پادشاه حسین هغه پیشنهاد چې د اردن ـ فلسطین یو فدراسیوني دولت جوړ کړي ، امریکا ته د دې وخت ورکوي د حیفا او بحرین ترمنځ په ټوله سیمه باندې خپله قبضه ټینګه کړي . سادات داسې فکر کاوه امریکا په عمومي ډول د ټولو عربو پرضد په دسیسه کی او په تیره بیا د مصر ـ شوروي د اړیکو خرابولو په کار کی په ژوره توګه بوخته ده . د سوله ییز آواري دا ټولې هڅې له ناکامۍ سره مخ شوې ، او د ۱۹٦۷ کال راهیسې د ملګرو ملتونو د استازي ګوناري یارنګ ماموریت په اوبو کې ډوب شو .

سادات پوډګورني ته وویل ، په پوځي خوا کې هغه داسې وسایل غواړي چې د اسرائیلو هوایي پوځونه شنډ او د کانال نه تیریدل ممکن کړي . هغه وویل : 'زه پوهیږم ، د اوس نه به د نکسن سره ستا د کتنې تروختـه پورې کافي وخت پیدا نه شي چې د منځني ختیځ پـه پوځي حالت کی بنسټیز بدلـون راوړل شي ، خو ته چې څه کولای شي دادي چې د خپلـو راتلونکـو پروګرامونـو روښانـه څرکندونې وکړي زمونږ د پوځي حالت تقویه کول به مونږ ته موقع راکړي چې هم نرم شو اوهم کلک .



د مې په ۲٦ مه د برژنف ـ نکسن کتنه وشوه او د شورویانو د مشاورینو د شړلونـه یواځې شپږ اونۍ وړانـدې ، سادات د مصر شوروي د تـړون د لاس لیک د لومړۍ کلیزې لـه امله د شوروي مشرانـو تـه یو تلګرام واستاوه ، د تلګرام ژبه داسې وه چې تري نه هیڅ معلومات نـه کیـده ، چا ته لیکل شوی دی او څه به تري راوځي . سادات د 'زړه لـه کومې مبارکۍ' ورولیږلې . هغه تړون 'زمونږ ترمنځ د دوستۍ اوښو اړیکو ډیر لوړ انعکاس او ښه نتیجه وباله ، او داسې نور .

هغه لیک کی چی د مصر د جنګ وزیر جنرال صادق د سادات له خوانه برژنف له پاره مسکو ته د جون په ۷ مه نیټه له ځانه سره ویوړ ، هم په دغسې ژبه لیکل شوی ؤ . رئیس له برژنف نه مننه کړې وه چی د مصر په وکالت له نکسن سره ښه غږیدلی ؤ ، که څه هم هغه دا منلې وه ځینې شیان چی امریکایی مامورینو ویل د ګډې اعلامیې د متن سره سمون نه خوري . سادات ولیکل : 'زما په فکر ، ترهغې چې په امریکا او اسرائیلو ښه پرځای او پوره زور نه وي راوړل شوی ، تر هغی په منځنی ختیځ کی یو مثبت آواری راوړل کیدای نه شي . تر هغي چی اسرائیل دا ویره پیدا نه کړي چی پوځي انډول د دوی د تاوان په لور په بدلیدو دی ، او مونږ وکولای شو په هغوی سیاسي او پوځي زور راوړو ، پرته له دې آواری نه شي راتلای . زه ویریږم زمونږ له خوا د عملیاتو وروسته غورځول ، ، په میاشتو د سیاسي او پوځي خوځیدنې وروسته والی به یواځی په نیول شویو ځمکو کی د اسرائیلو د پیاوړې کیدلو سره مرسته وکړي اوبس' . یو حل بیا یی غوښتنه وکړه د وسلو رالیږلو کار باید چټک شي .

سره له دې چی د نکسن سره د کتنې راپور په قاهره کی د شوروي د سفیر له لارې د کتنې نه د یوې اونۍ نه لږ زیات وخت وروسته سادات ته استول شوی ؤ ، د جولای په ٦ مه د برژنف له خوا سادات ته یو شخصي لیک راغئ چی پکی د نکسن سره د خبرو تفصیل لیکل شوی ؤ او هم پکی دا ډاډ څرګند شوی ؤ چی شوروي به د مصر د دفاع په ملاتړ ، روزلو او وسلو برابرولو کی مرسته کوي . په دی کی هغه بیا په 'ښي او ارتجاعي عناصرو' ګوزارونه کړي وو او د 'مصر د ځینو کړیو له خوا یی د آوازو د خپرولو' غندنه کړې وه' .

خو دا وخت د رئیس تصمیم نیول شوی ؤ . دا هماغه د جولای په ٦ مه چی سادات د جمهور رئیس د مرستیال محمود فوزي ، په فارم کی ؤ ، هغه څرګنده کړه چی دی به د شوروي اتحاد نه وغواړي خپل پوځي مامورین له مصر نه بیرته وغواړي . په دا بله ورځ هغه جنرال صادق ته وویل ، او د جولای په ۸ مه د شوروي سفیر خبر کړای شو . مشاورین او متخصصین باید لاړ شي .

# دا وونه دې زيات کړه ، يا ميدان خوشې کړه

د شوروي متخصصينو د ايستلو پريکړه يواځې رئيس سادات خپله کړې وه ، دا چې ملګرو يې ورسره خوښه وه يانه ، خو هغوی په دې کې هيڅ هم نه شو کولای . سادات خپل هغه ليکلی متن چې د روس سفير ته ورکول کيده ، خپل مرستيال محمود فوزي ته وښود ، هغه نظر ښکاره کړ چې د مصر او شوروي د ترون په چوکاټ کې د سمدستي خبرو اترو موضوع بايد د وروستي پاراګراف نه لومړۍ برخې ته راوړله شي . خو سادات وويل چې دا به غلطي وي ځکه اصلاً د خبرو اترو له پاره څه پاتې نه دي ، تصميم نيول شوی دی . دا به د شورويانو او د جمهور رئيس د دوستانو له پاره پوره بيځايه او بې وخته وي که د دغې پريکړې سره مقابله وکړي . نو د صدر اعظم ډاکتر عزيز صدقي ، او مراد غالب چې په دې وروستيو کې يې په مسکو کې د مصر سفارت پرېښې او د بهرنيو چارو وزير شوی ؤ ، غوندې کسانو له پاره ښه خبره دا وه چې څومره د دغې چاوديدونکي بم نه ليري وي هومره ښه ده .

بهرنيو مشاهدينو ته د مصر نه د روسي مشاورينو شړل د پاليسۍ داسی يو بدلون ښکاريده لکه په ۱۹۵۵ کال کې د مصر او چکوسلواکيې د وسلو معامله . خو مشاهدين د دې پريکړې په رښتينوالي او هم د هغې د عملي کولو په شکل باندې پوره غوليدلي وو . روسان په نړيواله سويه سپک شول ، هغوی به څه ډول عکس العمل کوي ؟ آيا دوي به د هغه سړي د را پرځولو هڅه وکړي چې دوی يې ترتلي وو ، او يا به دوي د يو بل عربي هيواد او بل عربي مشر د پيدا کولو لټون وکړي چې د مصر او سادات ځاي ونيسي ؟ او که داسې وي ، نوکوم يو به وي ؟

مبصرينو همدارنګه د سادات د 'رښتينو' نيتونو او پلانونو اټکل کاوه . آيا

دا یوه عاجلانه پریکړه وه ، چې د کوم خیالي سپکاوي د بدلې اخیستلو په نیت شوې وه ، او که سادات د روسانو سره د ژورې دښمنۍ له امله دغې کار ته اقدام کړی ؤ ، د ده د ریاست د لومړیو ورځو کیسی (ښایي د علي صبري د معاملې په سر) ، یا کیدي شي د هغی نه هم وړاندې ؟ که داسې وي ، نو دی به د څه ډول اوږدې مودې پټ نوو ښتونه په ذهن کې کړي ربې ؟

ښایي د اریانیتا لوي علت دا ؤ چې سادات په ښکاره د خپل دغه تصمیم پواسطه له امریکایانو نه هیڅ ډول امتیازات ترلاسه نه کړل . رښتیا خبره ده ، دا کار کیدي شو ، که هغه واشنگټن ته ویلي وای ، چې دی په دې فکر دی چې له روسانو نه ځان بیغمه کړي ، نو امریکایانو به ورته په مقابل کی خامخا د بدلې ورکولو څه ست کړای وي . ډیر ژر ځرګنده شوه چې کیسینجر هم د دغې پریکړې له امله اریانتیا ښکاره کړه .

په واشنگټن کی د ملي امنیت شورا او په مسکو کې سیاسي بیریو دواړو به خامخا په دې خبره ساعتونه فکر او چورت وهلی وي چې د سادات د دغې پریکړې اصلي انګیزه وڅیړي او ځان ته معلومه کړي چې دا به د مصر د پوځونو د روزنې او وسلو تیارولو په کار څه اغیزه کوي ، دوي به خپلو دفاعي او د تیري کولو عملیاتو ته څه ډول نظم ورکوي ، او په منځني ختیځ کی د سترو قدرتونو سیالۍ سره څه ډول تعبیر کیدي شي .

په حقیقت کی د ټولو نه زیاته د جمهور رئیس د پریکړې له پاره یوه نظریه وه . د بهر نه د منځني ختیځ په هکله د مصر محاسبه په دوو برخو کې لیدل کیدله ، په نړیواله سویه او په سیمه ییزه سویه . د ۱۹٦٧ کال د جنګ نه وروسته په سیمه کی پوځي انډول د اسرائیلو په لور دروند شوی ؤ ، نو د مصر له پاره یواځینۍ لاره دا وه چې شخړه په لوړه نړیواله سویه راپورته کړي ، هلته چې انډول نژدې برابر ؤ ، تر هغې چې داسې وخت راورسیږي چې مصر په پوځي قوت کی د اسرائیلو د سیالۍ شي . نو له دې امله شورویان دې ته تشویق شوي وو چې د مصر په وکالت له امریکی سره خبرې اترې وکړي ، داسې معلومیدله ، چې دا به اصلاً دوی ته نه یواځې د شخړې د آواري نه امکانات ځرګند کړي بلکی د شخړې په نتیجو کی به د خپلو ګټو او پرستیژ د لاس ته راوړلوله امله ځانونه په دې لانجه کي ښکیل کړي . رښتیا شوروي اتحاد په کراره کراره په شخړه کې ورګډ شو ، د مصر د وسله والو پوځونو

هرې مسلکي برخې ته د دوي د يو زيات شمير مشاورينو او متخصصينو ورليږل د دغې عملي يوه برخه وه . په لومړيو کې د دې ښه هر کلي وشو ، په دې عقيده چې د مصر په چارو کې د شوروي ډير ورننوتل به په راتلونکي کې په مصر کې د دوی کټې زياتې کړي ، او دا به مصر ته د شوروي اتحاد د زياتو مرستو ورکولو سبب شي .

خو په ۱۹۷۲ کال کې په مصر کې د دومره ډيرو شوروي متخصصينو د شته والي ضررونه په ښکاره کتور بلل کيدل . د بيا روزلو او سمبالولو کار چې د ۱۹۶۷ کال د جنګ نه وروسته د مصر د پوځونو د پاره لومړی رئيس ناصر او بيا ورته سادات ځان وقف کړی ؤ ، اوس تکميل شوی ؤ . د متخصصينو اوسنۍ پوهه د کار نه وه ، او ډيرو لوړ رتبه او کوچنيو قوماندانانو هلته خپل شته والی سترې کوونکی او غير ضروري موند . داسې آوازې وې ، البته رښتينې ثبوت يې ؤ ، د روس مشران په دې عقيده چې د دوی مشاورين بايد په مصر کې پاتې شي ، دې ډول آوازو پر هغوي باندې د اعتماد کمولو سره مرسته وکړه . د مثال په توګه ، د ۱۹۷۲ کال په مې کې مارشال ګريچکو ته پيشنهاد وشو چې د شوروي د ميزايلو د عملي پرځای به مصري عمله په کارواچوله شي ، هغوی اوس پوره روزل شوي دي ـ البته دا خبره د ميزايلو په هکله د لومړي تړون يوه برخه وه ـ هغه اعتراض وکړ چې دا به مسکو ته د نکسن د را تللو په ذهنيت بده اغيزه وکړي . د ده اعتراض په سياسي بيرو کې تائيد شو ، خو قاهره يې په خپل منطق قانع نه کړای شوه . نو د متخصصينو په کار کې يو څه بدلون راوړل حتمي شو .



روسان په ښه ترتيب سره ووتل . يو ويشت زره متخصصين بايد د هوا له لارې کورته تللي وای ، هره ورځ به هلته د شوروي د هيئت مشر جنرال اوکونيف د مصر د جنګ وزير ته خپل د هغې ورځې پلان ور کاوه چې کوم او څو کسان تلونکي دي . په ډيره اغيزمنه توګه د وتلو کار په اوه ورځو کې سرته ورسيد ، په داسې حال کې چې سادات د دې کار له پاره لس ورځې وخت ټاکلی ؤ .

نه قاهرې او نه مسکو غوښتل دغې پيښې نه دې د ناندريو يو شی جوړ کړي . دواړو خوا وو ښايسته ښه خپل کنترول او وقار وساته . البته په شخصي توګه روسانو د پوهيدلو وړ خوابدي ښودله .

ډاکټر عزیز صدقي چې تېره جنوري د ډاکټر فوزي نـه د صدارت مقام نیولی ؤ ، د جولای په ۱۳ مه د لازمو لارښونو سره مسکو ته ولیږل شو ترڅو د روسانو دېځلا کولو هڅه وکړي او که وکولاي شي د نورو سامان الاتو د را نیولو لاره آواره کړي . یو هدف کې هم دی دومره بریالی نه ؤ . خو د اگست په لومړیو کې برژنف سادات تـه یو شخصي لیک را واستاوه . د لیک پیل پوره بې خونده ؤ : ‹گرانه ښاغلیه جمهور رئیس› هغه به پخواتل په دې ډول ، ‹ورور› یا ‹ملگریه› یا ‹دوسته› خپل لیک پیل کاوه . لیک داسې ؤ :

‹د ډیرې مودې راهیسې مونږ د مصر ـ شوروي د اړیکو په هکله د متقابلې دوستۍ پر بنسټ په بېلا بیلو موضوعگانو خپل نظریات تبادله کړي نه دي. په دې وروستیو ورځوکی د مصر ـ شوروي د اړیکو د پرمختګ په هکله عکس العملونـه د مصر د صدر اعظم ډاکټر صدقي له خوا مونږ ته را رسیدلي دي . مونږ هم غواړو خپل دریځ روښانه کړو ، په تیره بیا د هغو پیښو په رڼا کې چې له مصر نه د شوروي ماموړینو د وتلو سره اړه لري .

‹د ټولو نه لومړی باید ډاډ درکړم چې د مصر او نورو پرمختلونکو عربي هیوادونو سره زمونږ دوستي پر هغو بنسټونو ولاړه ده چې گوند ایښي دي . دا هغه څه دي چې مونږ تل ویلي دي ، دا د لنډې مودې اهداف نـه بلکې زمونږ د نړیوال سیاست یوه پیاوړې برخه ده . نه په منځني ختیځ او نه د نړۍ په نورو برخو کې شوروي اتحاد د یو ستر طاقت په ښه سیاست کـوي ، هاغسې نـه لکـه پـه مصر کـې چې څینې کـړۍ تبلیغـات کـوي . داسې سیاست د امپریالیستي څواکونو دی او زمونږ د طبیعت سره بیخي پردی دی . د یو سوسیالیستي هیواد په توگه دا زمونږ طبیعي غوښتنه ده چې د عربي هیوادونو سره د ځنگړې دوستۍ اړیکو ته وده ورکړو ، او نورو سوسیالیستي هیوادونـو پـه دې ډول دریځ کې پوره ونډه اخیستې ده .

‹امپریالیستي هیوادونه دي چې په دې وروستیو کلونو کې یې د افریقې او آسیا د پرمختلونکو هیوادونو په لاره کې د خنډونو د پیدا کولو زیار ایستلی دی . دا دوي دي چې د دغو هیوادونو د استثمار ، ځپلو او غلام کولـو پرلـه پسې هڅې یې کړې دي ، او دا هغه څه دي چې عربي هیوادونه ورسره نیغ پـه نیغـه تجربه لري .

‹زمونږ سیاستونه بیخي بل ډول دي . زمونږ د سیاستو نوهدف دادی چې د شوروي اتحاد سره د خپلې دوستۍ د ټینگولولـه لارې بایـد اسیایي ـ افریقایي

هیوادونه خپل استقلال ټینګ کړي او ځانونه په مترقي لاره روان کړي . دا حالت د جمال عبدالناصر د مشرتابه په وخت کې ؤ . هغه ریښتیا د مصر یو ریښتینی لوي بچی ؤ ، وروسته له دې چې د مصر انقلاب د امپریالیستانو له بندیزونو نه خلاص شو ، نو د شوروي اتحاد سره د دوستۍ د اړیکو د ټینګولو په لور وخوځید» .

برژنف بیا په پوره تفصیل سره په هغو برخو رڼا واچوله چې مصر ته پکې د شوروي اتحاد بیلا بیلې مرستې ترلاسه شوې وې ، او هغه خپل لیک ته داسې دوام ورکړ :

«ښاغلی رئیس ، که مونږ فرض کړو ، داسې کومه یوه پیښه نه ده شوې چې زمونږ د دوو هیوادونو په اړیکو بې بده اغیزه نه ده کړې ، نو ریښتیا به مونه وي ویلي . هغه پوښتنې چې د روسي مامورینو د وتلو په هکله ستا له غوښتنې نه راپورته شوې ، اوس هم د ځواب انتظار باسي . د عربي خاورې نه د شوروي مامورینو وتل یوه ساده مسئله نه ده ، هغه چې د جمال عبدالناصر په غوښتنه هلته په موقتي توګه درغلي وو ، دا غوښتنه تاهم په خپله په کراتو مراتو په بیلو بیلو وختو کې تائید کړې وه بلکې داسې ګومان کیږي چې ستا د پریکړې نه راپورته شویو سوچونو زمونږ دښمنان ډیر خوشاله کړي دي ، هغوی د عربو ـ شوروي د اړیکو د ریښتیني ماهیت نه بې خبره دي . مونږ باور لرو دا زمونږ دوستي کمزورې کوي اوزمونږ اړیکو ته تاوان رسوي . دا د مصر د ریښتینو ګټو سره سمون نه خوري . مونږ د هغه سیاست په وړاندې بې توپیره نه شو پاتې کیدي چې د مصر حکومت نیولی دی ، دکیفیت او کمیت دواړو له مخې زمونږ د خلکو د ګټو پرضد دی . دا سیاست د هغو ښي اړخه عناصرو د دسیسو نتیجه ده چې په مستقیمه توګه د امپریالیزم ملګري دي او غواړي مصر د پرمختګ د لارې نه راوګرځوي . مصر به چیرې ځي ؟ دا به د خپلو سرحداتو نه په زور کومې خوا ته را ښکودل کیږي ؟ په راتلونکې کې به زمونږ ترمنځ اړیکې څنګه وي ؟ داسې پوښتنې شته چې ستاسې دوستان خپه کوي ، او دښمنان مو خوشاله کوي . مونږ هیله کوو د دغو پوښتنو ځوابونه راولیږئ ، او امید دی چې دا ټول به په اخلاص او صمیمیت وي .

«تاسې د یوې لوړ رتبه غونډې غوښتنه کړې ده ، مونږ موافقه لرو چې دغسې یوه غونډه ضروري ده . دا به د شوروي د تړون د روحیې او متن سره سمون ولري . مونږ له تاسې سره موافقه لرو چې دغه غونډه په قاهره یا په

مسکو کې وشي . د دې پرېکړه اسانه ده ، خو تر هغې وړاندې ډیرې خبرې دي چې بحث پرې باید وشي .

برژنف د خپلو پوښتنو ځواب په 'پوره صمیمیت کې' غوښتۍ ؤ . لکه څنګه چې لیدل شوي ، د صمیمیت د خبرو غوښتنې د دواړو خوا وو نه په بیلا بیلو وختو کې پخوا په کراتو مراتو شوي دي . په دې کې شک نشته چې دا د صمیمیت خبره وه ، سادات او برژنف دواړو په خپله وسه هڅه کړې وه ، یو بل تـه خپل نیت او فکر په ښه توګه بیله څه پټونې او غولونې ځرګند کړي . خو د دې سره سره یې بیا هم یو بل قانع نـه کـړای شول. د برژنف د لیک نـه ځرګندیږي چـې د شوروي دریځ ثابت دی ، دا د عربي او ټولې نړۍ له پـاره تماکلی دی ، دا سیاست د سترو قدرتونو د پـه خیال کې ساتلو نـه پورته دی ، نو څـه غلطۍ چې شوي دي دا د امپریالیستانـو د لاسه دي او دا 'پـه مصر کې د ننـه د ښي اړخ د ځواکونو دسیسې دي' . د هغه لیک د قهر په لهجه نه بلکې د خفګان پـه ژبه ؤ ، سادات تراوسه داسې بند شوی نـه دی چې ګونـدې بله هیڅ چاره نـه لري ، خو د دې له پاره چې هغه بیرته خپل هغه پخوانی پرستیژ او قـدر ترلاسه کړي ، مجبور دی ډیر تفصیلات او تشریحات ورکړي .

* * *

د برژنف د لیک ځینو ټکو سادات ډیر نا ارامه کړ . داسې ګومان کیده چې یو سخت ځواب بـه ورته ولیکي ، خو د دې د پاره چـې د نانـدریو او د خولې د جنګ د زیاتیدو مخنیوی وکړي ، باید په ځان یې زور تیر کړای وای . د برژنف د لیک ځوابونه د بهرنیو چارو د وزیر او د جمهور رئیس د امنیتي چارو د مشاور حافظ اسمعیل له خوا برابر شوي وو ، خو سادات پخپله کیناست او د ځواب متن یې ولیکه . یو اوږ د لیک ؤ ، او په اوه ساعتو کې یې ایله تیارکړ ، په ځای ده چې د ده د لیک پواسطه د ده د هغه وخت په ذهن او فکر باندې رڼا واچوله شي .

'زما ګرانـه ملګریه ، رئیس برژنف ، د شوروي اتحاد د کمونیست ګونـد لومړی منشي ـ زه تا تـه د اعتماد او باور یو لیک لیکم ، د دوستۍ پـه هماغو احساساتو او روحیه چې په کتنو او غونډو کې مو درلودل ، زما هیله داده چې د دغو ناوړو شرایطو نـه چې زمونږ اړیکې یې د خرابۍ پـه لومه کې ښکیـل کړل ، یوه د خلاصون لاره و مومو . که داسې ونه شي ، بدګومانۍ به نورې هم زیاتې شي . له دې امله دي چې د صمیمیت نه ډک لیک درته لیکم ، ترڅـو تاسې په ټولو مسایلو کې زما په نظر باندې پوی شي .

۱- مونږ تل پـه دویم نړیوال جنګ کې د شوروي اتحاد رول تـه پاملرنـه کړې

ده . د شوروي خلکو د نازي اشغالگرو په وړاندې مقاومت وکړ، په قهرمانۍ ورسره وجنگیدل ، او د خپلې خاورې د آزادۍ له پاره یې هر ډول قربانۍ ورکړې ، او د خپل ملي حیثیت ساتنه یې وکړه . نو دا باید د اریانتیا وړ خبره ونه گڼله شي چې د مصر خلک د خپلې خاورې د آزادۍ له پاره هر ډول ضروري قربانیو ته تیار دي . دا د روانیدو اصلي ټکی دی .

۲- د دې له پاره چې خپله دوستي وساتو ، په کار ده خپل لیک د هغو خبرو اترو نه پیل کړم چې په تیره غونډه کې مو د ۱۹۷۲ کال په اپریل کې کړې وې . د دوستانو په توگه په کار ده پوی شو چې په دومره وخت کې څه تیر شوي دي او باید خپلو خبرو ته دوام ورکړو .

۳- گرانه ملگریه ، زما په فکر به ته ما سره په دې خبره موافقه وکړې چې زه تل په ډیره ژوره توگه زمونږ او ستاسې ترمنځ دوستۍ ته ارزښت ورکوم . هغه څلور سفرونه چې ما په تیرو دوو کلونو کې مسکو ته کړي دي ، د ۱۹۷۱ کال په مارچ او اکتوبر او د سږ کال په فبروري او اپریل کې ، دا زما د خبرې ثبوت دی . په دې ټولو کتنو کې زمونږ د خبرو اترو اصلي موضوع د اسرائیلو پراختیایي سیاست دی ، چې د هغې په وړاندې باید څه وشي . غواړم تاسې ته هغه ټکي در په یاد کړم چې په تیرو کتنو کې مو پرې بحثونه کړي دي ؟ ما درته وویل ، مونږ د دوو اصلو په رڼا کې ژوند کول غواړو - لومړی ، هیله لرو چې زمونږ جنگ د خپلو خلکو له خوا وشي ، نه د نورو خلکو پواسطه ، دویم ، مونږ نه غواړو زمونږ جنگ د شوروي اتحاد او د امریکې د متحده آیالاتو د مخامخ ټکر کیدو سبب شي، البته په دې هر سړی پوهیږي چې دا به ټولې نړۍ ته یولوي خطروي . ما تل ټینگار کړی دی چې یواځې یو لیونی سړی به داسې کار کول غوره کړي .

٤- مونږ په تیرو کتنو په تیره بیا د تیرې فبروري په غونډه کې دې پریکړې ته ورسیدلو چې اسرائیل او امریکا به د مسئلې د اوارې له پاره هیڅکله هم کوم قدم پورته نه کړي ، نه د سولې له لارې او نه په بله کومه طریقه ، مگر په هغه صورت کې چې اسرائیل احساس کړي چې مونږ ترې په پوځي قوت کې وړاندې او ښه یو ، البته اوس اسرائیل په پوځي لحاظ وړاندې دي . یواځې هغه وخت به اسرائیل او امریکا پوی شي چې د لانجې اوارې د دوی په گټه دی . زمونږ په خبرو اترو کې ما تل په دې ټکي

چې پیاوړي اوغښتلي وبلل شي . په لویدیځ کې یو سیاست مدار په کراره کراره د حکومت د رازونو او د قدرت د رښتیني شکل سره بلدیږي ، خو په شوروي اتحاد کې د مرکزي کمیتې او سیاسي ، بیرو ترمنځ ډیر لوی مزل دی . یو سړي چې له دغې واتن نه تیریږي ، نوي زده کړه ده ته دومره تکان ورکوي چې دی د تعادل نه غورځولای شي . دده نوي مسئولیتونه دی په ویره کې اچوي .

## دا مه کوئ :

۱ ـ شورویان به په خپلو اوسنیو او پخوانیو غلطیو باندې تاسې ته د اعتراض او خبرو کولو اجازه هیڅکله هم ورنه کړي . تردې چې په ستالین باندې هم سړي اعتراض نه شي کولای . برژنف ویل : زه په ستالین انتقاد کولای شم خو ته یې نه شي کولای . اصلاً انتقاد د شوروي په نظام او د انقلاب په رښتینوالي باندې شکونه را پیدا کوي .

۲ ـ که تاسې مجبور شوئ د شوروي سره نا ندرۍ وولی او د خولې جنگ ورسره وکړئ ، باید له یو کال نه ، او زیات نه زیات له ۱۸ میاشتونه دا کار اوږد نه شي . کله چې د شوروي د مشرانو او د الف پوړ د یو هیواد د مشر ترمنځ اختلافات را پیدا شي ، باید ډیر چوپ او پټ وساتل شي . دوی تل په دې هیله وي چې اختلافات حل شي ، خو هیڅکله دا نه خوښوي د دوی په قضاوت انتقاد وشي او غلط وبلل شي خو که د خولې جنگ جریان پیدا کړي او دوی دې نتیجې ته ورسیږي چې د دغه مشر سره پریکړي ته نه شي رسیدي، نو ده ته به داسې اشاري ورسوي چې ده ته نور د دښمن په سترگه کتل کیږي دا اشاره به ژر د شوروي په نظام کې ټولو ته ورکړه شي ، د مرکزي کمیتې نه نیولی د گوند ټولو څانگو او ادارو ته به ورسیږي ، او چې کله دا کار وشي بیانو دوستي تقریباً نه کیدونکې ښکاري .

۳ ـ د شورویانو له نظره دا بیخې ناروا خبره ده چې دوی دې د امریکې سره برابر ستر قدرت وبلل شي . (برژنف ماته وویل : زه باید تا خبر کړم د «دوو سترو ځواکونو» په هکله څه ونه لیکې . ته څنگه مونږ له امریکې سره برابر وی؟) هر څوک چې داسې کوي هغه د چین د تبلیغاتو قرباني شوي دي .

٤ ـ هیڅکله له چین نه ملاتړ ونه کړئ . د شورویانو له پاره چین له امریکې نه هم لویه بلاده . دوی په دې خبره ټینگار کوي چې چین یو وروسته

زور اچولی دی چی یواځې د عصري دفاعي وسلو په برکت مونږ کولای شو د اسرائیلو د بریدونو مخنیوی وکړو ، یا هغوي بریدونو ته زړه ښه نه کړي . دا هغه وخت کیدي شي چې مونږ دومره پوځي قوت پیدا کړو چې د هغوي په خاوره کی د ننه بریدونه وکولای شو . خو دا څرګنده ده ، مونږ تراوسه دغسي داروونکی وسلې نه لرو ، او بیله دینه مونږ هیڅ ډول پوځي نوونښت نـه شوکولای . نو له دی امله هیڅ دلیل نـه پیدا کیږي چې اسرائیل به د اواري په هکله خپل دریځ بدل کړي .

۵- د دی ټکو په رڼاکی ؤ چی د ۱۹۷۲ کال پـه می کی می د مارشال ګریچکو په لاس یو پیغام درولیږه ، پـه مسکوکی د نکسن سره ستاسې له کتني نـه یواځې څو ورځې وړاندې . ما ډیره هڅه وکړه د مارشال کتنه بریالۍ شي . ما د هغې خبرې د خپرونې سره موافقه ونښودله چې ده د ځانـه سره له مسکو نـه راوړې وه ، د هغه څـه په هکله چې د مصر پیلوټانـو د اواز د چټکتیا نـه درې ځلې چټکې الوتکې الوزولې دي او دا (نوي جنګي X-500 الوتکې ، چې بیا وروسته د مګ-۲۳ په نامه و پیژندل شوي) په مصرکی په خدمت لګیاوې . دا یوه خبره هم رښتیا نـه وه ، خو ما د دې بیان سره څـکه موافقه وکـړه چې غوښتـل می د ده کتنـه بریالۍ شي . زه پوهیږم قاهرې ته د مارشال راتګ مسکو تـه د نکسن د سفر پورې تړلی ؤ ، او ما د یو دوست پـه توګـه دا هیله درلـوده چـی تاسی وکولاي شئ د نکسن سره په پیاوړی دریځ خبري وکړئ . خو مارشال ګریچکو تـه می یو ښه روښانه پیغـام ورکـړ چې د نکسن سره ستاسې له کتني وروسته بایـد زمونږ دریځ څه وي . دا زمونږ د پاره ګرانه نـه وه چې د خپل حالت په هکله تاسو سره د نکسن دکتنـي نتیجې ولیـدای شو . مـا د ۱۹۷۲ کال د اکتوبر ۳۱ مه وتاکله چې په دې موده کی باید مونږ څومره بریالیتوبونه ترلاسه کړو ، خو دا وخت زمونږ د کارونو د پوره کولو له پاره بس نه ؤ چې د امریکې د انتخاباتو نه وروسته موکړای وای . مارشال ګریچکو تـه می وویل ، مونږ ته هر ساعت او دقیقه په کار ده چې مونږ پکې خپل ضروري کارونه وکړو او نوي پړاو په پیاوړو بنسټونو پیل کړو .

۶- د نکسن سره ستاسې د کتنې د نتیجو په هکله چې ستاسې سفیر ما ته پیغـام راکړ ، د کتنې نه لس ورځې وروسته ؤ ، د پیغام معلوماتو نـه ، نه نوی ؤ ، او نـه اریانوونکي . پـه هماغې ورځ مې تا تـه د اوه ټکو یو پیغـام

دروليږه ، په هغې کې مې خپله خبره د مارشال ګريچکو د شرايطو سره برابره کړه ، او ټينګار مې وکړ ، د دې نه زيات وخت بايد ضايع نه شي . په هغې کې مې په ځانګړې توګه د قوماندې اوکنترول د مسئلې د حل په هکله غوښتنه کړې وه ، څکه ما ته دا سمه نه ښکاريده چې د شوروي پوځي واحدونه دې د مصر په خاوره کې وي ، او د مصر تر قوماندې لاندې دې نه وي .

۷- د يوې مياشتې په تيريدو سره ، د صدر اعظم او د بهرنيو چارو د وزير له يا دښتونو وروسته ، ستاسې ليک ما ته د جولای په ۸ مه را ورسيد ـ د دې واقعيت سره سره چې ما درته وړاندې ويلي ؤ ، ما ته هره ورځ ، هر ساعت ، او هره دقيقه د ژوند ارزښت لري . دا ليک ډير مأيوس کونکی ؤ، څکه په دې کې هغه تکي بيخي له نظره غورځول شوي وو چې ما د مارشال ګريچکو پواسطه او هم مې د جون د ٦ مې نيټې په خپل ليک کې درته په ګوته کړي وو . دې زما هغه انديښنه تائيد کړه چې د اسرائيلو د تيرې نه را پديخوا پنځوکلونو کې تاسې تل د جنګ د ضرورت نه سترګې پټې کړې دي ، اوس هم دغسې ده . زه د يو نيم کال راهيسې په دې لګيايم ستاسې پاملرنه دغې تکي ته راواړوم ، خو زما د کوښښونو نتيجه صفر ده . په نتيجه کی مجبور شوم ، ستاسی د ليک متن او لهجې دواړو سره مخالفت وکړم . دا ضروري شوه چې څه فرصت ترلاسه کړو ترڅو زه او ملګری تاسې ، دواړه په دې هکله خپل دريځونه روښانه کړو . ملګريه ، غواړم خپل نظر درته څرګند کړم چې دا فرصت څه ؤ، زما په عقيده د يو دوست په توګه تاسې حق لرئ زما د پريکړې په علتونو پوی شئ . په اوس وخت کی حالات بيخي کنګل شوي دي . مونږ ته د وړاندې تګ يوه لاره هم پرانيستې نه ده . امريکايان ادعا کوي په مسکو کی د نکسن د خبرو اترو وروسته يواځې دوي دي چې د لانجې د اواري اصلي کونجي يې په لاس کی ده . د ډاروونکو وسلو د نشتوالي په صورت کې اسرائيل په زياتيدونکي ډول غير مسؤلانه حرکتونه کوي ، که څه هم د مسکو د خبرو وروسته په ګډه اعلاميه کی وويل شول چې دواړه خوا وې بايد په کراره کراره سړې شي او د لانجې رښتيني اواري ولټول شي . ستاسی د جولای د ۸ مې نيټې په ليک کی بيخي زمونږ پخوانۍ موافقې له ياده وتلې دي چې مونږ بايد د پوځي حرکت له پاره ځان تيار کړو ، د امريکا د انتخاباتو وروسته به

دا خبره ډیره ضروري شي . امریکا لګیا ده اسرائیلو تـه وسلې برابر وي او هوایـی پوهځونه یی ورته له سره نوي کړل . ستا د لیک نه ښکاري چې په تیرو پنځو کلونو کې تاسې پر مونږ د وسلو بندیز لګولی دی ، په دی کې هغه داروونکی وسلې هم شاملې دي چې ما درتـه لیکلي وې او تا بالکل له یاده ایستلې دي . دا هغه موضوعګانې وې چې زه یې مجبور کړم د متخصصینو ماموریت پای تـه ورسوم . دا بـه د یو پړاو پای او د بل پړاو پیل وبلل شي .

۸- ملګریه ، اجازه راکړه څو مثالونه درته ووایم ، زمونږ خلکو او وسله والو پوځونو ته څه ورپیښ شول ـ وسله وال پوځونه خو اخر ټول د خلکو ځامن دي . دا هغه مسئلې دي چې ستاسې متخصصینو پرې باید تاسې هغه وخت خبر کړي وای چې د کنترول نه لا وتلي نه وو .

(i) سمندري پوځونـه : پرله پسې څلورکاله د سمندري پوځونـو قوماندان د او بتلونـو د کشف سامان درځني غواړي ، هغه اله چې مونږ یـی لـرو د کشف د فاصلې اندازه یې یواځې نیم کیلومتر ده . هغه ته ویل شوي دي چې شوروي اتحاد د دې نه ښه اله نـه لري . خو زمونږ ټول منصبداران له دینه ښه خبر دي چې ستاسې کښتۍ په داسی سامان آلاتو سمبالې دي چې د سترګو دلیـدو په فاصله کې د دښمن او بتلو نـه کشفولای شي . لویدیځ هم دا سامانونـه لري ، نو د دې څـه دلیل نشتـه چې دا خـبره دې پټـه وساتله شي . مونږ یو وروسته پاتې هیواد نـه یو . مونږ لوستلای شو ، مونږ پوهیږو چې تاسې او لویدیځ څه ډول وسلې لرئ . ټوله نړۍ په دې خبره ده . له بده مرغه ستاسی او زمونږ سمندري پوځونه څنګ په څنګ فعالیت کوي . په لویدیځ کې داسی سامانو نه شته چې شل ځلې له هغه څه نه اغیزمن دي چې مونږ یې لرو. آیا تاسې پوهیږئ زمونږ سمندري پوځیان په دې هکله څه تبصرې کوي ؟

(ii) هوایی پوځونـه : زمونږ ټول هوایـی پیلوټان (ستاسې د پوهنځیو فارغان دي) خبر دي چې تاسې ډیرې پرمختللې الوتکې لرئ ، لکه م - ۵۰۰ ، چې مونږ په دې ورروستیو کې ترلاسه کړې . خو تاسې سره هر څه اسرار دي ، هیچا ته اجازه نشته ورنـژدې شي . [بیا د فانتم او مګ تخنیکي پرتله کول وشول ، چې مګ ډیر وروسته پاتي دي] .

(iii) پوځ : زمونږ افسران خبر دي چي تاسي د امريکايانو پرتله ډير قوي توپونه لرئ ، خو د نورو ټولو شيانو پـه ځـير دا هم اسرار دي ، او ستاسي متخصصين منکر دي چي نشته . څه فکرکوئ زمونږ توپچي منصبداران پـه دې هکله څه تبصرې کوي ؟ پياده پوځ : په پياده پوځونو کی ټول منصبداران او پوځيان په دې پوهيږي چي د ټولو نـه مهم او خطرناك عمل د دښمن په کتارونو کی ورننوتل دي . په دې وخت کې هره دقيقه د مرګ او ژوند ارزښت لري . مونږ ډير داسي شيان نـه لرو چي د داسي عملياتـو له پاره پـه کار دي . تاسي منکر ياستئ چي نور عصري سامانونه نـه لرئ . آيا دا د دوستانو ترمنځ د مرستو او همکارۍ مفهوم دی ؟

مونږ دومره ډيـرو شيانو تـه ضرورت لرو ، که څـه هم مونږ حالت داسې ښيو چـي زمونږ د خلکو او ټولې نړۍ مخالف دی . مونـږ وايو هغه ټول سامان مو ترلاسه کړي دي چي ضرورت مو ورته درلود . خو څه شی چي زه غواړم تا سره پري خبرې وکړم زمونږ د ځانګړو ضروریاتو په هکله نه بلکي د پخوانيو او نويو سامان آلاتو د برابرولـو د شکل او طريقې په هکله دي تاسې مونږ سره د يو ډير وروسته پاتې هيواد پـه ځير کوزاره کوئ ، ګونـدې چي مونږ په هيڅ شی نـه پوهيږو . پـه داسي حال کی چي زمونږ منصبداران ستاسي پـه ښوونځيو کی ستاسي د منصبدارانو سره څنګ پـه څنګ يو شان روزل شوي دي . مونږ ټول هغه څه ځارو چي په نړۍ کی تيريږي ، په ختيځ او لويديځ کی . اسرار يې نشتـه ، څکه وسلې په هر ځای کې پـه کتابونو کی تشريح شوي دي . کله چي مونږ د دغو مسئلو په هکله د روسي مشاورينو نه پوښتنې کوو ، هغوي يا چوپ پاتې کيږي او يا منکريږي چې دغسې وسلې مونږ نـه لرو ، يا په شوروي اتحاد کی نشتـه . خو مونږ پيغي خبريو چي شوروي اتحاد دا هر څه لري .

۹- ګرانه ملګريه ، زه په دې ښه پوهيږم ، مونږ په خپلو اړيکو کی د ډير سخت پړاو نه تيريږو . د دې ډيره خطرناکه برخه داده چي دا حالت به د شوروي اتحاد پرضد ډيرې ترخې خاطرې پـه ميراث پريږدي . تاسي پوره حق لرئ زما له پريکړې وروسته هر ډول داسې تصميم ونيسئ چي فکر کـوئ ستاسې ګټې پرې خونـدي کيدي شي . خو زمـا عقيده داده ، دا بـه هيڅکله هم ستاسي په ګټـه نه وي چي د ځان پـه وړاندې زمونـږ د خلکو احساسات راوپـاروئ . ستاسې هغه پريکړه چي څلـور-م-. ه الوتکې مو د مارشال

کرېملکو د کتنې په پای کې د رسمي اعلامیې نه وروسته ، چې دا د مصري پیلوټانو له خوا الوزول کېدې ، له مصر نه وایستلې ، ربتیا زمونږ په وسله والو پوځونو کې ستاسې پرضد ډېر زیات احساسات راوپارول . بل همدومره خطرناک تصمیم هغه ؤ چې تاسې د سامان آلاتو ذخیرې بیرته ویوړې او ادعا مو کوله چې د مصر خلک ترې کار نه شي اخیستلای . د دې ټولو شیانو نه یوه نتیجه راپورته کېږي - زمونږ پر خلکو باندې د شوروي اتحاد د شرایطو تحمیل او منل . په ۱۹۵۵ کال کې مونږ په ګډه

دلته د لویدیځ د وسلو انحصار ړنګ کړ . مونږ د داسې دښمن سره مخامخ یو چې هر ډول عصري نوې وسلې لري . تاسې څه فکر کوئ هر معمولي مصري د دې نه څه شي جوړولای شي ؟ زه دا پوښتنه تاسې ته پرېږدم ، ځواب ئې کړئ ، خو که زه تاسې ته ټول واقعیتونه په صمیمیت سره مخې ته کینږدم ، ما به اصلاً د دوستۍ اصولو ته تاوان رسولی وي .

۱۰- یوه وروستۍ خبره چې باید روښانه یې کړم . ما تاسې څو ځله خبر کړي یاست چې ما د اکتوبر ۳۱ مه د خپلو اړیکو د جوړولو د وروستۍ نیټې په توګه ټاکلې ده . هیله لرم ، په ټوله دوستۍ کې تاسې په دې پوه شئ چې د دغه تاریخ په ټاکلو سره زما اراده نه ده تاسې بدنام کړم ، یا تاسې ته اخطار درکړم ، لکه ځیني خلک چې یې غواړي . دا یو داسې شی دی چې مونږ به یې هیڅکله هم ونه کړو . دا تاریخ د دوو علتونو له امله ټاکل شوی دی ، یو سیاسي او بل پوځي . په سیاسي برخه کې مونږ بنایي د امریکا له انتخاباتو وروسته داسې یو حالت سره مخامخ شو چې پکې د امریکا او اسرائیلو ګډ فشار د اسرائیلو د خوښې د یو آواري د پاره وي ، خو که مونږ د آواري داسې یو ټینګ بنسټ ولټوو چې وړاندې موږ موافقه کړې وه ، که داسې ونه شي ، بیا به د امنیت د شورا د پریکړې په خواوشا راګرځو ، د یا رنګ ماموریت ، د اسرائیلو ورځ په ورځ زیاتیدونکي غوښتنې او داسې نور . له پوځي نظره ، تاسې کولای شئ د خپلو خلکو نه پوښتنه وکړئ د نومبر یا دسمبر پورې به اسرائیلو څومره تیاری نیولی وي . تر هغې وخته پورې به اسرائیلو د خپل هوایي پوځ ټول نوي ضروري سامانونه ترلاسه کړي وي . د هغوی د فانتم اوهاواکس الوتکو را تللو سره به زمونږ د قوت او د دوی ترمنځ توپیر نور هم ډېر زیات شوی وي . نو ملګریه ، تاسې باید له دې امله په دې

پوی شئ چی دغه تاریخ مونږ ته ډیر زیات ارزښت لري . مونږ د مصر ټول خلک ستاسي له مرستو نه د زړه له کومي مننه کوو . ما چی د متخصصینو د ماموریت پای اعلان کړ ، پوره پام مي کاوه د مصر او عربو خلکو سره د شوروي اتحاد مرستي او دلته د هغوی رول په پوره توګه را یادکړم . خو دا زما وظیفه ده درته ووایم ، البته په صداقت سره ، هغه توقع چی مونږ له دغي دوستۍ نه درلوده دا وه چی خپله خاوره ازاده کړو . مونږ له تاسی سره ډېرو اړیکو هیله لرو ، خو دا په شوروي اتحاد کی زمونږ د دوستانو پورې اړه لري دوی څومره تیار دي مونږ سره زمونږ د ستونځي په آواري کی لاس راکړي ، زمونږ لومړۍ او وروستۍ ستونځه ، زمونږ د نیول شوې خاورې ازادول دي .



د جمهور رئیس سادات لیک کرېملین ته د اکتوبر د انقلاب د کلیزې د نمانځني د جشن نه لږ وړاندې ورسید . دا نمانځنه او د می د ورځې جشن هغه وختونه دي چی د شوروي اتحاد مشرتوب د نړیوالو حالاتو په ټولو خوا وو خپل دریځ روښانه کوي . زما په فکر هغوی به خامخا دا احساس کړی وُ ، تر هغه ځایه چی د عربي نړۍ پورې يې اړه درلوده ، حالات ډیر زیات خطرناک وو . د عربي هیوادونو نه د کمونیستو ګوندونو استازي مسکو ته په وررسیدو وو ـ د خالد بکداش غوندې خلک ، چی د سوډان ، عراق او نورو عام قتلونو نه تښتیدلي وو ـ هغوی ټولو اوس دا دعوه کوله چی تحلیل يې صحیح را ووت ، په بورژوازۍ باندې تکیه کول رښتیا په ناکامۍ تمامه شوه . زه فکر کوم دوی په شوروي کی د ننه ډیر داسي عوامل وموندل چی د دوی له نظر سره يې سمون خوړ . خو د تل په څیر ، د شوروي مشرتابه د یو ستر قدرت په توګه او هم د نړیوال انقلاب د مرکزي دفتر او کوربه په توګه خپل رول له نظره نه غورځا وه . د یو انقلابي طاقت په توګه په دی کی شک نشته د شوروي اتحاد له پاره د ټولو نه د هوښیارۍ لاره دا وه چی د متخصصینو د معاملي ناکامۍ ته لږ اهمیت ورکړي ، داسی وښيي چی د دښمنو عربي حکومتونو له خوا دوي د شاله خوا په ملاکې په چاقو وهل شوي ، او د دې پرځای بلـه اسانه لاره ونیسي ـ یعني د سیمه ییزو کمونیستو ګوندونو ملاتړ ته مخه کړي .

خو د شوروي په مشرتابه په تیره بیا په پوځ کی ډیر داسی کسان وو چی ایډیالوژۍ ته يې ډیر لږ اهمیت ور کاوه ، د یو ستر قدرت په توګه ورته

د شوروي اتحاد رول ډېر مهم ښکاريده . دوی احساس کاوه په منځني ختيځ کې بايد په هره بيه چې وي خپل دريځ وساتي ، ځکه د دې سيمې ستراتيژيک موقعيت او پوځي حالت ، سمندر ته د اوبو لارې ، د تيلو ذخيرې او برسيره پردې د دوي د سياسي وقار د ساتلو د پاره دا سيمه ډېر اهميت لري . نتيجه دا شوه لکه يو جوارګر چې جواري بايللي وي ، شوروي اتحاد پريکړه وکړه خپل دا وونه دوه برابره کړي . پوځ په تيره بيا ګريچکو په سياسي بيرو کې په پرله پسې توګه داسې استدلال کاوه چې له دې ځايه د وتلو اسانه لار نشته ، او عربي هيوادونو ته بايد د پوځي مهماتو د تيارولو اندازه زياته شي . دوی له دينه ويره درلوده چې عربان د شوروي اتحاد سره د دوستۍ او ملګرتيا په هکله اندېښمن دي ، او د امريکايانو سره مخامخ خبرو کولو ته يې خوښه کيږي . عربو ته بايد پوره وسلې ورکړل شي ترڅو د جګړې خطرونو ته تيار شي ، داسې استدلال جاري ؤ . که داسې کار وشي ، کيدې شي عربان بريالي شي ، د دوی بريالیتوب د شوروي د وسلو پورې تړلی دی . که دوی مغلوب شي ، يا جګړه داسې حالت ته ورسيږي چې ونه ګټله شي ، بيا هم دا د شوروي اتحاد مسؤليت دی چې د جګړې وروسته د حالاتو د بيا عادي کيدلو سره مرسته وکړي .

دا خبرې جاري وې ، مصر ته په کراره کراره د هغو سامانونو را رسيدل پيل شول چې سادات يې تل په غوښتنه ټينګار کاوه او ډېره موده انتظار يې ورته ايستلی ؤ ، د دې سامان يوه زياته برخه په هغه تړون پورې اړه لرله چې ناصر د مرګ نه لږ وړاندې په مسکو کې د شوروي سره لاس ليک کړی ؤ . سام - ۳ ، سام - ٦ ميزايل ، د الوتکو او ټانک ضد عصري وسلې (سټريلاس او ملوتکاس) ، د ماوراء بنفش وړانګې لرونکي ټانکونه ، د پلونو سامان ، دا ټول شيان د مصر سمندري بندرونو ته په لويه پيمانه را رسيدل پيل شول. داسې وه ، لکه سادات چې وويل ، ټول نلونه را خوشي شول . هغه زياته کړه ، 'داسې ښکاري ، لکه چې دوی ما جګړې ته ورټيل وهل غواړي' .

زما په فکر هغوي همداسې وکړل . رښتيا زه باور لرم ، د برژنف په ملاتړ پوځ ، غوښتل د دې امکان برابر کړي چې مصر په يوه محدوده جګړه لګيا کړي . د ۱۹۷۳ په لومړيو کې شورويان په دې پوي شو چې په سياسي جنګ کې يې ماته خوړلې ده ، کيدې شي په پوځي جګړه کې خپل بايللی وقار څه ناڅه بيرته ترلاسه کړي . دوی عربو ته د جنګ کولو ښوونه نه کوله ، خو هغوي ته يې په پوره اندازه وسلې برابر ولې ، د دې د پاره چې د جګړې کولو مفکوره

پیاوړي کړي ، په تیره بیا له دې وروسته چې په سیاسي او دپلوماتیکي ډګرونو کې د پرمختګ ټولې لارې بندې شوې .



د ټولو نه زیات دا وخت په عربي نړۍ کې سیاسي انډول د عنعنوي او محافظه کارو ځواکونو په تیره بیا د سعودي عربستان په لور دروند شو . دا یو داسې پرمختګ ؤ چې هیڅوک ورته تیار نه ؤ . په پنځوسمو او شپیتمو لسیزو کې داسې ښکاریده چې د وخت په تیریدو سره به د عربي نړۍ پخواني عنعنوي رژیمونه په تاریخ کې ورک شي . په مصر، عراق ، یمن او لیبیا کې شاهي حکومتونه له منځه تللي وو . د اردن او مراکش ځوانان پادشاهان ډیر کمزوري وو . مشران محافظه کار سیاستمداران لکه نوري سید ، شکري کواتلي ، اسمعیل الازهري او فرحت عباس له سترګو پناه شوي وو . هرځای کې ځوانان انقلابي مشران په قدرت کې وو ، اوحتی یې قدرت ته د رسیدو په حال کې . هغه پخواني واکمنان او د حکومت پخواني شکلونه که اوس د حجاز په تاپو کې په قدرت کې پاتې وو هغه د دوی د جغرافیوي بیلوالي له امله کنټرولیدي شي . هغوی د پیښو د اصلي کربښې نه بهر پراته ښکاریدل ، او داسې ګومان کیده ، که یوځل د شلمې پیړۍ ربښتیني قوتونه د دوی سره مخامخ شي ، د دغو رژیمونو د ژوند ورځې به د شمیرلو وړ شي .

د ۱۹۷۰ د لسیزې په پیل کې داسې څرګنده شوه چې دغه فرضیې غلطې دي. شلمه پیړۍ د سعودي عربستان غوندې هیوادونو سره د بدلې په نیت مخامخ شوه ، ځکه چې دا هیواد د هغو منرالونو یوه لویه منبع شوه چې د شلمې پیړۍ ژوند او د عصري تمدن بنسټ پر هغوی ولاړ ؤ ـ تیل ـ خو تراوسه د دې پرځای چې دغه پخواني رژیمونه کمزوري او له منځه ولاړ شي ، د تیلو ثروت دوی نور هم پیاوړي کړل . برسیره پردې د تیاو له لارې په نورو عربي هیوادونو کې د دوی نفوذ او قوت نور هم زیات شو . د دې مطلب ضرور دا نه دی چې ګوندې دوي خپل سیاستونه پر نورو منل ـ حتی دغسې خامې او بې وخته هڅې د ناکامۍ سره مخامخ شوي ـ خو په څرګنده توګه اوس دوی په داسې یو دریځ کې وو چې نظریاتو ته یې په ډیرې پاملرنې سره غوږ نیول کیده .

ناصر لا ژوندی ؤ چې سعودي ورته ویلي ؤ ، دوی د ده سره نوره مرسته ځکه نه شي کولای چې ده د ملګرو ملتونو ۲۴۲ نمبر پریکړه لیک منلی دی . فیصل پادشاه ورته ویلي ؤ ، «که تا دغه پریکړه نه وای منلې او د عمومي جهاد

اعلان دې کړای وای ، مونږ به تا ته هر څه درکړي وو، . خو اوس دوي ټولو د خبرو له لارې د يو آواري پلوي کوله ، او د دغسې يو استدلال انګازې تل له واشنګټن نه اوريدل کيدې . د واشنګټن او رياض نه رښتيني ګيلي دلته په مصر کې د شورويانو د شته والي نه راپورته کيدلې . په تيره بيا سعودي عربستان د کمونيزم سره د هر ډول معاملې او نژديوالي نه ډيره سخته کرکه کوله . په دې کې شک نشته ، د روسي متخصصينو په شړلو سره ، سادات د دوی په سترګو کې د پاملرنې وړ بريالیتوب او اعتبار ترلاسه کړ ، خو دا کافي نه ؤ .

د ۱۹۷۳ کال په فبروري کې ، په کينيتيکټ کې په يو شخصي کور کې د پټو خبرو له لارې هنري کيسينجر د امريکې دريځ د مصر د بهرنيو چارو وزير حافظ اسمعيل ته ښه روښانه کړ . هغه ته وويل شول چې مصر به دې ته پرې نښودل شي چې امريکا او روس سره په خپلو منځوکې په جنګ واچوي . کيسينجر وويل : مونږ داسې لارې لرو چې ځانته معلومه کړو تاسې روسانو ته څه وايي ، او که مونږ پوی شو چې تاسې مونږ غولوئ، اغيزه به يې ډيره خطرناکه وي، .

امريکايانو د اسرائيلو سره ډيرې مهمې اړيکې درلودلې ، خو هغوي همدارنګه په عربي نړۍ کې ژوندۍ ګټې لرلې . که د عربو او اسرائيلو لانجه اوراخلي امريکا به تقريباً د داسې غم سره مخامخ کيږي چې د زغم تر اندازې به اوړي . يواځينۍ لاره چې د دغسې يو حالت د پيښيد مخنيوی وکړي شي داده چې لانجه بايد آواره شي . د دې خبرې ويل ترکولو ډير آسان ؤ . خو د آواري د راوړلوله پاره لومړۍ قدم دا ؤ چې د جنګ د نښتلو امکانات له منځه يوسي . ددې له پاره به د روسي متخصصينو له شړلو وروسته د روسي وسلو د ليږي کولو فکر وشي . په دې کې شک نشته چې په ۱۹۷۳ کې مصر او سوريې ته د شوروي د وسلو د کودامونو راوړلو کيسينجر همغومره انديښمن کړ لکه څومره چې د روسي متخصصينو شته والي ځورولی ؤ .

نو حالات د اکتوبر د جنګ په لور وړاندې لاړل .

# د اکتوبر جنګ

په دې وروستیو کلونو کې به د ۱۹۷۳ کال د اکتوبر د جنګ په څیر ډیر لږ شمیر داسې جنګونه شوي وي چې په دې سویه یې د بیرته ګرځیدلو اغیزه کړې وې . دې جنګ په منځنې ختیځ کې د قوا وو انډول بدل کړ ، او د لوېږې ځل له پاره یې د «تیلو د وسلې» په راپارولو سره د لویدیځو ، اسیا او د افریقا د هیوادونو پر اقتصاد ډیره ژوره اغیزه وکړه .کیدي شي دې جنګ تردې هم زیاته اغیزه کړې وای اوښې نتیجې یې را ایستلي وای که چیرې د مصر او سوریې پوځونو لومړني بریالیتوبونه ترلاسه کړي وای . خو پوځي بریالیتوب عربان وغولول ، او چې یوځل داسې وشوه بیانو چې دوی د سیاسي بریالیتوب لټونه کوله دا هم په هماغه اندازه غولونکې شوه .

که څه هم د اکتوبر د جنګ نه وروسته د عربو او اسرائیلو د پاره هیڅ شی هم د پخوا په شان نه ؤ ، نه د هغوي او نه د هغوی ترمنځ اړیکو کې ، د شوروي اتحاد د پاره هم هیڅ شی د پخوا په څیرنه ؤ ، او د عربو سره یې په اړیکو کې هم هر څه بدل شوي وو .

دا وروستي تر ټولو زیات اریانونکي پرمختګونه وو ، او دا ټول داسې شیان وو چې د جنګ د اور د بلیدو وروسته یې هیچا هم اټکل کولای نه شو . زما په فکر روسان د لومړیو ورځو په نتیجو باندې هم اریان او هم خوشاله وو . هغوی په دې بیخي باور درلود چې د سویز دکانال نه پورې خوا ته برید خامخا کیدونکی ؤ - هغه وخت چې شوروي مشاورین په مصر کې وو د کانال نه د تیریدلو د پاره ډیر تمرینونه او تطبیقات شوي وو - خو هغوی خبر نه وو (او نه یې غوښتل خبر شي) چې د عملیاتو په جزئیاتو او وخت ځان پوي کړي . هغوی ډیرې عصري وسلې ورکړې وې چې د برید ټول امکانات یې برابر کړي وو . خو هغوی پوهیدل چې برید کول پوره خطرناک دي او کیدي شي ډیرې بدې نتیجې ورکړي .

د عربو د پوځي بریالیتوب د پاره د ډیرو نورو په څیر روسان هم په دې

پاتې هیواد دي . دوي غواړي پوه شي چي چیرې ستاسي له هیواد سره کومې اقتصادي او پوځي مرستې کړي دي .

٥ ـ له هغه ځه نه چي ستاسي په کورنیو چارو کي د دوي لاس وهنه بلل کیدې شي بدمه وائی . هغوي په مشورو او اخطارونو ورکولو کي آزاد دي ستا په هیواد کي یوه کودتا روانه ده ، ستا پلانی او پلانی ملګري مرتجع دي ، باید اعتماد پرې ونه کړي ، او داسي نور . (یو وخت پوډګورني ناصر ته وویل چي ما د الاهرام له مدیریت نه لیرې کړي خو مونږ یوه هم دا خبره د هغه پرضد راتپنګه نه کړه) .

٦ ـ په یاد ولری چي شورویان د خپل ځان په هکله د هر ډول معلوماتو له خپرولو سره ډیر حساسیت لري . دوي د هغو اسرارو او رازونو را ښکاره کول نه شي زغملاي چي د سوداګرې په معاملو کي پرې ټینګار کوي . دوي په دې خبره ډیر خپه کیږي چي د دوي سره د خبرو اترو رپوټ د یو دریم سړي له خوا دوي ته رارسیږي . (د مثال په توګه، دوي په دې ډیر ناراضه وو چي ورته معلومه شوه مصریانو د سوریې مشر ته د هغه کمښت ویلي ؤ چي شوروي د وسلو په خرڅولو کي مصر ته ورکړي ؤ . یواځي د خبر په بڼه د اسرارو خپرول بدبولي . یوځل برژنف مانه پوښتنه وکړه چي پلانۍ خبره دي ولې په الاهرام کي لیکلې وه، ما ورته وویل، د خپلو لوستونکو له پاره وه. هغه وویل چي په کار نه دي لوستونکي په دې ټولو شیانو خبر شي . د شورویانو په فکر هغه ځه کافي دي چي په پراوډا کي خپریږي . د خپرونو اصلي هدف د کمونیزم او انقلاب له پاره تبلیغات دي . برژنف به چي ما سره خبرې کولې ، ما ته به یې ګسپودین هیکل وایه، خو چي کله به یې را سره ډیره مینه ښکاره کوله نو راته به یې ګسپودین پروپاګنډ ، غږ کاوه . په دې به ماته دومره کینه راتلله چي د خپل سرویښتان وشکوم ، خو هغه ته دا زما در ناوې ښکاره کیده) .

٧ ـ د سیمه ییزو کمونستو ګوندونو د موقف په هکله د شوروي د مشر تال به حساسیت کم مه شمیرئ . دوی به خپله د هغو ګوندونو سره مستقیمې اړیکي نه لري ، خو په هغوي باندي په هر ډول تیري کولو خپه کیږي . هغوي به په رسمي ډول هیڅکله هم دا ګیله ونه کړي چي ستاسي په هیواد کي د کمونست ګوند سره بده ګوزاره کیږي ، خو کیدې شي کومه میلمستیا کي درته د غسي یو ځه ووائی لکه ، تاسي ولې خپلو کمونستانو سره داسي کوئ ؟

٨ ـ دوي ته د تحقو په ورکولو کي پام کوئ . دوي ته هیڅکله هم

کې ناکام شوي وو ، دوی ټولو د اسرائیلو پوځي قوت زیات او د مصر او سوریې د پوځونو د جنګ روحیه کمزورې شمیرلې وه . دا پوځونه شپږ کاله د ماتې وروسته په شرم او تیټ سترګی کې اوسیدلي وو . هغو د پخوا په څیرلږ پوځونه روزلي وو ، میاشتې او کلونه وروسته یې هم ډیر لږ پرمختګ کړی ؤ . اوس د دوی وار ؤ چې خپل زړه ورتوب او مهارت ثابت کړي ، او دا یو داسی چانس ؤ چې هر منصبدار او پوځي په ډیرې خوشالی سره تري ګټه اخیستل غوښتل . نور عوامل چې د اکتوبر جنګ یې د عربو اسرائیلو د پخوانیو جنګونو نه بیلاوه او د روسانو اوهر چا د ارپانی سبب شو ، د ډیر احتیاط نه ډک پلانونه وو چې د ډیرې اوږ دې مودې راهیسې پرې دوو عربي پوځونو په ګډه کارکړی ؤ ، په دوو جبهو کې یې د برید تیاری نیولی ؤ . په پوره بریالیتوب سره یې خپل ټول پلانونه په کار اچولي وو ، او په هرځای کې یې دفاعي وسلې لکه سټریلاس او مالوتکاس د بریدونو د هدفونو له پاره په کار اچولې وې .

نو کله چې د کانال نه د بریالي تیریدلو او د ګولان په لارو کې د سوریې د پوځونو د بریالي پرمختګ خبر را ورسید روسان تر اندازې زیات خوشاله شول د دوی د دوستانو په لاسو کې د دوی وسلو د بریالیتوب ورځ راوسټې وه . سادات په قاهره کې د شوروي سفیر ته وویل ، 'برژنف ته ووایه ، دا د شوروي وسلې وې چې د کانال نه د تیریدو معجزه یې وکړه' . د روس سفیر ولادیمیر ویندګرادوف لومړی سړی ؤ چې سادات ورته د قوماندې د خپل پټ ځای نه په لسم لمبر مرکز کې د کانال نه د تیریدو او د بارلیف په کرښه باندې د برید کولو خبر ورکړ . د ویندګرادوف مبارکی ډیرې د زړه له کومې وې او هم یې مسکو ته د دې بریالیتوب خبر تیرکړ . د مسکو نه هم ډیرې د صمیمیت نه ډکې مبارکی را ورسیدې . پخواني مخالفتونه هیر شول ، اوسنیو بریالیتوبونو هغه ټول ومینځل .

څنګه چې د هغوی لومړنی هیلې ډیرې غوړیدلې وې ، روسانو سره دا ویره وه ، کیدي شي دغه بریالیتوبونه د عربو له لاسه ووځي ، یا کیدي شي په ناکامی بدل شي ، ربښتیا چې ډیر سخت وو . د سه شنبې په ورځ د اکتوبر په ۹ مه د جنګ د پیل کیدو نه یواځې دري ورځې وروسته ، په قاهره کې د روس سفارت د پوځي وضعیت په هکله خپله اندیښنه څرګنده کړه ، په تیره بیا د سوریې په جبهه کې ، دوی په دې ویره کې وو چې کیدي شي اسرائیل د سوریې پوځونه

د دې جبهې نه ترشا کړي او خپل ټول زور د مصر په جبهه کې په کار واچوي . د روسانو خوښه داوه چې د مصر پوځونه د سینا دښتې ته ورتیر شي ترڅو په سوریه باندې فشار لږ شي . همدارنګه دوی د جنګ سیاسي برخې ته ډیره پاملرنه کوله .



د جنګ د پیل نه روسانو د سیاسي نتیجو په هکله څرګند نظر درلود . هغوي په دې باور درلود ، چې دا جنګ به دوی ته په عربو کې د استوګنې ځاي پیدا کړي ، دا کار به بیله دې چې د امریکې سره یې اړیکې خرابې شي ، وشي . څکه اوس دیتانت د شوروي د بهرنۍ پالیسۍ کونجي شمیرل کیدله . په مسکو کې د دواړو سترو قدرتونو ګډې ګټې دومره مهمې شوې وې لکه د دوی ایډیالوژیکي او د ځمکو د لاندې کولو سیالي .

کیسینجر چې په دې وروستیو کې د بهرنیو چارو وزیر شوی ؤ ، په لومړیو کې د مصر او سوریې په برید ډیر ناراضه ښکاریده ، ده داسې ګومان کاوه چې عربو او روسانو داوړو دی غولولی دی . د لومړیو ضربو وروسته د دیتانت تخنیک ښه اغیزمن کار وکړ . ‹ګرم تیلفون لاین› په کار واچول شو ، د کیسینجر او ډلې یې په مسکو کې ښه هر کلی وشو او په حقیقت کې په یوه پریکړه لیک باندې په ګډه کار وشو چې روسان به یې د امنیت شورا ته وړاندې کوي .

د مسکو خبرې اترې په خورا ښه او سمه توګه پرمخ لاړې . یوې خوا هم په څرګنده توګه په دې اعتراف ونه کړ ، خو امریکایانو او روسانو دواړو د یو ډول هدفونو غوښتنه او ملاتړ کاوه . روسانو د عربو بریالیتوب غوښت ، خو داسې یو مطلق بریالیتوب نه چې امریکا مداخلې کولو ته مجبوره کړي ، او د اسرائیلو پرځای او وکالت د یوستر طاقت لاس په مستقیمه توګه سیمې ته را اوړد کړي . امریکایانو د اسرائیلو سره مرسته کول غوښتل ، خو په دومره اغیزمنه توګه نه چې عربان بیا د ۱۹۶۷ کال په څیر سپک شي . یوې خوا هم نه غوښتل ملګري دې یې کمزوري شي ، خو یوې خوا دا هم نه غوښتل چې بله خوا دې د منځني ختیځ په چارو کې په ژوره توګه را ننوځي . امریکایانو او روسانو په دې ډول ګډې ګټې درلودلې چې د یو ولاړ جنګ او د یوې سازشي سولې له پاره یې کار کاوه .

البته د ویرې وخت هم ؤ ، کله چې څرګنده شوه د سترو قدرتونو ترمنځ همکاري ګډه وډه شوه ، او د کیوبا په څیر لانجه کیدي شي دلته هم را پیدا شي .

دا د اور بند نه دري ورځي وروسته د هستوي جنګ د پاره د امریکې د اخطار نه را پیدا شوه. ما دا ځیني حسابونـه بل چیرې بیـان کـړي دي ، چی داسې نتیجې یې راووتې . یو شی چی په عمومي توګه ځرګند نه شو دا وُ چی د اخطار اصلي عامل د سعودي پاچا فیصل وُ .

تاکل شوې وه اور بند د اکتوبر په ۲٦ مه تطبیق شي ، خو اسرائیلو اراده نه درلودله داسې وشي ، او د خپلو ځوځي قوتونو زیاتوالي ته یې دوام ورکړ ، د کانال په دواړو خوا وو کی په ټولو طریقو چی کولای یې شول خپل سنګرونه پیاوړي کړل . سوریایان هم په ډیر خطرناک حالت کې وو ، او سادات او حافظ ـ اسد دواړه د خپلو دوستو هیوادونو نه په پرله پسې توګه د مرستو د غوښتلـو په حال کې وو .

د اخطار پـه هکلـه تشریحات پـه یو نـوټ کی د برژنف لـه خوا د امریکی حکومت ته د اکتوبر د ۲٤ می د چارشنبې د ورځې په ماښام لیـږل شوي وو ، په هغې کې یې ټینګار کـړی وُ ، کـه اسرائیل اور بند منلـو تـه تیار نـه وي ، امریکایان او روسان باید په ګډه کار وکـړي او دا اور بند پري پـه هر شکل چی وي ومني ، اوکه ضرورت شي د دې د پاره له زوره هم کار واخلي .که امریکایان د داسی کار سره مینه نه لري ، برژنف وویل ، چی روس بـه په ځانګړې توګـه دا کار وکـړي . دا ریښتیـا سختې خبرې وې ، خو نـور عوامـل هم وو چی د امریکایانو پریکړه یې اغیزمنه کوله . یو خو د سادات او اسد ترمنځه د پیغامونو تبادله کول وو ، چی امریکایانو ثبتـول ، کیـدي شي غلطـه مفکـوره یې را پیدا کړې وي چی ګوندې د سوریې حکومت له مسکو نـه د جنګي ځوځونو غوښتنه کوي . بل د پاچا فیصل منځګړیتوب وُ .

د قاهرې د جمهوري ریاست د مانۍ او پـه ریاض کی د سلطنتي مانۍ ترمنځ د مخابراتو یو ځانګړی لاین پرانیتـل شو . پـه قاهـره کی د سعودي عربستان یو ارتباطي مامور یوځل دا لاین له دې ویرې نه په کار واچاوه ، ریاض ته یې خبر ورکړ چی نژدې ده شورویان په ډیر زیات شمیر کی منځني ختیځ تـه رانتوځي . فیصل ته چی دا پیغام ورسید هغه سمدلاسه د نکسن سره تماس ونیو ، هغه یې خبر کړ چی د شوروي اوه فرقې ځوځ را روان دی ، هغه وویل چی شورویان یو ځل بیا منځني ختیځ ته په ډیر قوت سره را روان دي . ریښتیا خو دا ویرونکی راپور وُ چی نکسن یې د هستوي جنګ اخطار ورکولـو تـه مجبور کـړ ، دا بیا وروستـه د برژنف د خبرو نه ځرګنده شوه چی د 'زبردستو آوازو' پـه وړانـدې مسؤلیت

د اخطار په بڼه رابښکاره شو .



باید وویل شي چې د اکتوبر د جنګ په اوږدو کې د عربو په وړاندې د شوروي دریغ ډیر ښه ؤ . دوی د زړه له کومي د عربانو په هدفونو کې ځانونه شریک ښودل ، او د مصر او سوریې سره یې هرډول مرستې وکړې ، په سیمه ییزه او نړیواله سویه ، په سیمه ییزه توګه یې په الوتکو کې ورته وسلې او مهمات راوړل ، او په نړیواله سویه یې د امریکایانو په وړاندې او د ملګرو ملتو په تولنه کې د عربو د مدافع وکیل په شکل عمل کاوه .

د هغوي د عملي پاملرنې یو مثال د اور بند نه وروسته ولیدل شو ، کله چې د کانال نه تیریدل جنرال شارون ته معلومات وشو . رئیس سادات ته په قاهره کې د روس د سفیر له لارې خبر را ورسید چې مرکزي کمیټې پریکړه کړې ده مصر ته ۲۵۰ ټانکونه بخشش ورکړي ، او هم دوي نور حکومتونه تشویقوي چې د مصر سره دغسې مرستې وکړي . په حقیقت کې البته ډیرو عربي هیوادونو د هر ډول جنګي سامان الاتو د راکولو له پاره هر ډول تیاری ښودلی ؤ . الجزایر د عملې سره د ټانکونو یو غونډ را ولیږه ، او لیبیا هم د ټانکونو یو غونډ ، خو یې له عملې . یواځې عربي هیوادونه نه وو چې مرستې برابرې کړې . یوګوسلاویې مصر ته د ټانکونو یو غونډ راولیږه ، البته دا هم طبعاً بیله عملې . خو د روس او مصر ترمنځ اړیکې چې د جنګ له برکته ډیرې سره نژدې شوې وې ، د جنګ د آواز د چوپ کیدو نه ډیر وخت وروسته هماغسې ژوندۍ پاتې نه شوې .

# داوونه دوه برابره کړه او وبایله

ځکې له دې نه چې جګړه ودریږي د عربو په جبه خانو کې تیل د ټانکونو او الوتکو نه په اهمیت کې وړاندې شوي وو . د شورویانو په شمول لږو خلکو داسې فکر کاوه چې د دې په سودا کړه باندې به په اتفاق سره موافقه وشي او یا به تري په ډیره اغیزمنه توګه ګټه واخیستله شي . خو اوس د تیلو د وسلې اغیزمنتوب بې اندازې ښکاریده . هر ځای کې خلکو په دې هکله چرتونه وهل او په لوړه سویه خیالونه یې زغلول ، عربان به په دومره تیلو څه کوي ، دا به څنګه د تیلو وړو هیوادونو ته رسوي او دومره ګټه به چې له دې نه په لاس ورځي څنګه هضموي . مبصرینو په عربو باندې د یو ستر طاقت په توګه تبصرې کول پیل کړل . داسې اوازې وې چې دوي به د اروپا او امریکې د صنعت نژدې د هرې برخې را نیولو ته لاره پیدا کړي . څه شي دوی د جنرال موټر د کمپنۍ او د لندن د ښار د کنټرول کولو نه منع کولای شي ؟ دا هیڅ نه معلومیده .

دغو ټولو چرتونو بیرته عربي نړۍ ته خپله لاره وموندله . دې د یوې بې اندازې زیاتې خوشبینۍ د نظر سره ګډو د عربي نړۍ د ډله ییزې خبر رسونې په وسایلو کې د جنګ د پاره داسې تبلیغات کول او هر سړي او ښځې ورته په خوشالۍ سره تیاری ښود . هغوي د جګړې د پاره د هر ډول قربانیو زغملو ته تیار وو ، خو د خوشالۍ په نوې زمانه کې خبرې ټولې د بریالیتوب او دولت کیدلې ، قربانۍ په کراره کراره خپل ځای پریښود .

خلکو دا هم لیده چې په عربي نړۍ کې قدرت څنګه نویو سړو ته انتقالیږي . د یو نسل کسان چې د پیښو جریان یې ترکنټرول لاندې ؤ ، په عربي نړۍ کې سیاسي خلک وو یا پوځي افسران وو ، او کله کله پوځي افسران وو چې په نظریاتي کسانو بدل شوي وو او یا داسې نظریاتي خلک وو چې د پوځي افسرانو پیښې یې کولې . په دې کسانو کې سادات ، اسد ، قذافي ، بومدین ، میشل عفلق ، صدام حسین او ډیر نور وو . دوی اوس هم ډیر وو ، خو اوس

د قدرت د دلالانو د نوي نسل د ډلې سره ګډ شوي وو ، د منځني پوړ خلکو سره ، د وسلو سوداګرانو ، نورو سوداګرانو چې د لویدیځ او ختیځ ترمنځ یې سوداګري کوله ، د پادشاهانو د دربارونو او د تیلو د کمپنیو ترمنځ لکه د کمال ادهم ، مهدي تاجر ، عدنان خاشوګي او نورو په څیر کسانو - او د پادشاهانو سره ، هغوي چې اوس په عربي نړۍ کې د سعودي عربستان د شهزاده فهد او شهزاده سلطان غوندې کسانو نه زیات قدرت درلود ؟ داسې نظر موجود وو چې ګوندې دغسې کسان په عربي نړۍ کې د ډله ییزو غورځنګونو او بنسټیزو انقلابینو په پرتله د بریالیتوب او وړاندې تګ زیات امکانات لري .

دا د اریانتیا خبره نه ده ، په دغسې بدلیدونکو حالاتو کې د مصر او سوریې نرو او ښځو داسې ګومان کاوه چې د دوی به هم په خپل ژوند کې یو څه مادي نیکمرغي په برخه شي . هغوي سختې تیرې کړې وې ، اوس د هغې اجر ته سترګې په لاره وو - چې په ګیډه ماړه شي او په ښوکورونو کې واوسیږي . البته د دې شیانو د را نیولو د پاره د پیسو پیدا کول په کار ؤ ، خو چا به دا خبره کړې وای چې عربان پیسې نه لري ؟ داسې ویل کیدل ، عربان دومره قدرت لري چې ټوله نړۍ د قحطۍ سره مخامخ کړي ، رښتیا به وه ، خو آیا د خپلې ګیډې د مړولو د پاره یې پوره خواړه درلودل ؟ نو تیلو تولیدونکو هیوادونو ته سترګې راواوښتې . د تیلو د را ایستلو میدانونه د خلکو په سترګو کې د جنګ تر میدانونو پراخه ښکاریدل ، داسې ویل کیدل چې (دولت) لګیا دی تر (انقلابونو) وړاندې کیږي .

هغوي چې په دې کرښه فکر کاوه د روسانو له پاره یې لږ وزګار وخت درلود . هغوي لیدل ، چې روسانو یواځې وسلې برابرولی شوي ، خو پیسې نه ، او لکه هر یوه چې ګومان کاوه ، یوې خوا هم د جنګ پیل کول نه غوښتل ، په نژدې راتلونکې کې یې تري په هره بیه چې کیده ډډه کوله ، د روسانو ګټورتوب مخ په ټپاه کیدو ؤ . داسې استدلال کیده چې د عربانو له پاره به دېپلوماسي ښې نتیجې راوباسي ، او د دې مطلب دا ؤ چې عربان باید په هغو یواځینیو خلکو باندې خپله اغیزه واچوي چې په اسرائیلو باندې زور راوړي شي ، امریکایان .

په عربي نړۍ کې نوي سړي د دغه دکتورین غبنتلي مفسرین وو . دوی دا پوښتنه کوله چې امریکا په اسرائیلو باندې په زور راوړلو کې ولې زړه نازړه ده ؟ ځواب به خامخا دا ؤ چې عربانو روسان منځنی ختیځ ته راوستي وو . نو عربان باید باوري کړي چې د روسانو اغیزمنتوب له سیمې نه ایستل شوی دی ،

او ځانونه داسې ونبودلای شي چې دوی په سیمه کې د امریکایانو د کټو ساتونکي دي ، او په اسرائیلو پورې د امریکې تړل له دې وروسته ضروري نه دي .



د مصر د بهرنیو چارو وزیر اسمعیل فهمي واشنګټن ته ولیږل شو او قاهرې ته یې د کیسینجر د راتللو ترتیبات ونیول . د بهرنیو چارو د وزیر تر را رسیدو وړاندې رئیس سادات د خپلو یو شمیر لوړ رتبه مامورینو او مشاورینو سره مشورې وکړې چې په راتلونکو خبرو کې به څوک د مصر نمایندګي وکړي . زما احساس دا ؤ چې جمهور رئیس خپله باید په خبرو اترو کې په مستقیمه توګه برخه وانخلي، ځکه دی د دولت مشر او د وسله والو پوځونو ستر قوماندان ؤ ، او په دې ډول د دې انتظار کیده چې دی به آني تصمیمونه ونیسي . د بلې خوا نه به ګولداامایر چنې وهي او کار بـه ټالوي ، په دې پلمه چې د خپلې کابینې د غړیو سره مشورې کول او د مخالفینو د نظریاتو نه ځان خبرول غواړي او داسې نور . سادات بـه د کار د ټالولو د پاره داسې کوم دلیل نـه لري . ما فکر کاوه د ده له پاره په کار ده پـه نامه د مصري هیئت مشر وي ، خو د خبرو په یوه غونډه کې هم باید پخپله برخه وانخلي . کولای شي دا غونډې خپلو دریو نژدې ملګرو تـه پرېږدي ـ د جمهور رئیس مرستیال ډاکټر فوزي ، د جمهور رئیس د امنیتي چارو مشاور حافظ اسمعیل او اسمعیل فهمي تـه ، که دریواړه زیات وي ، له دوی څخه یو د خبرو د یواځني مسؤل په توګه ټاکلی شي . البته په هر صورت کې به وروستی پرېکړه خامخا جمهور رئیس پخپله کوي .

خو سادات ته پـه خپل فکر داسې ښکاریده چې دا د کار ښه طریقه نـه ده . هغه چې څه غوښتل د کیسینجر سره مخامخ په خپله خو له خبرې کول ؤ ، د هغه استدلال دا ؤ چې که برژنف د کیسینجر سره مخامخ پـه خپله خو له خبرې کولای شي ، نو سادات یې هم کولای شي .

کیسینجر د نومبر په ٦ مه قاهرې ته راغئ . هغه اوسیسکو سبا په لس بجې د رئیس سادات ، حافظ اسمعیل او اسمعیل فهمي سره وکتل . عکاسانو خپل کار وکړ او بیا لاړل . بیا دا نور هم ووتل ، او نژدې درې ساعته سادات او کیسینجر دوه په دوو یواځې خبرې وکړې .

زه ګومان کوم چې په دغو درې ساعتو کې پـه منځني ختیځ کې د شوروي اتحاد برخلیک مهرولاک شو . کتنه چې پیل شوه ، کیسینجر خپل بکس پرانیت چې څـه سندونه راوباسي . سادات ترې پوښتنه وکـړه ، 'څه کـوې ؟' 'نه ، نه ،

پرې يې پرېږدم . نه غواړم په دې باندې اوس په تفصیل سره خبرې وکړم ، خو ګوره ـ زه پوهېږم ته د ستراتيژۍ يو سړی يې ، او زه هم یم . راځئ چې وګورو په يوه ګډه ستراتيژۍ باندې موافقې ته رسيدي شو ، که نه» .

او دا بالکل هماغه څه وو چې دوی وکړل ، د دوی ګډه ستراتيژي داوه چې روسان د منځني ختيځ نه وشړي . کله چې په يوه بجه ، حافظ اسمعيل اوسيسکو بيرته کوټې ته راوغوښتل شول ، کيسينجر يوځل بيا خپل بکس پرانيت او د شپږو ټکو د اوربند يوه موافقه يې ترې را وايستله چې د واشنګټن نه يې د ځانه سره راوړې وه . سادات لومړنی ټايپ شوی نقل ييله دې چې يوه کليمه يې هم بدله کړي قبول کړ .

د ابا ايبان د خولې نه چې دا وخت د اسرائيلو د بهرنيو چارو وزير ؤ ، د اسرائيلو صدراعظمې ګولداماير د شپږو ټکو د داسې يو پروګرام پيشنهاد کړی ؤ چې د مصر او اسرائيلو د کتنې له پاره د مصر غوښتنه پکې منل شوې وه ترڅو ژر تر ژره د بنديانو د تبادلې کار سرته ورسوي . کيسينجر او ميرمن ماير په ډېره سړه سينه را وړاندې شول، په داسې حال کې چې د امريکې د بهرنيو چارو وزيرګومان نه کاوه قاهره بـه دغه ټکي ومني .... (وروسته له دې چې شپږ ټکي د مصر له خوا ومنل شول) کيسينجر په ډير درناوي سره دې خبرې ته غاړه کيښودله چې د امريکا پـه پرتله اسرائيـل د مصر په دريځ باندې ځرګند او روښانـه پوی شوي وو» .

رښتيا خبره خو داده چې د سادات له پاره د ګولداماير ـ کيسينجر د «شپږو ټکو ، سند» په نسبي ډول ډير لږ اهميت درلود . څه شي چې هغه ته ارزښت درلود دا ؤ چې د کيسينجر سره د کار د پيل ښې اړيکې پيدا کړي ، هغه چې د ده په فکر د خبرو په بهير کې د کونجي حيثيت درلود . لکه هغه چې ما ته ووېل ، «دا يواځنی ژوندی سړی دی چې دغې ښځې (ګولداماير) تـه ويلی شي ، وځه ، او هغه به مجبوره وي چې وځي» .

زما دومره باور نه ؤ چې کيسينجر به دا ټولې ضروري نتيجې راوباسي . سره له دې چې شخړه اوس د سيمه ييزو ځواکونو د وسله والې لانجې نه پورته شوې وه او د سترو قدرتونـو ترمنځ پـه ډيپلوماتيکې مبارزه بدله شوې وه ، داسې ونـه شوه چې پرېښږو باندې سيمه ييزو طاقتونو خپل اغيزمنتوب بيخي له لاسه ورکړ . پـه دې سترګې نـه شم پټولای ، د نورې نړۍ ډير خلک پـه دې عقيده وو چې

مصر دا وخت د شوروي اتحاد تر کنترول لاندې ؤ . هماغه وخت چې سادات د مصر نه د روسي مشاورينو د شړلو پر پروګرام کار کاوه ، ما داسې ګومان کاوه چې اسرائيل به اوس د امريکايانو د فشار په وړاندې ځانونه ټينګ کړي ، ځکه نکسن اوس د واټرګيټ په لانجه کې ډوب شوی ؤ او د ده تمولې اداري خپل رښتيني صلاحيت او واک بايللی ؤ .



کيسينجر د سادات پر عکس العمل اريان ؤ ، خو خوشاله ښکاريده ؤ خو هغه په څرګنده توګه د هغې ستراتيژۍ اعلان نه شو کولای چې مصر او امريکې په ګډه عملي کوله ، دې کار به د روس او امريکې د مخامخ کيدلو او نښتلو خطر پيښن کړای وای . دا به ډيره ښه وي چې د ستراتيژۍ عملي برخه عربو ته پريښودله شي ، او دا هغه څه ؤ چې په ژنيو کې وشول ، هلته چې د ۱۹۷۳ کال د دسمبر په ۲۱ مه د منځني ختيځ د سولې کانفرنس پرانيتل شو . البته روسان هلته وو ، د امريکايانو سره په ګډه د کانفرنس مشران ، خو هغوی ځان د داسې يو حالت سره مخامخ و موند د دې پرځای چې د برخه اخيستونکو په ښه عمل وکړي ، هغوی د نندار چيانو ځای ته ورټيل وهل شول . لکه چې د هغوي د هيئت يو غړي په ډيره ترخه لهجه وويل : «مونږ ژنيو ته لاړو څو د يو واده د شاهدانو په څير عمل وکړو . خو د څه شي شاهدي چې مونږ وکړه ، واده نه ؤ بلکې يوه معامله وه !»

په ژنيو کې د امريکايانو دفتر د تلو راتلو او پرله پسې کتنو ځای ؤ ، امريکايي هيئت به تل د عربو او اسرائيلو دواړو سره خبرې کولې . روسان هم هلته وو ، خو هيڅ ورسره خبرې نه کولې . امريکايان به تل ډير صحيح او پرځای وو . دوی داسې وښودله چې د روسانو د ګډون هرکلی کوي او علاقه يې درلودله چې روسان يو اغيزمن رول ولوبوي ـ خو د خفګان خبره وه چې عربانو ټينګار کاوه له اصلي صحنې نه يې ليرې وساتي . دا ټوله معامله هغه وخت د ملنډو او مسخرو شوه چې يو روسي ډګرمن اعلان وکړ دی به د دوو کميټو په غونډو کې ګډون کوي ـ په کومو کې چې هغه البته د ګډون کولو پوره صلاحيت درلود . امريکانو وويل چې دوی په ټکي ټکي ګډون نه کوي ځکه عربانو داسې څرګندونې کړې دي چې هغوي هلته بهرني څوک نه غواړي . روسي ډګرمن ټينګار وکړ ، او ځان يې غونډې ته ورساوه ، خو تر هغې چې دی هلته

ناست ؤ ، يوه عرب هم د هيڅ شي په باره کی يوه خبره هم ونه کړه ، ټولو بې ارزښته تبصرې کولې .

روسانو داسې احساس وکړ چې د دې ټولو کارونو ملامتيا د امريکايانو په غاړه ده ، خو د دې خبرې د ثبوت او اسنادو د وړاندې کولو نه عاجز پاتي شول . په حقيقت کی د کيسينجر دريځ ډير روښانه ؤ . هغه دوه هدفونه موازي وړاندې بوتلل . په لومړي کی هغه اوس هم منځني ختيځ ته د دوو سترو قدرتونو د مخامخ کيدو د سيمی په توګه کتل ، او د ټولو امکاناتو په هکله يې چرت واهه د هر ډول داسی خطر د را پيدا کيدو مخنيوی وکړي چې روسان هلته را وړاندې کړي . په دويم کی دی د اسرائيلو د امنيت ضامن ؤ ، او د ده په فکر دا کار هغه وخت بريالی کيدي شو چې دی ډاډه شي ترڅو اسرائيل د اکتوبر د جنګ په څير نورو جنګونو کی په برخه اخيستلو مجبور نه شي . د مطلب کونجي د وسلو د برابرولو ده . که عربان د ختيځ نه د وسلو د ترلاسه کولو کار ته دوام ورکړي هغوی به خامخا بيا يو داسی حالت ته ورسيږي چې اسرائيل په وژلو او نشتوالي تهديد کړي ، خو که چيرې د دوی وسلې له لويديځ نه راشي ، دا مسئله د لږ خطر په سويه تر قابو لاندې ساتل کيدي شي . کيسينجر داسی يو حالت غوښت چې عربان او اسرائيل دواړه د مالي مرستو او سياسي ملاتړ د پاره واشنګټن ته ګوري . د يونان او ترکيي په څير ، لکه اوس چې دي ، کله کله داسی ناندرې را پيدا کيږي چې له قابو نه وځي - کيدي شي دواړه ډلې سره جګړه وکړي - خو د دوي جګړې به د امريکې او روس د مخامخ کيدلو خطر هيڅکله هم نه را پيدا کوي، د دې دواړو هدفونو په رڼا کې کيسينجر د منځني ختيځ نه د روسانو د نفوذ د پای ته رسولو پسې ؤ .

نو روسان د نومبر په ۱۱ مه په ژنيو کی په وروستيو مراسمو کی د برخې اخيستلو د پاره ورغلل ترڅو هغه موافقه لاس ليک کړي چې په تيارولو کې يې هيڅ عملي برخه نه درلودله . د دوی وسلو د جنګ امکان را پيدا کړی ؤ ، د دوی ملګرو پوځي بری ترلاسه کړی ؤ ، خو اوس ټولو خلکو د هغه سياسي قدرت په هکله خبرې کولې چې عربانو په پوره مهارت سره چلاوه . عربي خير رسونکي هم بيرون پاتې وو . دا به خامخا د روسانو د پاره ګرانه تمامه شوې وي چې په عربي نړۍ کې يې په دې ټولو حسابونو سر خلاص شي چې داسې نتايج

جواهرات مه ورکوئ. کلتوري او لرغوني شیان به دي . (ناصر چي کله خروسچف ته د سکارا د کیندنو نه راوتلي یوه کلدانۍ ورکړه ، او ورته وې ویل د دې عمر پنځه زره کاله دی ، خروسچف کلدانۍ له ځانه سره واخیستله ، د شوروي عالي غونډې ته یې ویوړه او خپلې مخې ته یې په میز باندې کیښودله).



دا د ناصر د کتاب فهرست ؤ . دا د هغه د غور او احتیاط نه ډکې هغې هڅې ښکارندوی دی چې غوښتل یې د دوو سترو ځواکونو څخه د یوه سره د تفاهم له پاره بنسټ کیږدي ، ځکه د کوچنیو هیوادونو برخلیک د دوی په پریکړو پورې تړلی دی . ددې خبرې یادونه ضروري بولم چې ما او ناصر د داسي یو کتاب په هکله خبرې په ۱۹٦٤ کال کي وکړې ، او ناصر له هغي وروسته یواځي شپږ کاله ژوندی ؤ . که چیرې هغه وروسته کله د دغه کتاب د بیا کتلو وخت پیدا کړای وای ، خامخا به یې پکې څه کمې زیاتی راوړای وای . زه د دغه بدلونو نو په هکله د گومان نه زیات څه نه شم ویلای ، ما په خپل فکر له هغه سره زما د ۱۹٦٤ کال له خبرونه دغه څه را ایستلي دي .

نه پوهیږم په شوروي کي به چا هم دې ته ورته کوم کتاب لیکلی وي چې څنګه باید دوی له عربو سره معامله وکړي . څرګنده ده هغوي ډیرې هڅې وکړې له عربو سره تفاهم ته ورسیږي خو له نا مینډۍ او خفګان نه زیات نور څه په لاس ورنه غلل ، هغوی نا کام شول . عربان هم ناکام شول . د یو 'تاریخي سازش' پرځای چې کله کله د هیوادونو ترمنځ د نظریاتو د رانژدې کولو یو عامل بلل کیدی شي ، مونږ دلته د یو تاریخي سوء تفاهم شاهدان یو.

کله چې د سیاسي بیرو هغه خیالي غونډه روانه وه چې ما ورته وړاندې په دې فصل کي اشاره وکړه ، د غریو مخي ته بنای د هغو پیښو رپوټ پروت ؤ ، او تولې هغه ستونځي یې په ژوره توګه څیړلې وي چې دغه سوء تفاهم پري اوس خاورې اړولي دي .

د ۱۹۷۷ کال د دوبي په سرکي یوه ورځ رئیس سادات د جنوبي یمن سفیر راوغوښت . ورته وېی ویل : د یمن د ساحل نه وړاندې یوه کوچنۍ جزیره ده ، غواړم د عربو د ګډې دفاع له پاره هلته یوه مصرۍ قوه ځای پرځای کړم . سفیر دغه پیغام عدن ته مخابره کړ، ژر ورته د جمهور رئیس سلیم رباعیه علي ځواب راورسید ، پکې ویل شوي ؤ ، دا امکان نه لري چې دغه جزیره د مصر په واک کې ورکړله شي. ځکه هلته شوروي متخصصین ځای پرځای شوي دي . سادات وویل:

يې را منځته کړل . رښتيا د ژنيو د کانفرس نه وروسته سادات ته د برژنف د لومړي پيغام د متن نـه د هغه د خفګان او پوخلا کيدو يو ګډ تصوير څرګنديـده . هغه وويل ، که چيرې د جنګ نـه وروسته عربو او شورويانو ښې اړيکې ساتلې واى ، نو د ژنيو د کانفرس نتيجې به د دواړو خوا وو له پاره ډيرې ګټورې واي . ده د يو بل په غند نه باندې خپل وخت ضايع نه کړ ، خو هغه د زړه له کومي خپله خواخوږي څرګنده کړه چې بايد له دې نه پند واخيستل شي ، او هغه اشتباهګانې چې شوې دي هيله ده په راتلونکي کې تکرار نه شي .



# د ستر قدرت سره د معاملې هيڅ شان نشته

د ۱۹۷۷ کال د اکتوبر په لومړۍ نيټه د امريکې او روس حکومتونو د منځني ختيځ په هکله يوه ګډه اعلاميه خپره کړه ، د نورو شيانو سربيره يې په دسمبر کې د ژنيو د کانفرنس د بيانوي کولو له پاره غږ وکړ . هنري کيسينجر چې اوس د وزارت نه ليرې کړای شوی ؤ ، د دې اعلاميې سره مخالفت وکړ . د هغه نظر دا ؤ چې د خبرو په پيل او پای کې د روسانو شته والی ښه دی ، خو نه د خبرو په منځ کې . په بله ژبه ، د هغه خو ښه وه چې د تاو تريخوالي په کمولو کې د هغوي نه مرسته ترلاسه کړي او د آواري کار باندې د لاکو مهر ووهي ، خو ده نه غوښتل دوی د خبرو په اصلي جريان کې ورننوځي . له دې نه سړی سترګې نه شي پټولای چې د اکتوبر د جنګ نه وروسته هغه په پوره برياليتوب سره د ټولو شيانو ترتيب او اداره په خپل قابو کې وساتله ، د خپل فورمول په چوکاټ کې يې ټول لوبغاړي د خپل هنري استعداد په رڼا کې داسې ولوبول چې يواځې لوبه جاري وساتي او هغه شرطونه هير کړي د کومو د پاره چې لوبه کيږي .

د مصر ـ اسرائيلو د اوربند په مذاکراتو کې د اصلي ميدان نه د روسانو په بهر ساتلو کې د هغه برياليتوب هرچا وليد ، خو کله چې د سورې ـ اسرائيلو ترمنځ د اوربند کار ته راغئ ، دا ورته ډيره ګرانه تمامه شوه . سورياپانو د ژنيو د کانفرنس سره بايکاټ کړی ؤ ، او روسانو هغوی ته سياسي او پوځي ملاتړ جاري ساته . خو اوس د پاملرنې وړ يوه ډيره د زړه پورې معامله راغله او کيسينجر په پوره چالاکۍ سره د روسانو په پرتله خپلې پرې (پانې) په اغيزمنه توګه ولوبولې .

کيسينجر وليدل د سورې د دريځ د پاره يوه کونجي د عراق موقف ؤ . روسانو د عراقيانو سره مستقيمې اړيکې ساتلې وې . په داسې حال کې چې جنګ لاروان ؤ ، عراقيانو غوښتل خپل يو شمير پوځونه د سورې مرستې ته ورولیږي ، خوله دې ويريدل چې ايران څه ستونځې وريپيښې نه کړي ، دا وخت د ايران

او عراق ترمنځ اړیکې خرابې وي . نو د عراق د انقلابي قوماندې شورا یو غړی مسکو ته ولیږل شو چې د روسانو نه وغواړي په تهران خپل اثر رسوخ واچوي څو څه جنجال جوړ نه کړي . هغه د پودګورني سره وکتل ، البته پودګورني د منځني ختیځ په هکله د روس د یو فعال سیاست ملاتړ کوونکی نه ؤ ، ایران موافقه وکړه . خو په دې وخت کې د شوروي ټول مشرتوب دلته د جنګ په هکله اندیښمن ؤ ، داسې ګومان او آوازې پورته کیدې چې بیا د سره د جنګ د پیل کیدو امکان ښکاري . پودګورنی په غوصه وویل : 'تاسې ولې وخت ضایع کوئ ؟ تاسې ولې غواړئ خپل پوځونه د سوریې جبهوته نه دي لیږلي؟ تاسې څه فکر کوئ ، ستاسو پوځونه د څه د پاره دي ؟ البته ایرانیان به پرې نښودل شي چې څه وکړي' .

د بلې خوا نه کیسینجر ډیره غلطه مفکوره درلوده، هغه غوښتل حالات داسې جوړ کړي چې سیمه ییز ځواکونه سره په خپلو منځو کې وجنګول شي . عراقیان د اسرائیلو سره د هر ډول اوربند د مفکورې مخالف وو ، او د دوی دغې دښمنۍ د سوریې له پاره هم ګرانه کړه اوربند ته ورنژدې شي . نو د ایران په ورانکاریو د عراقي کردانو لیږکې را ولمسول شول څو پاملرنه بلې خوا ته واړوي . د ۱۹۷٤ کال په مارچ کې د کردانو داړودوړ اور بیا بل شو ، د عراق حکومت دلته مشغول شو او په دمشق باندې زور کم شو . دوه میاشتې وروسته د سوریې د اوربند موافقه لاس لیک شوه .

په ۱۹۷٤ کال کې د مصر او شوروي اتحاد په اړیکو کې څه ښه والی را څرګند شو . د مصر د بهرنیو چارو وزیر اسمعیل فهمي مسکو ته دوه سفرونه وکړل ، لومړي سفر په اکتوبر کې وشو ، په ۱۹۷٥ کال کې یو شمیر عربي پایتختونو ته لکه قاهره ، دمشق او بغداد ته د برژنف د سفر په ترتیباتو موافقه وشوه . خو چې بیا فهمي په دسمبر کې مسکو ته لاړ ، اعلان وشو چې هغه سفر لغوه شو . که څه هم داسې وویل شول چې سفر د برژنف د ناروغۍ له امله لغوه شوی او نه د کوم سپکاوي په نیت ، اسمعیل فهمي او د روس د جنګ وزیر جنرال ګاسمي دواړه د برژنف لیدو ته د هغه د خوب کوټې ته ورغلل . دوی یواځې پنځه دقیقې د هغه سره خبرو کولو ته پریښودل شول ، او باوري راغئ چې د شوروي د مشر ناروغي ربښتیا وه .



د ۱۹۷٤ کال مني د ملګرو ملتو عمومي غونډې ته د فلسطین د آزادۍ

بښوونکي سازمان د مشر یاسر عرفات د ناڅاپي راتللو ننداره وکړه . په دې پرمختګ کې د روسانو له پاره یو څه ارامي وه ، او البته دوی ډېرې زیاتې ارامۍ ته ضرورت درلود . تردې وخته پورې دوی فلسطینیانو ته دومره پاملرنه کړې نه وه ، خو په ۱۹۷٤ کال کې د فلسطین غورځنګ په ډېره ښه توګه ځان د هغو ضربو وروسته را جوړ کړ چې د ۱۹۷۰ کال په سپتمبر کې د پاچا حسین د پوځونو له خوا ځپل شوی ؤ . تر پخوا زیات ورځ په ورځ د فلسطین د آزادۍ بښوونکي ټولنې سره د یو بل عربي دولت د زړې (تخم) په توګه سلوک کیده ، او نه یواځې دعربانو له خوا ، د فلسطین مشرانو هڅه کوله په هغو بدګومانیو بریالي شي چې عربي زړو رژیمونو او لویدیځو دولتونو پردوي لرل ، او دوی ځانونه ډیر نرم او د سیاسي لارو چارو د موندلو پلویان ښودل . ځینو په ښکاره توګه د فلسطیني او اسرائیلي دولتونو خبرې کولې څو دواړه څنګ په څنګ په سوله کې ژوند وکړي . دوی په کراره کراره دا سبق زده کړ چې نړیوال ملاتړ خامخا د یو عادلانه او رواحق او هدف پرخوا نه دی چې دوی ورته کار کوي ، او دوی خپل تر ټولو لوي ملاتړ کوونکی شوروي اتحاد ولید .

د شورویانو د پاره د فلسطین غورځنګ یو څه رښتیني ګټې راوړاي شوې . دا په ډیره ښه او اسانه توګه په یوکوکي بم بدلیدی شو چې په سیمه کې د امریکې د سولې راتلونکې رنګ کړي . نه امریکې او نه اسرائیلو په خپلو پلانونو کې د فلسطینیانو د پاره ځای درلود . د هغوی په هکله به د مهاجرو په توګه خبرې کیدې ، خو هیچا د دوي په تیښګه دا ملاتړ نه کاوه چې خپل دولت دې ولري . برسیره پردې تر هغه ځایه چې د دوی ټولنیزې او اقتصادي چارې د پاملرنې وې ، د فلسطین انقلاب اوس په داسې یوه ژبه خبرې کول پیل کړي ؤ چې مسکو ته د پوهیدو وړوه ، دوی ځانونه داسې بلل چې هر څه تري اخیستل شوي دي ، دا یو داسې شی ؤ چې په عربي نړۍ کې بې د راپورتنه کیدنې په نمونه باندې د پاملرنې وړ اغیزه درلودله ، دلته د ډیرو بې وزلو او ډیرو سرمایه لرونکو ترمنځ لوی واټن ؤ . او د ځینو نورو قوتونو په پرتله چې په سیمه کې تري شوروي ملاتړ کاوه ، فلسطینیان د اقتصادي نظره یوه پانګه بلل کیدای شوه . دوی کله هم د پولادو فابریکې ، بندونه او د آواز نه زیاتې چټکې الوتکې نه غوښتلې ، بلکې سپکې وسلې ، ماینونه او یو څه د ټانک ضد میزایل یې په کار وو . د فلسطینیانو نه ملاتړ کولو روسان په سیمه کې بیرته د ۱۹۷۲ کال نه وړاندې حالت ته نه شو راوړاي ، خودې لږ تر لږه دوی ته د ویټو یو حق

ترلاسه کولای شو چې هلته څه تیرېږي .



هیڅ شي هم د مصر روس د اړیکو د زیاتې خرابوالي مخنیوی نهشو کولای . د ۱۹۷۳ کال نه وروسته د سادات د ستراتیژۍ دویم پړاو په پای ته رسید وو ، او د دې مطلب دا ؤ چې نړۍ ته وښیي ، تر هغه ځایه چې د ده زور رسیده ، روسانو نور په منځني ختیځ کې هیڅ رول نه درلود . د ۱۹۷٦ کال د می په ٥ مه ، هغه د مصر پارلمان ته وویل چې ده د مصر او شوروي هغه تړون لغوه کړی دی چې ده او پودګورني څلور کاله وړاندې لاس لیک کړی ؤ .

مخکې له دینه چې سادات دا قدم پورته کړ ، داسې ګومان کیده چې دی به خامخا د تړون په هکله څه وکړي ، ده ته دري لارې پرانیتې وې : هغه کولاي شو د یو وخت له پاره د تړون د لغوه کولو او ځنډولو ګواښ وکړي یا یې سمدلاسه لغوه کړي . هغه دا دریمه او سخته لاره ونیوله . د دی کار د پاره بنایي ده ځیني دلیلونه درلودل . د علي صبري کار د سادات په ذهن باندې کلکه اغیزه کړې وه ، هغه اوس هم دا ګومان کاوه چې په قاهره کې د شوروي سفیر د علي ـ صبري د ډلې سره په تماس کې دی ، تر هغې چې بیخي فیصله شوه . د ده د حرکت وخت هم تاکل شوی ؤ او د ده په فکر د منځني ختیځ لانجه د یو آواري په لور روانه وه ، خو په دې جریان کې روسانو د وړاندې کولو د پاره څه نه درلودل . دوی د جنګ د لارې د لانجې په اوارولو کې ډیره مرسته کولای شوه ، خو اوس رئیس د سولې وخت راتلونکی لید . دا به زیات امکان لري داسې وخت وي په سیمه کې به لوي سیاسي او اقتصادي قدرت د هغه چا په لاس کې لوبیږي چې د امریکې متحدین او ملګري وي . هغه په دې خبره ښه پوهیده چې څومره دی د روس خواسستوي او تري نه لیري کیږي هماغومره دی د امریکې خوا ته نږدي کیدي شي . لکه هغه چې د ابراهیم ریبیکوف په مشرۍ کې د امریکایي سناتورانو یوې میلمنې ډلې ته وویل : «ما ځان ثابت کړی دی» .

ګومان نه کوم روسان به د تړون په لغوه کولو سره اریان شوي وو ـ ډیرې نښې لیدل کیدلې چې دغسې یو کار کیدونکی ښکارید ـ خو دوی اریان شول . هغوی داسې احساس وکړ چې د یوې دسیسې ښکار شول . دوی دا منله ، کیدي شي چې سهوې یې کړې وې ، خپلې ځیني پانې یې غلطې لوبولې وي ، خو ، لکه دوی چې ولیدل ، یواځې یوه دسیسه چې لوي قدرتونه او عربي

محافظه کار ځوا کونه پکې برخه لري دومره لوي کار کولی شي .



د ترون د لغوه کیدلو نه دوه ورځې وروسته د شوروي سفیر د رئیس سادات سره د یوې مرکې کولو غوښتنه وکړه . رئیس وزګارنه ؤ ، ده بیا د جمهور رئیس مرستیال حسني مبارک سره وکتل ، چې دی یې د عبدین د ماڼۍ په یوه سالون کې ومانه . سفیر وویل چې د شوروي د حکومت له خوا یې جمهور رئیس ته یو پیغام راوړی دی ، او یو پاکټ یې پرمیز کیښود . دواړو څوشیبې په بیلا بیلو موضوعګانو خبرې وکړې ، او کله چې سفیر پاڅیدو ته ځان تیار کړ حسني مبارک تري پوښتنه وکړه چې په پاکټ کې څه شی دی . هغه تـه وویل شول چې دا د شوروي د حکومت یو پیغام دی . مرستیال جمهور رئیس وویل : 'زما په فکر ښه به داوي چې د بهرنیو چارو وزارت تـه یې ورکـړي' . بیا سفیر وزارت ته ورغئ ، هلته یې د تشریفاتـو رئیس ولیـد او پاکټ یې ورتـه ورکړ . د بهرنیو چارو وزیر محمود ریاض چې په هغه ماسپښین لیک ولید تصمیم یې ونیو لیک د تسلیمیدلو وړنه دی او باید ژر بیرته د شوروي سفارت ته مسترد شي . نو بیا د تشریفاتو رئیس د سفیر سره په ټیلفون خـبرې وکـړې ، او ورتـه وې ویل،لیک درته بیرته درولیږل شو . سفیر.وویل نهشي‌کولای لیک بیرته واخلي ، ماته دا هدایت را کړل شوی ؤ چې لیک تاسې تـه وسپارم ، او دا کار مې کړی دی . بیا اسمعیل فهمي وزارت ته هدایت وکړ چې لیک تسلیم نه کړي ، او خامخا باید بیرته سفارت ته لاړ شي ـ البته سفیر بیا د لیک د اخیستلو نه انکار وکړ .

په دا بله ورځ د قاهرې پـه اخبارونـو کې خبره شوه چې د مصر حکومت د شوروي د حکومت له خوا یو رالیږل شوی لیک بیرته مسترد کړی دی . بیا سفیر د بهرنیو چارو وزارت ته را وغوښتل شو او ورته د لیک د بیرته اخیستلو وویل شو . هغه وویل : 'زه څنګه کولای شم هغه لیک بیرته واخلم چې ستاسې د اخبارو له قوله تاسې د هغې د تسلیمۍ نه پـرون انکار کړی دی' . بیا وزارت هغه لیک په پوسته کې سفارت ته ولیږه د شوروي سفارت لیک بیرته د وزارت په پته را واستاوه . تر هغه ځایه چې ماته معلومات دي لیک اوس هم د وزارت او سفارت ترمنځ په پوسته کې ځي راځي .

دا لیک په ډیره سخته لهجـه لیکل شوی ؤ . پـه دې کې پـه رئیس سادات تور لګول شوی ؤ چې ده یو اړخیز قدم پورته کړ او د دې له پاره د ده د ښلو هیڅ دلیل نشته . په لیک کې ویل شوي وو چې دا د مصر د بهرني سیاست د لورې

د کړيدو نتيجه ده او د شوروي اتحاد سره د دوستۍ او همکارۍ هغو ښو اړيکو ته يوګوابښ دی چې په دې وروستيو کلونو کې يې پرمختګ کړی ؤ. په ليک کې په ځينو سياستمدارانو او اخبارونو هم بد ويل شوي ؤ چې د شوروي پرضد يې يو ناروا کمپاين روان کړی دی، په دی هڅه کې دي څو ټول هغه شيان بد وښيي چې شوروي اتحاد د مصر د خلکو د پاره کړي دي، او خلکو ته داسی مفکوره ورکړي چې د ۱۹۷۱ کال تړون د مصر پر خلکو په زور تپل شوی ؤ. رئيس سادات خپله پارلمان ته ويلي ؤ چې دا تړون يې د راتلونکو نسلونو دګټې له پاره لاس ليک کړی دی.

په ليک کې د تړونونو د ژمنونه د مصر د اوږو خالي کولو د اقدام غندنه شوې وه، د دې ټکي نه د دوي مطلب دا ؤ چې مصر د عربي نيول شويو ځمکو د آزادولو د مبارزې نه لاس اخيستی دی. د تړون مطابق بايد د مصر او شوروي اتحاد ترمنځ په پرله پسې توګه مشورې وشي، خو 'د دی پرځای د مصر مشران په شوروي اتحاد تل تورونه لګوي، په دې پلمه د ځان له پاره لاره پيدا کوي ترڅو د تيري کونکو سره نږدې شي چې د دوي ملاتړ کوي، آن تردې اندازې وراندې ځي چې داسی خرګنده کړي ګواکي شوروي غوښتل د ۱۹۷۳ کال په جنګ کې عربان ماتې وخوري، او له همدې امله دوي مصر ته پوره مرسته ورنه کړه'. دا په ښکاره د شوروي اتحاد نه په الوتکو کې د لويې پيمانې مرستو له راوړلو نه سترګې پټول دي، او د دې تر څنګه د ډيرو نورو شيانو نه. ربښتيا نه ده، چې ويل شوي شوروي اتحاد کوندې له مصر نه داسی غوښتنې درلودې چې مصر نه شوي پوره کولای، د دی پر خلاف شوروي اتحاد د مصر د پور د بيرته ورکولو د وخت د بدلون په هکله د مصر غوښتنه ومنله. په ليک کې داسی څرګنده شوې وه چې 'نړيوال عامه ذهنيت' د شوروي اتحاد پرضد د مصر د مشرانو د عمل په غند نه کې په حقه دی، دا عمل د مصر د خلکو پرضد او د عربي هيوادونو په ضرر دی'.

* * *



چاود لا تر پايه نه ؤ رسيدلی. سياسي اړيکې لا ژوندۍ وې. د ۱۹۷۶ کال په نومبر کې د بهرنيو چارو دوه وزيرانو اسمعيل فهمي او اندري ګروميکو په صوفيه کې سره وکتل، خو د دوی خبرې زياتې د يو بل په غند نه وشوې، فهمي ګيله کوله چې د وسلو او پرزو د راليږلو کار ډير سست او ناوخته ؤ، او ګروميکو ګيله کوله چې شوروي اتحاد د هر څه نه بهر وساتل شو. هغه

وویل چې ترون باید ژوندی شي ، بیا به په نورو مسئلو خبرې کوو .

زما په گومان روسانو غوښتل ټول شیان د یو څه وخت لـه پاره پر خپل ځای پاتې شي . دوی به خامخا د هغو نا اتکل شویو خطرونو نه خبر وو چې پـه منځني ختیځ کی یې د امریکایې سولې د راوړلو سره تړلي وو . د آواري لـه پاره د لارې د لټولو کار د ستونځو سره مخامخ کیدونکی ؤ ، او سره له دې چې د تیلو پانگې په نژدې راتلونکې کی د انقلاب امکانات کم کړی وو . په اوږده موده کی ټولنیزو ستونځو او تـوپیرونـو چې ورځ پـه ورځ زیاتیـدونکي وو ، حالات د چاودیدو په لور روان کړي وو . نو د دوي لـه پاره ښه کار دا ؤ چې کـرار آرام کیني ، خپل سپکاوی وزغمي ، او انتظار وباسي امریکایان او ملگري یې هم د مخنیوی ناوړه ، خطاوې وکړي .

خو شوروياِن آن چې د چوپتیا وقار نه هم منکر وو . پـه ۱۹۷۷ کال کی رئیس سادات د مصر په مجله کی د خپلو خاطراتو په خپرونه پیل وکړ ، او عملاً یې ټول هغه څه را ښکاره کړل چې د روسانو سره د اړیکو پورې تـړلي وو . دا یو داسی شی ؤ چې هیریدلی نه شو . د فبروري پـه ۱۹ مه پراودا "د انور سادات خاطرې د مصر ـ شوروي د اړیکو یوه چاودنه ده" تر عنوان لانـدې یوه اوږده سر مقاله خپره کړه . دې کی خاطرې "په دروغو تورونو او غلطیو ولاړې بلل شوې وې . د منځني ختیځ د آواري په هکله د شوروي پـه پالیسیو دروغ ویل شوي وو . د شوروي او مصر په څو کلنه اوږده دوستۍ او همکارۍ باندې تور لگول شوی ؤ . د مصر او د مصر د خلکو د حیاتي مسئلو په وړاندې د شوروي اتحاد په دریځ باندې بیځایـه تومتـونـه ویل شوي وو . د مصر د خلکـو تاریخي مبارزې ته چې د رئیس ناصر په ژونـد او د هغـه لـه مرگـه وروستـه یې د خپل استقلال ، خپلوا کۍ او د نوې ټولنې د جوړولو په اصولوکړې ده ، غلطه ویل شوې ده . د انور سادات خاطرې په هره مسئله کی چې لیکوال راپورتـه کـړې ده غلط معلوماتـو نـه وړانـدې کـړي دي . دا سیاسي خاطرې نـه بلکې سیاسي سپکاوی دی" .

د پراودا مضمون په کراتو کراتو هغه څه بیان کـړي دي ، چې روسانـو څه کړې ، مصر ته یې څومره مرستې ورکړې دي ، پـه تیره بیا د ۱۹۶۷ کال د جنگ نه وروسته د مصر د بیا جوړولو له پاره . په دې کې د سادات د خپلې

بیانیې نه هغه متنه را اخیستل شوې وه چې ده د شوروي اتحاد د کار او مرستو نه کړې وه ، د ۱۹۷۳ کال په جنګ کې د هوا له لارې د مرستو د را رسولو او د مصر ـ شوروي د تړون نه د هغه تود ملاتړ . ’له دې امله چې دې د خپل قدرت په څرګندولو کې تل د مبالغې نه کار اخلي هغه دومره وړاندې ځي چې د مصر غښتلی او بې ساري مشر جمال عبدالناصر باندې هم داغونه پړدي . دی د ناصر د جمهوري ریاست په زمانه کې د مصر او شوروي د اړیکو سپکاوی کوي ، په داسې حال کې چې ربښتیا هماغه وخت یو په بل د باور په روحیه دوه اړخیزه دوستي جوړه شوه .

مضمون را لنډوي چې ’دروغ اوتومت ، کــه هر څومره زیات تکرار شي یا هم د عربو د ذهنونو نه د شوروي د پالیسۍ ربښتینتوب نه شي ایستلای ، هغه چې په نه بدلیدونکې توګه د عربو د آزادۍ ګټلو او خپلوا کۍ د مبارزې او په منځنې ختیځ کې د یو ربښتیني عادلانه او پوره آواري د را وړلو ملاتړ کوي . د مصر سره د دوستۍ د اړیکو پرمختګ ، د نورو عربي هیوادونو تر څنګه ، د دې سیاست څخه نه جلا کیدونکې برخه ده . البته دا دوه اړخیزتوب ته ضرورت لري .

خو آن چې دغه تریخ سوال و ځواب د کیسې پای نه ؤ . د جون په سر کې اسمعیل فهمي مسکو ته لاړ او د برژنف سره یې ولیدل ، هغه ورته وویل چې دې غواړي دوه شیان باید ډیر روښانه کړي . لومړی ، زما خو ښه ده چې د مصر ـ شوروي په اړیکو کې یوه نوې پاڼه واړو . تیر شوي تیر شول ، خو دا د مصریانو پورې اړه لري ، نه د روسانو پورې ، چې لومړی قدم پورته کړي . او کله چې نوې پاڼه واړوله شي ، دی (برژنف) به په ډیر غور سره پرمختګ ته ګوري . دویم ، مصریان باید په دې پوی شي هغه څه چې دوی وکړل بالکل نامناسب او د دولتونو ترمنځ د دوستۍ د اصولو او حدودونه وتلي وو . که مصر ، یا د نړۍ هر بل یو هیواد ، داسې فکر وکړي چې د شوروي اتحاد سره د سپکاوي سلوک وکړي ، او بیا داسې انتظار وباسي چې شورویان دې دوی ته په خاپوړو راشي ، دا به په حقیقت کې ډیره لویه خطاوي . د مصر سلوک خامخا هر ځای کې ضروري ورګرځوني درلودلې دي . برژنف وویل : ’مونږ د ۱۲۰ حکومتونو سره معاملې لرو ، او له نیمایې نه زیاتو سره یې مرستې کوو . که د دوی څخې کوم هیواد داسې فکر وکړي چې د مصر د تعامل له

امله ، دوی هره ورځ پر مونږ د کنځلو امبار راغورځولی شي ، په یو اړخیزه توګه زمونږ سره تړونونه لغوه کولای شي ، او زمونږ د پورونو د بېرته راکولو نه سر غړولی شي ، نو د شوروي اتحاد تول وقار او واک به خراب شي ، مونږ هیڅکله داسې یو کار ته اجازه نه ورکوو . نو ځکه چې درته څه ویلی شم دادي چې که تاسې له نوې نه پیل کول غواړئ مونږ تیاریو ، خو مونږ به تاسې څارو . برژنف زیاته کړه چې د دوی د هیوادونو ترمنځ اړیکو کې به هر ډول پرمختګ په کراره کیږي ، ځکه د مصر سره لانجه اوس د مرکزي کمیټې د لاس او واک نه وتلې ده ـ دا اوس د ګوند کدرونو تـه ورغلې ده .

د ناصر د "دامه کوئ" دویمه مشوره اوس په چټکس باندې کیناستلو ته را روانه وه .



ستا ځواب زما کار اسان کړ . خپل جمهور رئیس ته دې ووایه ما د جزیرې سره علاقه نه درلوده . ما د شوروي د متخصصینو د شته والي سره اندیښنه درلوده . زه غواړم چي شوروي متخصصین سمدستي له هغه ځایه ووځي . دا پیغام چي عدن ته‌ور ورسید ، د هغوی اندیښنه شوه چي ولې ؟ رئیس سادات ورته وویل غواړي ژنیو کي کیدونکي کنفرنس ته ولاړ شي ، نو باید پوه وي چي سور سمندر کي د روس د شته والي نه پاک دي که نه ؟ هغه پوهیده چي اسرائیل به په شرم الشیخ پوري ونښلي ، په دي پلمه چي له دغه ځاي نه د سور سمندرکي په بل سر کي د باب المندب گرچا پیره د روسانو د شته والي سره مقابله کیدی شي . سادات وویل : زه غـواړم اسرائیل له دغي پلمي نه بې برخي کړم .

شورویان چي له دې نه خبر شول ، هغوی داسي ونه ګڼله چي دا په نړیوال کانفرنس کي د مصر د برخي اخیستلو هلې ځلې دي بلکي دا یې د شوروي پر ضد یو بل قدم وباله چي غواړي شوروي اتحاد له عربي نړۍ نه وباسي . او چي‌کله له عربونه ووځي‌بیا به له افریقا او د هند له سمندر نه ولې ونه ایستل شي؟ له ځانه به دوی څه پوښتني کړې وي ، ددې مطلب دانه دی ؟ دا کار څوک کوي ؟ دا څنګه وشوچي مجبور شول له سیمي نه ډیر سپک ووځي ؟

دې پوښتنو ته ځوابونه ډیر جنجالي دي، دا د ناصر یا د روسانو د لاربنوونې په کتاب کي نشته . د دی عجیبې دوستۍ او نه پوهیدونکي اتحاد کیسه باید د ۱۹۵۵ نه د ۱۹۷۷ کال پورې پیښو کي ولټوله شي . په دی کیسه کي د شلوکالونه لېږ زیات وخت څیړل شوی دی - خو دا د منځني ختیځ په تاریخ کي د سترګو د یورپ نه زیات نه دی . د عربو او شوروي په اړیکو کي هم دا د یو لوی کتاب یواځي یو فصل بیانوي . خو دا په راتلونکو فصلونو باندې ژوره اغیزه لري .



دا رښتيا يوه ځانګړې کيسه ده او کوم علمي يا تحقيقاتي کتاب نه دی . هغه کسان چې د سياسي او ډپلوماتيکي چارو د کتلو وياړ لري ، دهغوی اخلاقي دنده ده چې د خپلو سترګوليدلي پيښې په رښتيني توګه د خپلو احساساتو له اغيزې پرته بيان کړي . او ما دلته د دغسې يوکار هڅه کړې ده .

هيڅکله مې هم اراده نه درلوده داسې يو کتاب وليکم چې د شوروي پلوی يا خلاف وبلل شي . ديو عرب په توګه مې يوازې دانظر درلود چې عربي نړۍ د شوروي اتحاد سره بايد د يو اندول له مخې اړيکې وساتي . شوروي اتحاد د دوو سترو طاقتونو څخه يو قدرت دی، له جغرافيوي نظره عربوته نژدې، او د هغو دوولويو نظريو څخه د يوې لرونکي دي چې نړۍ ته يې اوسنۍ تاکلې بڼه ورکړې ده ، او مونږ ټول مجبور يو په دې کې ژوند وکړو . مطلب دا چې شوروي اتحاد د عربو له پاره لږ اهميت نه لري بلکې د دوي د تجربو ډيره مهمه برخه جوړوي .

له بده مرغه مجبور شوم د ناصر له مرګه وروسته په ۱۹۷۰ کال کې له شوروي اتحاد سره مخالف شم ځکه زما په فکرهغه وخت په عربي نړۍکې د شوروي اتحاد نفوذ له اندازې وتلی مخ په زياتيدو ؤ. د دې مطلب دانه دې چې د يوستر قدرت ځاي‌دې بل سترقدرت ونيسي. په همدې وخت کې ما دا مسؤليت احساس کړ چې‌بايد په سيمه کې دامريکې دمتحده اياﻻتو د نفوذ د زياتيدو سره هم‌مخالفت‌وکړم.

کله نا کله زه د شوروي په راډيو او مطبوعاتو کې په ډيرو بدو عباراتو غندل شوی يم ، او په ځينو نورو وختوکې يې په ډيرو ښو الفاظو ستايلی يم . خو ما هڅه کړې د ۱۹۵۵ نه تر ۱۹۷۵ پورې د شلو کلونو په څيړنه کې دغه شيان زما حساب تر اغيزې لاندې را نه ولي . زه باور لرم عربي نړۍ د شوروي اتحاد سره د اړيکو درلودلونه ډيره ګټه واخيستله او ډير څه يې ترې زده کړل . او هم شوروي اتحاد د عربو سره له اړيکو نه ډير څه زده کړل او ډيره ګټه يې ترې پورته کړه. فکر نه کوم شوروي اتحاد به په دې وروستيو وختو کې په انګولا او د افريقې په ښکر کې دومره برياليتوبونه ترلاسه کړي واي که په منځني ختيځ کې يې د خپل هغه وخت له تجربونه پندونه اخيستي نه واي چې

# ځیرنه او اټکل

په ۱۹۵۵ کال‌کی د شوروي لوی برید پیل شو ، اوس په ۱۹۷۵ کال کې بې زور اوبه ؤ . د شلو کالو په موده‌کی یې خپل بریالیتوبونه او نا کامي ولیدلې ، داسی وختو نه هم ؤ ، هغه چا چی د دوی هر کلی کاوه ، دوی یې ډیر بریالي بلل ، او هغوي چې ورسره وران وو ، ډیر وارخطاء ښکاریدل ، خو اوس دوه نظریې نه وی ـ برید د پوره نا کامۍ سره مخامخ شوی ؤ . کله چې هنري‌کیسینجر د یواځني منځګړي په توګه د منځني ختیځ د هیوادونو د اهدافو د معلوموللو په هکله خپل ماموریت سرته ورساوه ، د دی هیوادونو او شوروي اتحاد سره د دوي د اړیکو یو فصل پوره شو او یو نوی فصل پرانیتل شو .

د دې ننداري ورماتې د پاره ډیر علتونه وو . په لومړي سر کی ، د برید نه ورانـدې د یـوې خـوا زوراو امکانات هم نـه ؤ سنجول شوي ، نه عربو په دې کی څه ځیرنه کړې وه ، او نه روسانو . په عمومي ډول سړي ویلای شي چې د ۱۹٤٥ کال نه وروسته د منځني ختیځ د پاره دوه سیاسي پلانونه را ووتل ، چې د برتانوي او فرانسوي زاړه استعماري تسلط تر پای ته رسیدو وروسته په سیمه کی د هغوي د ځاي د نیولو له پاره سره په سیالۍ کی وو . په یوه خوا کې هغه پلان ؤ چې امریکایانو جوړ کړی ؤ ، د منځني ختیځ د پاره یوه نقشه جوړه شوی وه چې‌دا سیمه داسی تر خپل تسلط لاندې راولي څو د امریکایانو د سوړ جنګ ستراتیژي دلته هماغسې په کار واچوله شي لکه ناټو چې داروپا ضرورتونه او سیټو او نور دوه اړخیز تړونو نه د اسیا ضرورتونه پوره کوي . دا نقشه ییخي په جغرافیوي بنسټونو جوړه وه ، د سیمې ټول هیوادونه باید تردې نقشې لاندې راغلي واي ، یواځې له دې امله چې په دې سیمه کی پراته وو ، بیلـه دې چې د روس په وړاندې ، د امریکی په هکلـه او یا یو د بل پـه مقابل کی د هغوی احساس په نظر کی ونیول شي . په واشنګټن کی د دې پلان جوړونکو منځني ختیځ ته په راتلونکي کی د روس د پراختیایي سیاست ضد یو سنګر په توګه کتل ، چې پکې عربان ، ترکیه ، ایران او آن اسرائیل اوږه په اوږه ولاړ وو .

په بله خوا کې عربي نظام ؤ . دې غورځنګ ، چې د ناصر غونډې ناسیونالیستانو له خوا یې ملاتړ کیده ، د امریکایانو د پلانونو مخالفت کاوه ، په جغرافیوي بنسټونو ولاړ او د سیمې د خلکو د تاریخي ریښتینو او اصیلو ګټو د لاس ته راوړلو د پاره جوړ ؤ . د دغه عربي نظام دښمن اسرائیل ؤ ؛ شوروي اتحاد نه ؤ . د ۱۹٤٥ کال نه را وروسته ټوله شخړه په منځني ختیځ کې د لویدیځ له خوا جوړ شوي ملاتړ کیدونکي سیستم او د عربي نظام ترمنځ لانجه بلل کیدي شي .

ملي مشرانو ټولو اتحادونو او تړونونو ته شا اړوله ، هغه چې د دوي په فکر په نوې جامه کې هماغه زوړ استعمار ؤ ، خو په دې پوي شول چې دوی نشي کولاي په یواځې ځان په خپلو پښو ودریږي . دوي متحدینو تـه اړ وو ، او هغه طبیعي لوری چې دوي ورته ستر ګې اړولاي شوي شوروي اتحاد ؤ . دا له دې امله نه چې ګوندې شوروي اتحاد د سیمې په استعماري تاریخ کی پاک ؤ ، خو د دې لـه پـاره چې یو نـوی آزاد شوی نظام یو څـه اعتبـار او حیثیت ترلاسه کړي ، باید پیاوړی او قوي وي . د دی مطلب دا ؤ چې د وسلو د لاس ته را وړلو بله لاره پیدا کړي ترڅو د بدنیتۍ او بـدو شرایطـو سره د لویدیځ د وسلو د تیارولو د انحصاري منبع ځای ونیسي ، او دا نوې منبع یواځې شوروي اتحاد کیدي شو .

نو عربان شوروي اتحاد ته د وسلو له پاره وروګرځیدل ، او شوروي اتحاد د وسلو د تیارولو سره موافقه وکړه . د دې پرمختګ سملاسي اغیزې به خامخا په مسکو کی څرګنـدې وې . دې کار د شوروي اتحاد پـه جنوبي سرحداتـو کی د دښمنۍ د دیـوال د جوړولـو کار وځنډاوه ، او پـه سیمـه کی یې د لویـدیځ د اغیزمنتوب الـه، د بغداد تـړون ، مـات کړ . سرهله‌دې چې شوروي اتحاد د عربو غوښتنو ته ناڅاپي چمتو والی وښود ، خو دوی دا کار د خپلې یوې روښانه اوږدې مودې لـه سـتراتیژۍ پرتـه وکړ . دوی هغه فرصت را ونیو چې یې ورتـه ست وشو ، خو نه دوی دومره وخت درلـود او نه وړتوب چې د خپل دغې کار نه یې په پراخه پیمانه ګټه پورته کړې وای .



په حقیقت کی څنګه شوروي اتحاد هغه وخت خپل هدفونه ټاکلی شو ، کله چې دوی د عـربـو سره په نوې اندیوالۍ کې ورننوتل ؟ آیا داسې یو موقف یې غوښت څو د لویدیځ سره چنې ووهلی شي ؟ په ۱۹٥۰ کلونـو کې د روس ټول

افکار د امریکې سره په اړیکو کې راګیر وو . روسانو غوښتل د لویدیځ سره خبرې اترې وکولای شي، خو په همدې وخت کې د خپل رقیب نه ویریدل او په هغوي يې باور نه شو کولای . د شطرنج په هغه لوبه کې چې دوی روانه کړې وه ، د ختيځ منځ اروپا نیولی ؤ ، او نور اصلي ځايونه په آسيا کې وو ، خو منځني ختيځ هم د يو څو پياده ګانو ارزښت درلود . د امريکې سره د برابرۍ د پاره دوی ډيرې هلې ځلې کولې ، او ليواله وو چې نوره نړۍ دوی د امريکې د سياسي او پوځي يواځني برابر رقيب په توګه وپيژني . په منځني ختيځ کې به د لويديځ ځای نيول روسانو ته دومره شهرت ورنه کړي چې ګوندې د امريکې سره يې برابري ترلاسه کړې ده ؟

آيا د روسانو اصلي هدف دا ؤ چې سيمه کمونيسته کړي ؟ که دا ؤ چې د منځني ختيځ زيرمې لاس ته راولي ؟ دا سيمه تل د روسانو د پراختيايي سياستونو او ګټوړو بلل شوې ده ، او اوس ، چې د تيلو لوې زيرمې پکې را پيدا شوي دي او د نړۍ لويو سمندرونو ته لارې لري منځني ختيځ سره د روسانو علاقه د بل هر وخت نه زياته شوې وه .

خو د دغو احتمالي ممکنو هدفونو تر څنګه دلته د را رسيدو سره سم دوی ته شکونه او خطرونه هم را وړاندې شول . روسان په دې ښه خبر وو چې که څه هم عربانو په ډيره سخته د لويديځ د تسلط سره دلته مقابله وکړه ، په هر شکل چې وي په ښځوانۍ ښه يا په نوې ځيره ، خو دوی اوس هم د ژبې او کلتوري اړيکو له امله په لويديځ پورې تړلي دي . شوروي اتحاد يواځې د لويديځ ځای نيولی شي ، هغه هم په ډيره کمزورۍ سره . روسان په رښتيا سره په زړونو کې دا خيال نه شي زغلولای چې د منځني ختيځ خلک به په مينه په لنډه موده کې په خپله خوښه د کمونيزم رښتينوالی ومني . داسې وختونه وو چې يو مشر به د کمونيزم د منلو د پاره يوه ښه نمونه ښکاره شوه ، خو هلته به تل داسې څوروونکي خنډونه لکه ناسيوناليزم ، دين ،کلتور ، رواجونه اونور وو . ترهغه ځايه چې په سيمه کې اقتصادي او ستراتيژيکي لانجې نه وې ، دا بيا د دام او په دام کې د څوري نه زيات څه نه ؤ . روسان په دې پوهيدل چې د منځني ختيځ د تيلو زيرمو ته هر رښتيني ګواښ ، لويديځ ته چې امريکايي په سر کې ده ، د جنګ ګواښ دی . رښتيا ده ، هغوي په سيمه کې د امريکا سره سيالۍ ته د وړاندې قدم اخيستلو اراده وکړه . خو په همدې وخت کې يې غوښتل د دوی دا سيالي د سياسي واقعيتونو ، د سوړ جنګ او يا د ديتانت تر کنترول لاندې وي . نو په دې ډول

شوروي اتحاد ډاډه نه ښکاریده چې رښتیا دوی په منځني ختیځ کې څه کول غواړي . د دوی هیلې او غوښتنې ټول د شکونو او زړه نازړه کیدو له امله ستومانه شولې .

روسان د خپلو اهدافو په روښانه کولو کې پاتې راغلل ، خو د دوی ناکامي تردې هم تیره شوه . البته ، نور لوي طاقتونه هم په خپلو اړیکو کې د هغو هیوادونو سره چې اوس دریمه نړۍ بلله کیږي ، په لا زیاته اندازه بې لاري شول . په عربي نړۍ او د افریقا په لویه وچه کې د برتانوي او فرانسوي استعمار مړګ ، او په جنوب ختیځه اسیا کې د امریکې ور ګډیدل هغه مثالونه دي چې په ډیره ناپوهۍ او وحشیانه توګه یې د سیمې د خلکو د ملي اهدافو سره مقابله وکړه . روسانو هیڅکله هم په دې سویه د عمل کولو اراده نه ده کړې .

روسانو که هم دا هڅه نه کوله چې د یو زاړه شي لکۍ را ټینګه کړي او یا کوم شی په زور سره د پرمختګ نه پاتې کړي ، دوی غوښتل ځانونه د خلکو اوشرایطو سره برابر کړي چې هغوی ورته ضرورت لري . داسې ښکاریدل چې دوی د یوی لوئی تاریخي موقع په درشل کې ولاړ وو . خو دا فرصت یې بایلود . ولې ؟ دا هغه پوښتنه ده چې مونږ او دوی ورته خامخا باید ځواب پیدا کړو .



په لومړۍ برخه کې ، لکه څنګه چې په دې کیسه کې خوځلې را یاده شوه ، روسان په عربي نړۍ کې د ناسیونالیزم په قوت او نفوذ پوی نه شول . دوی په دې نه پوهیدل چې دا هیوادونه اوس هم د جوړیدو په پړاو کې وو ، اوس هم د امپریالیستي ځواکونو سره په کلکه مبارزه بوخت وو چې پر دوي تحمیل شوي وو ، او له دې امله د ډیرو ټولنیزو مسئلو د آواري له پاره چې شوروي اتحاد ورته د لومړیتوب حق ور کاوه ، د دوی د نظر سره پوره توپیر درلود . نه په دې باندې روسان رښتیا خوشاله وو چې وې لیدل په عربي نړۍ کې د خپلوا کۍ د غورځنګ ټول مشران د ټولنې د منځني پوړنه راپورته شوي دي ، او په حقیقت کې د ټولنې همدا پوړ ؤ چې په دغو غورځنګونو کې یې سرنوشت ټاکونکی رول درلود . دوی په دې ټکي نه پوهیدل چې د منځني پوړ دا مشران د خپلو لویدیځو سیالانو سره خبرې او سوال و ځواب کولای شي ، د هغوی سره چې دوی ډیر ګډ کلتوري او ژبني خصوصیات لري . دا چې ورسره په یو نظردي او که سخت ورسره مخالف دي . د لویدیځې اروپا ، شمالي افریقې او منځني ختیځ د پاره مدیترانیه هم د یو پول او هم د یو دیوال ارزښت

لري ، اوسنۍ ناندرۍ کیدي شي د يوې اوږدې او دايمي دوستۍ په لړ کې يو خنډ وګڼل شي .

بيانو د بهرنۍ نړۍ په وړاندې د شوروي اتحاد طبيعي مخالفت ؤ . ضروري وه چې په دوه بيلو بيلو طريقو او سويو خبرې او عمل وکړي، د نړيوال انقلاب د سنګر په حيث او د يو ستر طاقت په توګه . د انقلابونو د مورني هيواد د نمايندګانو په توګه شورويان د لږ قدرت خبرې کوي ، د کيوبا او مصر سره د برابرۍ په اندول . هغوي تل دا خبره تکراروي چې د برابرو خوا وو په توګه به پر مسئلو خبرې کوو . خو که يو دوست هيواد په خبرو کې د دوی سره مخالفت ښکاره کوي چې ګوندې روسان د يو ستر قدرت په بڼه سلوک کوي ، دوی پرې نه خوشاليږي . دا د برابرۍ په سويه ده چې دوی مشوره ورکړي ، خو د يو ستر قدرت په بڼه دوي سيمه ييز طاقت ته لارښونه کوي چې څه بايد وکړي .

بل ښوئيدونکی اندي د شوروي د مؤسسو وچوالی او جامد حالت دی . کمونيست ګوند ښايي په خپلې مور روسيې باندې ژوره اغيزه کړې وي ، خومور روسيې هم په شوروي کمونيزم باندې بنسټيزه اغيزه درلودلې ده . ګوند او بيروکراسۍ په شوروي اتحاد کی د تزاريانو د بيروکراسۍ او ارتودوکس کليسا بيا را ژوندۍ کړې ده ، قدرت د مرکز نه راښکته ګوندي سيمه ييزو فعالينو ته ور خپريږي . خو په نويو آزادو شويو عربي هيوادونو کې معمولاً يوسړی وي ـ لکه يو سادات ، يو بومدين او يو اسد ـ چې د تصميم نيولو واک يې ټول په لاس کې وي . دا کسان د خپلو شوروي دوستانو نه هم د همدومره ژر پريکړو کولو طمع کوي لکه دوی چې يې په خپلو هيوادونو کې د کولو صلاحيت او واک لري ، او د دې پرځای کله چې د چغيدونکی بيروکراسۍ سره مخامخ کيږي ، د غفلت له خو به راپيداريږي .

يواځې د شوروي بيروکراسي سسته نه ده ، بلکې د دولت په راس کې سړی هم د يو پوره جامد سکون نمايندګي کوي ـ د عراق صدام حسين ، چې دوی سره يې ډيری معاملې درلودلې يو حل دا 'سايبيريايي ذهنيت' وباله . هر څومره چې په امريکايي نظام کې کمبودۍ دي ، لږ تر لږه بدلونونه پکې شته . فرض کړئ د دريمې نړۍ د يو هيواد د مشر ګوزاره له نکسن سره ترخه کيږي ، تل دا احتمال شته چې په راتلونکو دوه دري کالو کې په سپينه ماڼۍ کې يوه نوې څيره را پيدا شي ، خو که چيرې هغه د کريملين سره د خولې خوند بدکړي ،

برخلیک یې دلته د تـل د پاره مهرولاک شو . پـه سپینه مانې کې هـره نوې څېره د تصمیم نیونکو د یوې نوې ډلې نه راوتلې وي چې د معاملـو پـه ترڅ کې د لوړې درجې مغزو خاوندان وي ، د پوهنتونونونه راغلي وي ، قانونپوهان وي او د نـورو مسلکي پوهـو او استعـدادونو لـرونکي وي . پـه داسی حال کې چې ناصر د ټـرومن ، ایزنهـاور ، کینیډې ، جانسن او نکسن سره د هغوی د قدرت په وختوکې معاملې درلودلې ، سادات د نکسن ،کیسینجر ، فورډ ، کارټر او وانس سره ، پـه دغو پنځـه ویشتو کلونـو کې دوی پـه مسکـو کـې یواځې د خروسچف او برژنف سره سروکار درلود ، او همـاغه یو ګرومیکو به یو کال او بل کال راتې او په همـاغه یوه ژبه او تکراري یو ډول خبرو او کلیماتو به یې همـاغه زاړه لکچرونه بیا بیا ورکول .



د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د شلم کانګرس پسې سملستي وروستـه زمانه کې عربانو ځانونه د شوروي اتحاد سره نیغ په نیغه تماس کې وموندل ، دا وخت د ستالین استبدادي نظام د ده پسې کسانـو لاس تـه ورغلی ؤ . د انقلابي مشرانو په سهو او غلطیو اعترافونه شوي وو . اوس په هیڅ ډول د لینن وارثانو د رښتینوالي د انحصار دعوئ نه شوه کولای. په داسی حال کې چې دوی زیات وختو نه همداسی کوي . په ۱۹۵۵ کال کې شوروي اتحاد اوس لاهم د مارشال تیتو سره په جوال کې پریوتی ؤ . خو کله چې عربان د لویدیځ د غوښتنونـه تر پوزې راغلل او د نورو ملګرو په لټه کي شول ، د تیتـو غونـډې سرې ورتـه د شوروي د مشرانو پـه انـدازه د درناوي وړښکاره شو . دا یو بل سړی ؤ چې د سترو قدرتونو د پوځي سیالۍ په لوبه کې یې میدان تـه د را کښبل کیـدو نـه غاړه وغړوله ، هغـه نظام چې ده ورسره مخالفت کړی ؤ د وارسا تـړون ؤ ، دې کار دی د عـربـو په سترګـو کې دومره لـوی ښکاره کړ لـکه نهرو چـې د سیټو د تـړون غړیتوب نـه ؤ منلی او ناصر چې د بغداد تړون ردکړی ؤ .

بیا چین د یوګـوسلاویې ځای ونیـو او د شوروي نـه یاغـي شو ، ګومان کیده چې عربان به د چین سره نانډرۍ راپورتـه کړي ، عربانو د یو لوي ختیځ هیواد په توګه د چین ډیر درناوی کاوه ، هغه چې د لویدیځ پـه وړانـدې ټینګ ولاړ ؤ ، او د سیاسي او ټولنیز پرمختګ په کشتۍ کې سپـور ؤ . د پوهیدو وړ عربي ګټې نه ښکاریدې چې د چین سره دې پرې نانډرۍ وولي . نـه بیا وروسته د چکوسلواکیې د نیولو نه عربو ته څه ګټه رسیدله ـ دا هغه پیښه وه چې عربان

يې ملاتړ ته راوبلل شول ، خو دې پېښې رښتيا په عربانو ډېره بده اغيزه وکړه . که دوی داسې احساس کولی چې سور پوځ او ملکري پوځونه يې بايد د داسې يو هيواد ځپلوته وليږل شي چې هلته کمونيست حکومت د چارو واکې په لاس کې لري ، دا به ورانديې داسې مفهوم افاده کړي چې کمونيستي نظام نه يواځې دا چې د تيرو تنو او خطا وو نه ډک دی ، بلکې بنايي په ځينو برخو کې په بنسټيزه توګه په غلطه وي . دې کار دا نظريه پوره پياوړې کړه چې روسان او امريکايان دواړه په برابره سويه په دې غلطو مفکورو ټينګار کوي چې د کمونيزم او سرمايه دارۍ لارې د نړۍ د نورو خلکو په وړاندې پرانيتې دي . د دې دواړو نه ښه نظامونه خانګا شته .



شوروي اتحاد ډېر ځلې په اريانونکې توګه د نړۍ په نورو برخو کې د قدرت په رښتينوالي باندې خپله پوره ناپوهي ځرګنده کړه . ځکه دوی خپل ځانونه د تاريخ د رښتيني ترجمانۍ يواځني ساتونکي بولي ، روسانو تل دا هڅه کړې ده هر چيرې پيښې د خپلو تجربو په رڼا کې وګوري . د عربو ـ اسرائيلو په لانجه به چې کله ورسره خبرې کيدلې دوی به خانګا دا د برست ليتوفسک د تړون او د جرمني د جلاکيدو سره ورته بلله ، په حقيقت کې دې دواړو بالکل توپير درلود . ډېر وخت وروسته يې په دې سر خلاص شو چې دا لانجه د امريکايانو د لوی پلان يوه برخه ده ، او دوي به تل د صهيونيزم پراختيايي عنصر بې‌اهميته او لږ ښود . دوی د اسرائيلو د مسئلې او په خپله خاوره کې د يهودانو د جنجال توپير نه‌شو کولای، او دا دواړه يې يو ډول مسئلې بللې. هغوی به داسې استدلال کاوه ، کله چې د ټولنيز پرمختګ لازمي شرايط برابر شي ، او کله چې د کارګرانو د پوړ يووالی په رسميت وپيژندل شي ، نه يواځې دا چې په شوروي اتحاد کې به د يهودانو لانجه اواره شي، بلکې د يهودو او عربو کارګري اتحادي به اوږه په اوږه د پروليتارياېي يووالي له پاره وړاندې ولاړې شي . په ۱۹۶۶ کال کې کوسيګين د تاشکند د غونډې له امله چې د هند او پاکستان جنګ يې پای ته ورساوه ، تشويق شو ، ناصر ته يې پيشنهاد وکړ دی به د 'عربو ـ اسرائيلو د تاشکند' په هکله فکر وکړي ، او دغه شوريدلې لانجه به آواره کړي . که داسې يوه غونډه شوې هم واي ، ده دا کار نه شو کولای ، دا غونډه به په تکزاس کې وای ، نه په تاشکند کې ، ځکه يواځني خلک چې په پوهې سره يې دا دوه خلک سره را نژدې کولای شول امريکايان وو .

د سومالیې لانجه د شوروي اتحاد وروستۍ ناکامي ښيي چې د یو سترقدرت په توګه د لویو مسؤلیتونو سره دوی دلته د خپل مسؤلیت او برخې اخیستلو پر طبیعت باندې په پوهیدلو کې پاتې راغلل . د شوروي مشران په دې پوی نه شول چې کله سید باري ، یو پوځي سړی او سومالیه ، دوی ته د پوځي مرستو د پاره ورنژدې شو هغه خامخا یواځې یو هدف درلود - چې وسلې ترلاسه کړي ترڅو د سومالیې هغه ځنډه برخې چې د بیلو بیلو کسانو له خوا اداره کیدلې او سومالیه يې ویشلې وه ، بیرته سره را یو ځای کړي . سید باري په خپل استدلال په چنو وهلو کې سومالیه ‹علمي سوسیالیزم› ته وقف وبلله ، په حکومتي رسمي نشان کې يې لور او ځټک ورځای کړل ، او د شوروي مشاورینو د راوستلو غوښتنه يې وکړه چې په کارونو کې د سومالیې خلکو ته لاره وښیي. روسانو یوځل بیا دا فکر وکړ چې د یو ځوان هیواد تر اغیزې لاندې راوړلو دپاره دوی دخپلې خوښې لاره ونیسي - وسلې او صنعت - د دوی پرمخ پرانیزي ، او د پخوا په څیر يې یو ځل بیا د بیرا کانو غوندې تلوار وکړه ، د سومالیې ګاونډیان او لویدیځ هیوادونه يې په دې ډول سخت راوپارول . دا ځلې که څه هم دوی نه غوښتل د مصر په څیر سهوې وکړي . دلته لوی بند نه ؤ ، د هغې نه ډیر کوچني شیان وو . د غوښې د پاکولو او د بلیوکې د اچولو فابریکه او دکبانو د پاکولو کښتۍ به د دغه هیواد شپنوته د کټې کولو صنعت راوړي او د صنعتي پرولتیاریا هستې به ورته جوړې کړي . شوروي به هم له دینه ګټه واخلي . خو دغه نوې صنعتي پرولیتاریا په شمیر کي د یو څو سوونه زیاته نه وه ، او د دغو کارګرانو ډوله ګټه د غوښې په بندو دبلیو کې د شوروي بازارته تلله . هغه ډول کبان چې دلته پاکیدل شوروي اتحاد ته وړل کیدل ، او داسې ویره وه چې د سومالیې ساحلي اوبه به ډیرې ژر له کبانو خالي شي .

بیا د سومالیې ګاونډي او رقیب هیواد حبشي د شوروي اتحاد نه د وسلو غوښتنه پیل کړه ، او دې کار دوی ته د ډیر زیات فعالیت احتمال او اسانتیاوې په لاس ورکړي . نو شورویانو د خپل ملاتړ مخ دیخوا ته راواړاوه ، او د دوي لومړني انډیوال سومالیې ځان شړلی ولید . دا چې په دې وروستیو وختو کې د عرب لیګ غړی شوی ؤ ، د هغوی نه يې د مرستو غوښتنه وکړه . یو عربي هیئت هلته لاړ چې وګوري څه کولای شي . د دوی راپور داسې وښودله چې سید باري لګیا دی د روس نفوذ هلته له منځه وړي . د سومالیې د سوسیالیزم نه د ‹علمي› کلیمه لیرې کړل شوې ده، د سومالیې د حکومتي نشان نه لور او ځټک

ایستل شوي دي او د شوروي متخصصین شړل شوي دي . د سومالیې لوي ګټه رسونکی دوست، شوروي اتحاد ، اوس د سومالیې په لومړی درجه دښمن بدل شوی دی . دومره په آسانۍ سره راغئ ، او دومره ژرېې اوړې وځنډلې ، د شوروي نفوذ د نړۍ په یوه داسې برخه کی ؤ چی د هغې سیمې په هکله یې ډیره لږه پېژند ګلوي درلودله .

البته دا خبره رښتیا ده شوروي لـه سومالیې نه حبشي خوا ته اوښتلو سره د لنډې مودې څه ګټې ترلاسه کړي . په لومړي سر کی یې وکـولای شو څان د قانونیت قهرمان وښیي ، او د موجودو سرحداتو تقدس خپله شوروي اتحاد ته ډیر ارزښت لري ، هماغسی چی اکثرو افریقایي هیوادونو تـه ارزښت لـري . دویم ، دوی وکولای شو د لویې پیمانې پوځي عملیات وکړي ، د افریقې په شاره څمکه کی یې د زیاتو لوژستیکي ستونځو سره سره په پوره بریالیتوب سرته ورسول ، هاغه چی امریکایانو نه شو کولای . خو شورویانو دا ټول پـه پوره بریالیتـوب سره تر سره کړل . دوی هغه هدفونه ترلاسه کړل چی په نظر کی یې درلودل ـ د حبشي د پـوځ نـه یو ښه اغیـزمـن پوځي قـوت جـوړول او د اوګادیـن نـه د سومالیایانو ایستل . دا هغه څه دي هغـو ټولـو خلکـو چی پـه افریقا کی یې د روسانو پرمختګ ته په ویره کتل او که په هیله ، باید په ډیر غور سره یې دې ته پاملرنه کړې وای .

د افریقا د ښکر نه پرته په نورو ټولو ځایونو کی شوروي اتحاد د جنجالونو سره مخامخ ؤ ، دا ستونځی د زړو استعمار چیانو نه پاتې وې ، چی هوښیارو خلکو به ورسره څان په جوال کی نه وای اچولای ، عراق او ایران ، عراق اوکویټ ، الجزایر او مراکش ، حبشه او کینیا نور هغه ځایونه دي چی بهرني قوتونه پکی باید په ډیر پام قدم واخلي ، د یوې یا بلې خوا د نیولو نه ډډه وکړي ، او که چی کومه خوانیسي داسی نه شي چی غلطه خوا ونیسي . دا یو داسی خطر دی چی هیڅکله هم شوروي اتحاد پـري تـر هغې پوی شوی نـه دی ترڅو چی یې وخت د لاسه نه دی وتلی .



دا یواځی د حکومتونو په سویه په اړیکو کی نه ده چی شوروي اتحاد پکی په اریانونکي توګه سوړوالی ښودلی دی . تقریباً د دریمې نړۍ ټولـو نمایندګانو چی د شوروي اتحاد سره یې معاملې کړي دي داګرانه مونـدلې چی د دوی سره رښتیني شخصي علایق ټینګ کړي ، د لاس لاندې مسئله بانـدې خـبرې کیـدې

شي ، خو بس همدومره . د دې نه زيات ، لفاظي او د شعارونو تبادله د خبرو او استدلال ځاى نيسي . دا يواځې د دريمې نړۍ په هغو هيوادونو باندې د تطبيق ورنه وه چې په لوړه سويه خبرې کوي ، بلکې د ټيټې رتبې کسان هم چې د شوروي مامورينو ، بيروکراتانو ، کوندي مشرانو او سياستمدارانو سره مخامخ کيدل د همدې ډول جنجالونو سره لاس او ګريوان وو .

نو تراوسه په تر ۲۰۰,۰۰۰ نه زيات عربان ، زده کوونکي او مامورين ، وي چې يو وخت يې په شوروي اتحاد کې ژوند کړى وي ، او ښايي د ۱۲۰,۰۰۰ نه زياتو روسانو په خپله مسلکي سويه په عربي نړۍ کې وخت تير کړى وي . خو دوى بالکل سره ګډ شوى نه دي . هيڅ يوه عرب هم د يو روسي کورنه دى ليدلى ، او نه کوم روسي د يو عرب کور ليدلى دى . کيدي شي د يو روسي او يو عرب ترمنځ چې څنګ په څنګ يې کارکړى وي څه دوستي او ملګرتيا را پيدا شوي وي ، خو دا دوستي هيڅکله هم په يو شخصي نژديوالي او تماس نه ده بدله شوې . د يو بل سره د خبرو او تفاهم کولو ارزو ښايي را پيدا شوي وي ، خو د دې کار استعداد او واک تل د نشت په اندازه ؤ .

په دې ارتباط يوه احصايه د زړه پورې ده . د هغو ۲۰۰,۰۰۰ عربونه چې په وسله والو پوځونو ، انجنيرۍ او نورو مسلکونو کې د روزنې ، يا د سوداګرۍ او نورو دوه اړخيزو موافقو د پاره شوروي اتحاد ته تللي وو ، د سلونه کمو به يې د روسي لجونو سره ودونه کړي وي ، په داسې حال کې چې د ۱۹۵۰ په وروستيو کلونوکې د ۱۵,۰۰۰ عربو څني چې امريکې ته د زده کړې د پاره لاړل - ۷۰۰۰ يعنى نيمايي شمير هلکانو يې د امريکايي نجونو سره ودونه وکړل . او هغه عربان چې د روسي نجونو سره يې ودونه وکړل په ژوند کې له ډيرو ستونځو سره مخامخ شول . دا خبره د شوروي اتحاد د مقاماتو له خوا په پريمانه توګه څرګنده شوې وه چې د شوروي نجونو د مړونو هلته هرکلى نه کيږي .

شورويان په کلتوري تبادلاتو کې هم ناوړه تثبيت شول ، د عامه اړيکو په ټولو برخو کې بې مزې دي . د مثال په توګه داسې يو وخت ؤ چې د شوروي د فرهنګي چارو وزارت په قاهره کې د عديان سينما په اجاره ونيوله چې روسي فلمونه پکې وښيي . خو په هره ښودنه کې به په ټوله سينما کې د دوه دري کسانو نه زيات په تالار کې نه وو . دا د دې امله نه چې خلک کوندې د روسي ژبې يا خلکو سره دښمني لري (په عربانو کې يو شمير خلک ، بيا هم ، د امريکايي

# لومړنۍ سرې څپې

روس د ۱۹۱۷ کال نه وړاندې په جنوب کې تودو اوبو ته د ځان رسولو له پاره دوه لارې نیولې وې . د ترکیې او د خلیج د تنګي له لارې مدیترانې ته او د ایران له لارې د هند سمندر ته . په دې ټول وخت کې عربی نړۍ د عثماني امپراتورۍ یوه برخه وه . که څه هم یو ځل یو څه وشول چې د راتلونکو پیښو په هکله یې لږه پیش بیني وکړه ، خو دا د تل له پاره له یاده لویدلې ده . په ۱۷٦۸ کال کې مملوک حکمران علي بې الکبیر د مصر د خپلواکۍ اعلان وکړ . د عثماني امپراتورۍ حکومت په خپل سمندري پوځ امر وکړ چې سکندریې ته لاړ شي ، خو علي بې د روسانو سره اړیکې ټینګې کړې او څه وسلې او کارتوس یې ترې ترلاسه کړل . دا د روس سره د مصر د وسلو لومړۍ معامله وه .

د ۱۹۱۷ کال نه وروسته روس په منځني ختیځ کې خپلو علایقو ته دوام ورکړ ، خو دا وخت روس په دوه لارې کې بندؤ ، د تزار د وخت د څمکو د لاندې کولو د سیاست سره دا مفکوره هم ملګرې شوه چې ګوندې روسیه د نړیوالو انقلابونو کور دی . په تیرو شپیتو کلونو کې کله کله د دولت او انقلاب غوښتنې سره یو ځای شوې دي ، خو بیا کله کله هم دا غوښتنې یو د بل سره په مقابلې کې شوې دي .

د روس د دولت له نظره لومړنۍ اهمیت جغرافیې او نژدې خوا وشا پرتو سیمو ته ورکول کیږي . کله چې برژنف یا د روس بل مشر په منځني ختیځ کې د 'رواغوښتنو' په هکله غږیږي ، هغه تل د نژدیوالي ، خبره کوي . دویم دا چې په سیمه کې طبیعي زیرمې دي ، د ټولو نه مهم یې تیل او ازاد سمندر ته لاره ده که څه هم روسان په دې هکله ښکاره خبرې نه کوي .) دریم ، په سیمه کې د استعماري ځواکونو شته والی دي چې شوروي مشران یې نوې استعمار بولي . څلورم ، د سیمې د مسلمانانو هیوادونو سره د شوروي اتحاد د مسلمانانو لږکیو دیني او عقیدوي اړیکې دي . روسان پوهیږي چې امریکایانو

فلمونو په خبرو باندې پوهیږي؟) ،خو دا د فلم په کیسه او موضوع . منځني ختیځ د نړۍ د کیسه ویونکو سیمو نه یوه سیمه ده ، د دې ځای د خلکو کیسې ډیرې خوښې دي . دوی ډیره مینه لري چې کیسې جوړې کړي او غوږ ورته ونیسي . په دې کې شک نشته ، د روس خلک هم داسې دي ، خو ، که داسې وي ، نو دا کمزوري باید مخامخ د نورې نړۍ خلکو ته ښکاره نه شي . د خروسچف غولدې یو دروند مشر به خپل اوریدونکي په کیسو خوشاله کړي ، خو روسي فلمونه د ساده‌ګۍ او بیړاتوب نمونې دي ، ادبیات او ژبه یې د اوریدو نه ده . عربان د ټولستوي او دوستوفسکي کتابونه په مینه لولي ، خو داسې شیان دوی ته وړاندې کیږي . په قاهره کې د شوروي په فرهنګي مرکز کې د لینن کلیات دومره ارزان په ۳. پیاسترو پلورل کیږي ، خو دا هغه څه نه دي چې عربان یې غواړي . همدارنګه د روس ځواني د بالټ اثار ډیر اعلي دي ، خو نوي بالټونه ډیر بې خونده دي .

جنجال د هغه څه نه راپورته کیږي چې ما وختي ورته ګوته نیولې ـ هغه بیلا بیلې موضوعګانې چې شوروي مشران یې د عامه ذهنیت د پاره لري . دوی یې داسې ویني لکه یو شی چې د پوهنې او تبلیغاتو پواسطه قالب بندي شوی وي ، نه داسې یو شی چې خلک یې سیال وکړي ، غوږ ورته ونیسي او خوند تري واخلي . له دې امله دي چې دوی نه شي کولاي د نړۍ په نورو برخو کې عوامو ته څه نوې مفکوره ورکړي . داسې ویل کیږي چې د افریقې په هر نوي ازاد شوي هیواد کې مشران دوه شیانو ته فوري پاملرنه کوي ـ د تلویزون سټیشن (که رنګه وي ډیر ښه) او د بیرفابریکه . دا هغه وسایل دي چې د دې لارې دوی ځانونه عوامو ته ور رسولی شي . خو په دې دواړو کې روس ته په طمع کیدل هیڅ ګټه نه لري ، په داسې حال کې چې امریکا ، جرمني فرانسه او برتانیه دې شیانو ته‌په پوره خوشالۍ ځواب ورکولی شي . همداخبره د حکومت او رعیت ترمنځ د تفاهم کولو په برخه کې هم رښتیاده ـ د خبرونو رسولو مؤسسه .

زما خپله یوه تجربه په دې برخه کې د شوروي د کمزورۍ ثبوت دی . هغه وخت چې د ناصر د جنازې د پاره کوسیګین قاهرې ته راغئ ، زه د اطلاعاتو او کلتور وزیر ، او د ده د کوربه هیئت مشروم . دا هغه وخت ؤ چې امریکایانو په دې هکله ډیر غالمغال پیل کړی ؤ چې مصر د اور بند نه وروسته خپل یو شمیر راکټونه د سویز د کانال غاړې ته راوړي دي چې په کار یې واچوي .

د امریکایانو د خفګان راپورونه د مصر په اخبارونو کې راتلل ، او کوسیګین له دې امله په ما ملامتي اچوله . هغه په پوره خواشینۍ سره زمانه پوښتنه وکړه ، چې ولې مونږ دغو تورونو ته د خپرولو اجازه ورکوو ؟ مونږ د اسرائیلو په لاسو کې لوبېږو. خو ما د راپورونو د خپرولو د مخنیوي د نه کولو د پاره دلیل درلود زه په دې پوهېدم چې په عوامو کې لا تراوسه د اور بند په هکله باور نه دی پیدا شوی ، نه په مصر او نه په نوره عربي نړۍ کې . ما فکر کاوه چې که خلک واوري د اور بند د عملي کولو په هکله اوس هم نانډرۍ ویشتل کېږي ،کېدي شي په دې باندې به خلک څه ناڅه قانع شي . ما کوسیګین ته دا خبره وکړه ، خو هغه مې قانع نه شو کړای . د عربو عامه ذهنیت سم نه ؤ ، ټول راپورونه چې د بهرنه راتلل باید دلته تاو را تاو شوي وای .



د دې ټولو ناکامیو او کوتاهیو سره سره له دې نه سرې سترګې نه شي پټولای چې د انقلاب نه را وروسته شوروي اتحاد د پوهنې او روزنې ، روغتیا د کارونو پیدا کولو ، تخنیک او صنعت ، علمي څېړنو او نورو برخو کې د پاملرنې وړ پرمختګ کړی دی . له بده مرغه دوی په دې نه دي بریالي شوي چې خپل دغه بریالیتوبونه په بهر نړۍ کې د پوهېدلو وړ په یوه بڼه وړاندې کړي . په حقیقت کې که د دوی دغه بریالیتوبونه د دوی پرضد په کاز اچول شوي دي .

د وسلو تیاروونکي په توګه د شوروي رول یوه خبره ده . د دوی رښتیا خپل هغه نفوذ ډېر خوښ شو چې د وسلو د تیارولو د یوې منبع په توګه یې ترلاسه کړ ، خو دوی نه غوښتل د دوی په دې ځانګړی رول دې د خلکو پاملرنه را ټوله شي . بیا هم په دې برخه کې د دوی کار ټکني ښکارید . د کلونو په اوږدو کې دوی عربي هیوادونو ته د ۲۰-۳۰ زرو پورې ټانکونه ، ۷-۸ زرو پورې پوځي الوتکې او ۱۵-۱۷ زرو پورې توپونه برابر کړي دي، د بل هیڅ ځای نه د دومره وسلو د ترلاسه کولو امکان نه ؤ . د عربو او اسرائیلو د اکتوبر په جنګ کې د دوي دواړو د دوو زرونه زیات ټانکونه له منځه لاړل . دا د دوه دري کالو په موده کې د ټولې اروپا د ټانکونو د تولید د اندازې سره برابر دي.
په ۱۹۷۵ کال کې یو وخت داسې هم ؤ چې رئیس سادات د فرانسې سره د میراژ جنګي الوتکو د را نیولو یو لس کلن تړون باندي موافقه وکړه . دا د شورویانو سره د هغوی د متخصصینو د شړلو د لانجې نه وروسته وشوه . خو د دې نانډریو په یوه لنډه شان وقفه کې شورویانو مصر ته یو شمیر مګ ۲۳ الوتکې ورکړې ،

او په يوه مياشت کې له شوروي اتحاد نه دومره مک الوتکې مصر ته را ورسيدلې چې په دري کالو کې دومره ميراژ الوتکې له فرانسې نه رانغلې .

د دوی وروستي تخنيکي او صنعتي پرمختګ په منځني ختيځ کې د شوروي د دريځ د ښه کيدلو سره هيڅ مرسته ونه کړه . برعکس ، څنګه چې اکثره عربي حکومتونه د کمونيزم سره وران دي ، دوی اوس د نوي تخنيک څار نه هم کوي ، په دې ډول دوی کولای شي خپل دښمنان په اسانۍ سره په قابو کې راولي . او له دی امله چې د شوروي اطلاعاتي خدمتونه ډير کمزوري دي ، دوی تراوسه هم په عربي نړۍ کې هيڅ اغيزه نه لري . يوی وروستۍ سروې چې په مصر کې څومره خلک بهرنۍ راډيوګانې اوري ، وښودله چې د مونت کارلو راډيو په لومړۍ درجه اوريدونکي لري ، بيا د امريکې غږ او بيا بي بي سي ده . چين تر ټولو ښکته دی ، څکه د دوی پروګرامونه ډير لري اوسم نه اوريدل کيږي ، خو د مسکو عربي خپرونه چې په يو ډير قوي ترانسميتر سره په منځنۍ څپو خپريږي ، هم تر ټولو لږ اوريدونکي لري . د عراق ، ليبيا او اسرائيلو راډيوګانې تردې زيات اوريدونکي لري ، او دا څکه چې د دوی پروګرامونه د اوريدونکو ذوق او خوښې ته لږه پاملرنه هم نه کوي ، لکه پراوادا چې د خپلو لوستونکو د خوښې او ذوق هيڅ پروا نه ساتي . هيڅ ډول د ساعت تيرې موضوعګانې پکې نشته ، او عملاً ټول داسې شيان دي چې نورو ځايونو کې هغه خبرونه نشي بلل کيدي . تبصرې او پندونه پکې دي . چې دا دواړه په عربي نړۍ کې ډير لږ بازار لري .



د عربي کمونيستانو په وړاندې د شوروي سياستونه ډير ګډوډ وو ، او همدارنګه عربي کمونيست ګوندونه ډير بې نظمه او په زياتو عربي هيوادونو کې غير قانوني وو . په عراقي کابينه کې يو کمونيست ناست و ، خو هغه ښه په دې پوهيده چې رښتينې پريکړې له کابينې بهر کيږي او دی د دوی ملګری نه دی . په حقيقت کې يو کوچنی دليل شته چې په يو عربي هيواد کې ولې ځوانان هغو زړو او ښوانو شعارونو ته را کښل کيږي چې په مسکو کې يې ګوري. د خبرې غلطي په دې کې ده ، هغه هيواد چې بايد د خپل راتلونکي نماينده ګي وکړي ، لګيا دی د تيرې زمانې شعارونه تکراروي ، په داسې حال کې چې په اصطلاح مرتجع هيوادونه د نويو نظرياتو د اخيستلو ور معلوميږي . د ځينو ځانګړو مراسمو او کليزونه پرته امريکايي مشران هيڅکله هم په خپلو بيانيو کې د واشنګټن

او جیفرسن د خولې مثالونه نه راوړي ، خو د شوروي هر مشر باید د لینن ، مارکس او انګلز د خبرونه اقتباس وکړي ترڅو خپل انقلابیتوب او اصلیت تثبیت کړي . د اروپایي کمونیزم د پرمختګ په هکله د اریانتیا خبره داده چې ډیر وخت یې په پوخوالي تیر شو او اوس یې هم په ربښتینوالي باور نه شي کیدی .

په عربي نړۍ کې هم اروپایي کمونیزم ته ورته د یو غورځنګ نښې او علامې په راتکیدو ښکاري . لکه څنګه چې لیدل شوي د لومړي نړیوال جنګ نه وروسته په عربي نړۍ کې کمونیزم تر دري بیلا بیلو پړاوو نو نه را تیر شو . لومړی د تیوریسنانو نسل راغئ ، دوی بالکل ونه شو کولای د خلکو سره وغړیدي شي ، نو دا ځکه ډیر ژر خړ شول او په خپله مخه لاړل او د پولیسو له دوسیو نه یې پرته بل چیري سر راپورته نه کړ . بیا هغه نسل را پیدا شو چې د دویم نړیوال جنګ تر پیل کیدو وړاندې کلونو کې په فعالیت لګیا ؤ . دا نسل هم تقریباً خلکو ته په رسیدلو کې د پوره ماتې سره مخامخ شو ، خو څه شي چې د دې نسل د ناکامۍ اصلي علت بلل شوی دا ؤ چې د دوی د مشران تول پردي او یهودان وو . د ۱۹٤٥ کال نه وروسته کمونیست نسل باندې تر لومړیو دوو نسلونو زیات شمیر کیدي شي ، خو دا هم رسمي فشارونو او داخلي بې‌اتفاقیو کمزوری کړ ، یواځې په یو یا دوو ځایونو کې پرې د یو قوت شمیر کیدي شو .

اوس د کمونیستانو څلورم نسل په راپورته کیدو دی ، د پخوانیو نسلونو څنې راوځي خو یو شمیر بیخي تازه او نوې څیرې هم پکې دي . د 'نوي کین برسیره مائوستان ، تروسکستان او نور ـ دا هغه کسان دي چې په ملي مبارزه کې یې فعاله ونډه اخیستې ده ، او دوی ډیره روښانه ، شخصي پوهه لري چې دا مبارزه د څه د پاره ده . د اروپایي کمونیستانو غوندې دوی هم د خپل واک او استقلال د ساتلو اندیښنه کوي ، او دې ته تیار نه دي چې د مسکو اوچت هوښیارتوب ته غاړه کیږدي . د دغو نویو کمونیستانو نسل د فلسطینیانو په منځ کې هم لیدل کیږي ـ داسې سړي چې د خلکو په منځ کې د کارکولو زیاته تجربه لري او پوهیږي ، ځانګړي پوهه لري چې د دین او بورژوازانو د نفوذ سره په ټولنه کې څه ډول سلوک وکړي . داسې خلک په ربښتیا سره مسکو ته مشورې ورکوي ، او د شوروي مشرانو له خوا یې کیدي شي درناوی هم وشي ، سره له دې چې د دوی د مستقل مزاج له امله ورسره مسکو دومره خوشاله هم نه وي . دوی په دې ښه خبر دي چې دغه نوی نسل د فرانسې ، هسپانیې او

ایټالیې د کمونیستو ګوندونو سره اړیکی لري ، ښایی ډیر نږدي اړیکي ، دا اړیکي لکه چې لیدل شوي دي ، په ځینو حالاتو کی د دوارو خواو ځوانیو رواجونو ته رسیږي .

دغه عربي کمونیستان اوس هم مسکو خپل مرکز بولي ـ دوی څه ناڅه منظمې غونډې کوي ، په کال کی دوه ځلې ، په هغو مؤسسو کې چی د شوروي اتحاد د کمونیست ګوند د مرکزي کمیټې پورې تړلې دي ـ خو دوی په منځنی ختیځ کی هم د یو بل سره ګوري ، اکثره وختونه د ډیرو معمولي دلایلو له مخې د عربي نړۍ نه بهر په قبرس یا اتن کی سره ویني . داسی ګومان کیږي د دوی عمومي نظر دادی چی د انقلاب او ټولنیز پرمختګ د راوړلو د پاره باید د لنډو لارو د په کار اچولو نه ډډه وشي ، لکه د یو سړي پورې ټول شیان تړل ، که څه هم هر څومره افسانوي مشر وي . په کراره دې وي ، خو د خلکو غوښتني دې په پوره باوري توګه تر سره شي .

کیدي شي داسی یو وخت راشي چی انفـرادي کمونیستان او سیمه ییز کمونیست ګوندونه د خپلو هیوادونو په سیاسي ژوندکې کټـور رول ولوبوي ، که څه هم زه ګومان نه کوم دوی به کله هم د مشرتوب رول په غاړه واخلي . زما په یاد دي ما دا خبره د عربي نړۍ یو ځواني مهم کمونیست شفیع احمد ته یو وخت وکړه ، دی د سوډان د کمونیست ګوند غړی ، یو ډیر هوښیار سړی، د لینن د سولې د جایزې وړونکی او په ١٩٧١ کال کی په خرطوم کی د کیڼ لاسي ناکامې کودتا له قربانیانو څخه ؤ . ما ورته وویل : 'په مارکسیستي افکارو کی یو شمیر ډیرې ښې او فوق‌العاده نظریې شتـه ، خو که ته ما ته د هغه مارکسیزم د وعظ سره راشي چی مارکس کاوه ، لینن او ستالین تطبیق کړ ، خروسچف د هغې په هکله خبرې کوي ، او داسې راتـه ووایې چی دغه لار باید مونږ هم ونیسو ، مجبوریم درته ووایم ، ببښنه غواړم ، څکه دا د نړۍ په دې برخه کی هیڅ کار نـه شي کولای . دا چی ته وایې دلته به یوه ورځ کمونیستان پـه اکثریت کې وي ، بیخي پوچه خبره ده . ستاسي تخم به هیڅکله هم ونـه نشي ، خو که تاسې د ملي ځواکونو سره خبرو تـه ور ورانديې شئ ، تاسي بـه سره (کود) شی'. یواځنی ځواب چی شفیع ووایه ، هغه ډیر ښه توکي سړی ؤ ، 'څـه ډول سره ؟ کیمیاوي سره که حیواني سره ؟'.

خو ، بیا هم عقیدوي کمونیزم به هیڅ یا ډیر لږ څه د ورانديې کولو له پاره ولري ، ټو لنیز تاو تریخوالی او هغه بې عدالتي چې په عربي نړۍ کی شته دا خبره

رښتيني کوي چې دلته به خامخا انقلابي او بنسټيزې نظريې وده کوي . سړی بايد په دې اعتراف وکړي چې عربي حکومتونه د نويو نظرياتو د تشويقولو سره همدومره بې علاقې دي لکه شوروي اتحاد چې دی ، خو په عربي نړۍ کې په عمومي ډول په پرله پسې توګه د نظرياتو باران او جريان روان دي . ټول عربان د يو ډول موضوعګانو په هکله خبرې کوي ، دوی ټول د يو ډول ستونځو سره لاس او ګرېوان دي . په مصر ، عراق يا ليبيا کې د ننه به څه خبره نه وي ، خو د قاهرې او بيروت ترمنځ ، د بيروت او بغداد ترمنځ ، د بغداد او دمشق ترمنځ ، د دمشق او رياض ترمنځ او داسې نورو ترمنځ د نظرياتو تبادلې کيږي . دا د عربانو رښتيني خبرې دي .



اوس شوروي اتحاد په دې پوی شوی دی چې د دوی د پاره يواځينۍ پاتې لاره داده چې کښيني او انتظارو باسي څو د تاريخ جبر خپل کار وکړي . طبعاً که په کرېملين کې کوم بدلون راشي ـ که د زړو مشرانو پرځای نوي کسان د هغوی ځای ونيسي چې د نويو نظرياتو سره څه ناڅه جوړ وي ، دې ته تيار وي چې خطرونه قبول کړي او تجربې وکړي ، وکولای شي د خپلو سرحداتو د بهر خلکو او غورځنګونو نه ځانونه خبر کړي ، نو کيسه به بدله شي . خو د دې هيڅ نښه نښانه نه ښکاري .

څه شی چې خامخا راتلونکې ښکاري دادی چې په منځني ختيځ کې راتلونکې يوه زمانه د تومنې د کيدو او د سختې کډوډۍ يو وخت دی . دا ډګر دوو عواملو نيولی دی ـ د تيلو دولت او اسرائيلو . د تيلو پانګه زړو ځواکونو ، قبايلو ، سوداګرانو ، بورژوازانو او د ځمکو خاوندانو ته ډير قوت ورکوي ، په زياتو عربي هيوادونو کې اوس هم د دولت ماشين د دغو کسانو په لاس کې دی . حتی د مصر په څير هيواد چې هلته د تيلو ګټه ډيره لږه يا بيخي نشته ، هم د سيمې د غني محافظه کارو او زړو رژيمونو د خوښې تر شرايطو لاندې راځي ، ځکه د هغوی په مالي مرستو پورې يې ژوند تړلی دی . هيڅکله هم د دولتي ماشين قدرت زيات شوی نه دی ، او که هم پوځ او څارونکي دولتي مؤسسې ښې وسله والې او مجهزې شوې نه دي . د اسرائيلو پرضد د پرله پسې مبارزې جاري ساتل د ټولو کارونو د وروسته پاتې والي او نه بدلون پلمه بلل شوې ده . دې کار د سياستمدارانو هلې ځلې او د دولتونو مالي امکانات ټول د ځان پورې محدود کړي دي .

په دې وروستيو کې عربانو ته د خبرو له لارې د اسرائيلو سره د لانجې

د اواري د لټولو پوست شوی دی . زه فکر کوم دا یوه خیالي خبره ده ، خو که دا همداسي ثابته هم شي هلته یو بل امکان شته چي له نظره باید ونه غورځول شي . هغه دادی چي ځیني عربي حکومتونه به د صهیونیزم د دروند بار سره د مخامخ کیدو له امله دومره ستړي شي چي مجبور به شي په هره بیه چي وي سوله ومني . که داسي وشي - د عربانو د تیرو ډیرشو کالو مبارزه به پای ته ورسیږي ، بلکي بې‌نتیجې به وچه شي - او عربي نړۍ‌به یوې نوي زمانې ته ورننوځي .

عربي هیوادونه نبي خوا ته روان دي ، او په څرګنده لګیا دي ځانونه پیاوړي کوي . خو د سطحې لاندې هر ډول تاو تریخوالی د جوړیدو په حال کې بنکاري . په دې عملیه کي پوهنه او روزنه ، صنعتي کیدل ، تخنیک ، او د نړۍ د نورو هیوادونو سره د اړیکو ساتل دا ټول ډیره د پاملرنې وړ ونډه او اغیزه لري . هر ځای کي د بدلون راوستلو ضرورت ورځ په ورځ زیاتیږي ، او د بدلونو سره د حکومتونو د ځان برابرولو او تیارولو وړتوب په هماغه تناسب کمیږي . چاودنه خامخا کیدونکي ده .

دا حالات چي چاودنه کوي شوروي اتحاد پکي خامخا راګیر دی . د امریکې د سولې چترۍ د دې مخنیوی نه شي کولای . د عربي نړۍ او شوروي اتحاد یو بل ته جغرافیوي نژدیوالی ، او د دوی د ربنتینو ستراتیژیکو او د سوداګرۍ د ګټو کیدون د دې کار د تضمین د پاره کافي دي . یو ځل بیا به وګورو چي د حالاتو جبر به شوروي اتحاد منځني ختیځ ته په را ننه ایستلو مجبور کړي ، دماغسي چي په ۱۹۵۵ کال کي وشول . یو بل برید به پیل شي . آیا دا چي دا دویم برید به د لومړي برید پرتله بریالی وي که نه ، دا د شوروي اتحاد او سیمه ییزو کمونیستو ګوندونو په هغو تجربو پورې تړلې ده چي په تیره موده کي یې څومره زده کړې دي . که تر هغې وخته پورې شوروي اتحاد په دې پوی شوی وي چي راتلونکی یواځې د پخوانیو اقتباسونو او تقلید کولو په وسیله تنظیم کیدی او جوړیدي نه شي ، تاریخ یواځې لاربنوونه کوي ، تاریخ د اصولو او قوانینو کتاب نه دی - او که سیمه ییز ګوندونه وکولای شي ځانونه د بهرنیو قوتونو د غلامۍ او نوکرۍ د زهرو نه پاک کړي ، نو د عربو او شوروي اتحاد راتلونکي اړیکي به د تاریخ یو اریانونکی فصل پرانیزي . یوه دویمه موقع به ترلاسه شوې وې ، او دا ځل به کیدی شي چي خطاء نه شي .

# SPHINX & COMMISSAR

## The Rise and Fall of Soviet Influence in the Middle East

*By*

**Mohammad Hassanein Heikal**

*Translated in Pashto By*

**M. Asef Ikram**



**Writers Union of Free Afghanistan (WUFA)**

**NO. 32-34**

د اسلامي تړون په مفکوره لوبې کولې ، د هغوي يو هدف په دي کي داؤ چي دا کار به د شوروي په مسلمانانو باندي ډيره اغيزه واچوي .

انقلابي روس طبعاً دي تکي ته ډيره پاملرنه وکړه چي د دوي د سرحداتو جنوب ته څه تيريږي . په ۱۹۱۸ کال کي د ختيځ د ازادۍ له پاره اتحاديه جوړه شوه . په ۱۹۱۹ کال کي چي په اروپا او منځني ختيځ کي جنګ پاي ته ورسيد مصر اوهند دبدلونونو په پړاو کي وو ، او د دوي د آزادۍ ګټلو مبارزي د لينن پاملرنه ځانته راواړوله . د ۱۹۲۰ کال په سپتمبر کي په باکو کې د ختيځ د خلکو کانګرس غونډه وکړه ، دا غونډه د ګريګوري زينوويو تر رياست لاندي وشوه چي پکي د نورو کسانو برسيره ۲۳۵ کسو ترکانو ، ۱۹۲ کسانو ايرانيانو او پارسيانو ، ۱۵۷ کسانو ارمينايانو ، ۸ کردانو او ۳ عربو برخه اخيستې وه. زينوويو د برتانوي امپرياليزم پرضد د مقدس جهاد غږ پورته کړ ، هيڅنونو خبري اتري وکړي او د مصر انقلابي موقعيت يې تر بحث لاندې ونيوچي څنګه دا شرايط په داسي يو سرتا سري غورځنګ بدل شي چي د آسيا او افريقا خلک د استعمار پرضد هغه اصول او لارښوونې عملي کړاي شي چي لينن او تروتسکي يې بنسټ ايښي دي ، ترڅو د شوروي روسيې او د صنعتي نړۍ د کارګرانو سره د نړيوال انقلاب دريمه ستن جوړه کړي .

د ستر قدرت د دغه دوستانه سلوک طبعاً ډير ښه هر کلي وشو ، په تيره بيا په عربو باندي د بلشويک هغي عمل ډيره اغيزه وکړه چي د سيک پيکاټ د تړون متن يې خپور کړ ، په دي کي د لومړي ځل له پاره دا خبره را ښکاره شوه چي انګليس او فرانسي څه ډول پلان درلود عربي نړۍ په خپلو منځو کي وويشي . د اتا ترک نه د شورويانو ملاتړ هم په عربي نړۍ کي د شوروي په دريځ ښه اغيزه وکړه ، هغه د خلافت په ړنګولو سره محافظه کارانو ته تکان ورکړ ، د خلکو اکثريت اتا ترک د خپلې خوښي ملي آزادي بښونکي سړی باله .

د عربي نړۍ د کمونستانو په منځ کي يوه کيسه ده ، لينن د وفد ګوند مشر سعد زغلول ته يو تلګرام وليږه او هغه يې آزادۍ غوښتني ته را وباله ، د مصر له انقلاب نه يې ملاتړ وکړ او د مصر خلکوته يې په مبارزه کي د مرستو وعده ورکړه ، چي د وسلو برابرول هم پکي شامل وو . په ۱۹۲۴ کي چي دمصر کمونست ګوند د زغلول سره ناندرۍ پيل کړي ، په ابلاغيو کي يې دا خبره

ځرګنده کړه چې دوي دا تلګرام لیدلی دي ، دوي ویل چې تلګرام له مسکونه رالیږل شوي ؤ او د انګریزانو د سانسور د مامورینو لاس تــه ورغلی ؤ . خو ددي ثبوت نه شته چې تلګرام رښتیاؤ . کومه خبره چې رښتیاده هغه داده چې د ۱۹۱۹ کال په مارچ کې دکمینټرن په لومړي کانګرس کې په دي ټکي خبري وشوي چې په مستعمرو کې دي ښکاره بغاوتونه او انقلابی نا ارامۍ را پیداشي ترڅو په اسیا او افریقا کې د استعمار لاندي خلک آزادۍ ته ورسیږي او د اروپا د کارګرانو دکتاتوري به ستاسي د مبارزو ملاتړ وکړي . لینن د مصر او هند په هکله وویل چې دوي باید خپله خپلواکي ترلاسه کړي ، محمد فرید چې د مصطفي کامل‌نه وروسته د مصر د ملي ګوند مشر ؤ او سویس ته تښتیدلی ؤ ، لینن ته دمننې پیغام ولیږه .

میکویان یو وخت بن بیلا ته وویل هغه وخت چې لینن په لندن کې ؤ ، په منځني ختیځ کې د اسلام څیړنې پر هغه ډیره اغیزه کړي وه . په ډیرو ځایونو کې هغه دا خبره کړي ده چې اسلام یو کامل او مترقي دین دي : اسلام یو وخت ډیر لوي بریالی تولنیز انقلاب وکړ او اوس هم د خپلو پیروانو په ژوند کې ډیري ژوري ریښې لري هغه اسلام او بودیزم د بې وزلي پوړ دین او عیسویت يې د ظالم پوړ دین باله .

همدارنګه لینن د ختیځ‌دهیوادونو په ضرورتونو او غوښتنو ډیر ښه پوه ؤ. دکمینټرن په دویم کانګرس‌کې په دي هکله دده د دوو خبرونه په ډاګه ښکاري لومړي ، هغه دا خبره نه منله چې ځیني خلک په دي فکر دي چې په وروسته پاتې هیوادونو کې کارګر پوړ نشته ، نو ښه ده چې دا هیوادونه د امپریالیزم ترجغ لاندي پاتې شي ، ترڅو د هغوي د صنعتي کیدلو عملیه ګړندۍ کړي او ناراضه کارګر پوړ وزیږوي . د لینن نظریه داوه چې که چیري د وروسته پاتې هیوادونو سره د «بریالیو انقلابي کارګرانو» له خوا مرسته وشي، دوي به وکولاي شي د شوروي په سبک نظام ته ژر ځانونه ورسوي ، د پانګوالۍ د دوري نه به تیر او مخامخ به کمونستي دوري ته لاړ شي . د هغه دویم نظر داسي ؤ چې په ختیځ کې انقلابونه خپل ځانګړي شکل او ماهیت لري ، لویدیځ انقلابیون باید په دي پوه شي او په خپل وخت يې وپیژني .

* * *

په ۱۹۱۹ کال کې دلینن غوندي یو سړي چې دلیري نه يې د مصر د حالاتو ننداره کوله ، ښایې په دي خبره کې اشتباه کړي وي چې فکر يې کاوه

د مصر خلک به هغه انقلابي لاره ونيسي چي روسانو جوړه کړي وه ، خو هغه څوک چي دغي صحني ته نژدي ؤ ، ښايي بل ډول قضاوت يې کړاي واي . د دي د پاره چي دا خبره ښه روښانه شي په کار ده د مصر او عربو د هغه وخت ټولنيزو حالاتو او روښان فکره څواکونو ته يوه لنډه کتنه وکړو :

د نولسمي پيړۍ په لومړي نيمائي کي نژدي ټول عرب دعثماني امپراتورۍ تر نفوذ لاندي چوپ پاتې شول ، يواځي په مصر او لبنان کي يوڅه حرکت روان ؤ . په لبنان کي د عيسوي ټولني ځينو غړيو دعثمانيانو د تسلط پرضد عکس العمل ښکاره کاوه ، دوي دلته د يو سيکولر هيواد د جوړولو خوبو نه ليدل چي دوي به پکي د برابرو حقوقو خاوندان وي . د دوي يو شمير چي تجارتي ما غزه يې درلودل د مصر آزاد محيط ته لاړل او هلته يې د هيواد د روښان فکرانو په منځ کي مهم کارونه ونيول ، په تيره بيا د مصر مطبوعات يې را ژوندي کړل .

مصر ته د لويديځو نظرياتو او اروپايي مخترعينو لاره هغه وخت لا پرانيتل شوه چي د نا پليون پوځونه په ۱۷۹۸ کال کي مصر ته ننوتل او دلته يې له ځانه سره پوهان او اديبان راوستل . خو د نا پليون د راتګ نه لږ وړاندي په مصر کي يو کار وشو چي مصريان يې د قانوني حقوقو د تضمين ابتداء بولي د قاهري علماؤ او سوداګرانو د هغه وخت د مصر دوه حکمرانان مراد بيګ او ابراهيم بيګ مجبور کړل د بشري حقوقو ، ماليې او شورا په هکله د خلکو سره يوه فيصله وکړي .

د نا پليون نه وروسته محمد علي په دي فکر ؤ چي يوه اردو جوړه کړي ترڅو مصر د ترکيې د سلطانانو له بريدونو نه آزاد وساتي . د دي له پاره هغه په ۱۸۲۰ او ۱۸۳۰ کلونوکي په سلګونو ځوانان د زده کړي له پاره فرانسي ته وليږل چي په ملکي ، پوځي ، کښتيۍ جوړولو ، وسلو جوړولو ، انجنيري ، اوبو لګولو او رختونو جوړولوکي‌زده کړه وکړي. د هغوي سره د ديني او معنوي روزنې له پاره امام رفاعه تحتاوي وليږل شو . تحتاوي په ۱۸۳۱ کال کي بيرته مصر ته راوګرځيد ، د قاهري د ژبو د ښوونځي او د فرانسوي ژبې د ترجمي له لاري يې د والتير ، روسو او مونتيسکو د کتابونو د ترجمو په شمول ، د مصر نوي نسل د نويو او په زړه پوري نظرياتو سره بلدکړ . خو لويديځ اوس د مصر سره نيغ په نيغه لګيا ؤ . د محمد علي د لمسي خديو اسماعيل يې ځايه

لګښتونو مصر ته د اروپايي قوتونو د راننوتلو لاره اواره کړه ، لومړي مالي ، په ۱۸۸۲ کال کي پوځي ، او بيا برتانيه يواځي .

د نولسمي پيړۍ په پاي کي د مصر د عنعنوي ټولني په جوړښت باندي لويديځ ډيره اغيزه کړي وه او دلته يې بې شميره نظرياتي مکتبونه را ايستلي وو. څلور بنسټيزي نظر يې د يادولو وړدي ، د دغي نظرياتو اغيزه يواځي په مصر پوري تړلې پاتې نه شوه بلکي په ټوله اسلامي او عربي نړۍ کي خپره شوه ، لومړي د محافظه کارو ډله ، د دوي دريځ د نويو وارد شويو نظرياتو په هکله داسي ؤ چي ويل به يې دا هرڅه په زاړه اسلام کي شته. دويمه ډله د اصلاحاتو راوړونکووه ، سيد جمال الدين افغاني او محمد عبده په دي عقيده وو ، د دي له پاره چي اسلام ژوندی پاتې شي بايد ريفورم (اصلاحات) پکي راوړل شي. دريمه ډله د احمد لطفي السعيد او ط . ح . حسين وه ، د دوي په فکر د اسلامي رواجونو او د اروپائي سياسي او تعليمي نظرياتو ترمنځ د جوړښت او سازش امکان شته. په پاي کي د سيکولرستانو ډله وه ، لبناني شبلي شميل په دي عقيده ؤ، مخکي له دينه چي يوه نوي معقوله او علمي ټولنه جوړه کړله شي بايد زاړه عقايد له منځه ويوړل شي .

دا ډله وه چي وروسته يې دلته د مارکسيزم تخم شيندلو ته ځمکه تياره کړه. د دويم نړيوال جنګ په پاي کي د شيانو کموالی ، انفلاسيون او د زورکار په ميراث کي پاتې او خلک نارامه وو ، په سکندريه کي يوه ډله را پيدا شوه چي ځان يې سوسيالست ګوند باله ، دا د جواهراتو د يو سوداګر جوزف روزنتال يهود په کوښښونو جوړه شوي وه . د ګوند هدف او وفاداري په لومړيو کي ښکاره نه وه ، خو روزنتال د انګريز يهود ويکتورستين سره چي يو سرښندونکي ؤ او د برتانيي په تيري کوونکي پوځ کي يې وظيفه اجرا کوله ، په تماس کي ؤ . ستين دا ګوند د دريم انترناسيونال په لوري ورټيلواهه . په ۱۹۲۱ کال کي په سکندريه کي د مصر کمونست ګوند جوړ شو ، مرکزي کميټه يې له روزنتال ، حسني العورابي چي يواځي پاتې يو روښن فکر ؤ او انتون مارون ، قانونپوه چي اصلاً د لبنان نه راغلی ؤ ، جوړه وه . يو کال وروسته عورابي کمينترن ته د دي ګوند د غړيتوب له پاره غوښتن ليک وراندي کړ ، او د هغي غړيتوب ورته ورکړ شو . تقريباً په همدي وخت کي (۱۹۲۱ کال) په بيروت کي د کمونستانو لومړۍ هسته د دوو ارمينايانو تر مشرۍ لاندي

د ارتن مادویان او هیکازان بویاجیان چي د سپارتاکوس لقب ورکړل شوي ، جوړه شوه .

په عربي نړۍ کي د دغو پخوانیو کمونستي غورځنګونو کمزوري په دې کي وه چي بهرنیو کسانو او د لږکیو غړیو په تیره بیا یهودانو پکي زیات نفوذ درلود . په مصر کي تر ۱۹۳۷ کال پوري چي کمونست ګوند رنګ شو ، د بهرنیو پاسپورټونو لرونکو غړیو ته چي ډیر مصري یهودان هم پکي شامل وو ، ګوند ډیر امتیازات ورکول . د هغوي کورونه د پولیسو د تالاشي نه په امن کي وو ، یواځي د شورا په اجازي سره یې کورونه تالاشي کیداي شول او یواځي هغو محکمو ته به حاضریدل چي بهرني قاضیان به پکي ناست وو .

دغه بهرني کمونستان په خپلو منځو کي ډیر نژدي وو ، په مصر کي د یوناني، ارمنیائي،ایټالوي او نورو کمونستانو جلا جلا هستي جوړي شوي وې. دي ټولو په بهر کي د خپلو هیوادونو د کمونستانو پیروي کوله او د هغوي مشوري او خپروني یې را وارد ولې . طبیعي ده دې کار د کمونستي غورځنګ د ټوټه ټوټه کیدو سره مرسته وکړه .

د سوسیالستو او کمونستو ګوندونو بله کمزوري داوه چي دوي اوریدونکي پلویان نه درلودل . کارګران نه وو ، او روښان فکران ټول بډایانو ته وفادار وو ، ځکه له همدي خلکو نه راوتلي وو . دغو ګوندي فعالینو یواځي څوپټ اخبارونه خپرول ترڅو د کارګرانو سره څه اړیکي پیدا کړاي شي . په عربي نړۍ کي اخبارونو ډیر ارزښت درلود ، د روایاتو له مخي لیکل شوي شیان هلته د پاکۍ نښه بلل کیږي ، عربي د قرآن شریف اصلي ژبه ده . اخبارونو غیرقانوني سیاسي تنظیمونو ته قانوني بڼه ورکوله ، د هغوي وکیل او نماینده ګڼل کیدل ، او د تنظیمونو د فعالیت اصلي لاره پیژندل کیدله . د مصر او انګلستان رسمي مقامات دواړه د کمونستانو او سوسیالستانو د فعالیتونو نه ښه خبر وو او هغوي ته یې د اجازي ورکولونه ډډه کوله . دوي په دي کار کي د هغو کسانو نه مرسته ترلاسه کوله چي د خپرونو اجازه یې درلوده ، خو چي څنګه به اخبارونه راووتل ، حکومت به ټول ونیول او بند به یې کړل. د مثال په توګه د ۱۹۲۲ کال د جولاي د ۷ مي د الاهرام په ګڼه کي یو خبر راغلئ چي د مصر سوسیالست ګوند د اخبار د خپرولو له پاره د اجازي اخیستلو غوښتنه کړي خو د کورنیو چارو وزارت د هغې له ورکولو نه انکار کړي دي .

وروسته بیا گوند د یوي اونیزې ناکامې مجلې اجازه نامه ترلاسه کړه مجله یې د ځتک او لور په نشان سره خپره کړه او د لینن په هکله یې پکې یو مضمون ولیکه . مجله په خپل وخت له خپرولو نه بنده شوه . کمونست او سوسیالست گوندونه چې دواړه له اخبارونو خلاص شول ، بیا یې د سر خلاصو لیکونو په بڼه د ابلاغیو خپرولوته مخه کړه . د مصر په کارگرانو، زغلول ، روښان فکرانو او نورو باندي به یې په یوه پیاستره خرڅول ، بیا یې وروسته قیمت له یوي پیني نه لږ زیات شو .

د مصر کمونست گوند په لومړیو کي د زغلول او ملي غورځنګ نه ملاتړ کاوه . ستالین په ۱۹۲٤ کال کي ولیکل : د مصر د سوداگرانو ، بورژوازانو او بورژوا روښان فکرانو مبارزه د مصر د آزادۍ له پاره یوه هدف منده انقلابي مبارزه ده ، که څه هم د مصر د ملي غورځنګ مشران له بورژوا طبقي نه پیدا شوي دي او د سوسیالیزم مخالف دي . په همدي کال کي زغلول چي اوس د مصر صدر اعظم ؤ ، په سکندریه کي د کارگرانو له یوي مظاهري وروسته د مصر کمونست گوند باندي بندیز ولګاوه . کیدي شي په دي هکله ده ته له دربار یا انګریزانو نه لارښونه شوي وه ، دي خپله هم ډیر زیات د کمونیزم ضد سړي ؤ . گوند ړنګ شو ، د مرکزي کمیټي ټول غړي محاکمه شول او د ۱۹۲٤ کال په اکتوبر کي پري په بیلو بیلو بندونو فیصله وشوه .

د ۱۹۲٤ کال په نومبر کي د مصر د اردو انګلیسي قوماندان سردار ووژل شو او زغلول استعفي ورکړه ، د احمد زیور حکومت جوړ شو ، د برتانیې له اخطار وروسته حکومت د سختو قیوداتو سیاست عملي کړ . نوي حکومت د مصر بندرونو ته د روسي کشتیو په راتلوتلو بندیز ولګاوه ، او د دوي نظریات یې د ساري ناروغیو سره برابر خطرناک وبلل . د ۱۹۲٥ کال په جون کي چي د شوروي شیشرین نومي کشتۍ د سکندریې بندر ته راورسیدله نه یې مسافرو او نه یې مال ته په بندر کي د ښکته کولو اجازه ورکړه شوه . (مقاماتو بیا وروسته د مال د ښکته کولو امر ورکړ خو سورو مسافرو ته یې د ښکته کیدلو اجازه ورنه کړه.) په مصر کي د کمونستي کتابونو د خرڅلاو اجازه نه وه ، او د هیومانیتي اخبار چي د ۱۹۱۹ کال راهیسي مصر ته راتګ هم بند شو . نو کمونست گوند خپل کارونه له ځمکي لاندي کړل . په هغه ورځ

چي د مرکزي کميټې غړيو ته د بند فيصله واورول شوه ، ګوند د يو لبناني د لوي منشيتوب لاندي نوي مرکزي کميټه جوړه کړه .

که څه هم زغلول هغه سړی ؤ چي کمونستان يې وځپل ، خو چي دي کله د حکومت سره مخالف شو ، کمونستانو بله لار ونه موندله ، د هغه پسي ودريدل . هغوي هڅه کوله د وفد ګوند په دي قانع کړي چي دلته د داسي يو ګوند جوړولو ته ضرورت دي چي د کارګرانو د ګټوسا تندوي وي ، په دي وخت کي هغوي په خپلو ابلاغيو کي ليکل چي د ۱۹۱۹ کال انقلاب د مصر کارګرانو او بزرګرانو په برخي اخيستلو سره بريالی شو ، خو د هغوي رهبري بورژوازانو غلا کړه . کمونستانو هڅه وکړه د وفد اخبارونو ته ورننوځي ، خو په دې کار کي يې لږبرياليتوب ترلاسه کړ . همدارنګه په ګوند کي د ننه په دي دوه خبرو ډير بحثونه وشول چي : آيا بورژوازان د استعمار سره د مقابلي کولو وړتوب لري ، او دا چي د ګوند له پاره د ځمکي لاندي کار کول ګټور دي ، او که په قانوني ډول فعاليت کول .

په دي وخت کي چي دلته په ګوند کي خبري رواني وي ، په بيروت کي د سوريي او لبنان يو ګډ کمونست ګوند جوړ شو ، مشران يې يوسف يزبک او فواد شمالي وو چي په باکفايا کي د فرانسوي تنباکو د کمپنۍ د کارګرانو تر اغيزي لاندي راغلی وو ، په هغوي کي يو شمير داسي کسان هم وو چي دغه مفکوره يې خپروله . د ګوند د جوړيدو پـه غونډه کي د کمينټرن نماينده جوزف برجر برخه اخيستي وه ، او په دمشق کي د شاتيلا تر مشرتوب لاندي د ګوند يوه څانګه جوړه شوه . يو کال وروسته د ۱۹۲۵ کال د مي په لومړۍ نيټه د بيروت د کرسټل سينما په تالار کي د مراسمو په ترڅ کي د ګوند جوړيدل په رسمي توګه اعلان شو او هم يې په فرانسوي ژبه د هيومانيتي د اخبار د خپرولو د پيل کيدو اعلان وکړ . د اتحاد له پاره غړ وشو او د سپارتاکوس د هستي دوه کسه جوړونکي مادويان او بوياجيان د ګوند د نوي مرکزي کميټي په غړيتوب کي د يزبک او شمالي سره يوځاي راغلل . د ټولونه مهمه داوه چي په مرکزي کميټه کي د فلسطين يوهيئت هم ؤ چي وښيي د امپرياليستانو له خوا پـه تـير جنګ کي پـه دوي ډير زور راغئ ، خو د دي سره سره اوس هم فلسطين د سوريي د خاوري يوه برخه ده . دا سړي جيکوب ټيپر نوميده چي د شوروي نه د راغلو يهودي مهاجرو د يوي څانګړي هستي غړي ؤ . د هغه

مستعار نوم ابو زیم ؤ .

د عراق کمونست گوند هم په ۱۹۲۰ کال کي د څلوروکسو یهودانو یوسف سلمان ، صادق یهودا ، ساسون د لال او یعقوب کجمان ترمشری لاندي جوړ شو . په الجزایر کي هم یو کمونست گوند ؤ خو هغه ییخي فرانسوي ؤ. کله چي د کمینټرن نه سپار ښتنه را ورسیده چي دوي بایـد مسلمانانـو سره نژدي شي ، د گوند د مشرانو ځواب داو چي دا مفکوره ییخي د منلو وړده ځکه مسلمانان دلته بالکل د څه نه خبر نه دي . د الجزایر کمونست گوند وویل چي دوي دا تاریخي مسؤلیت په غاړه نه اخلي چي مسلمانان دي راوپاروي . د الجزایر عربو ته لوړي غورځنګ د بلې خوا نه راغئ ، هغه وخت ځیني کمونستان د شمالي افریقا د سور ستوري په غورځنګ کي ورننو تل چي حاج میسالي په پاریس کي پیل کړي ؤ .

دي ډولو گوندونو د بهرنیو منابعو سره اړیکي درلودي . په مصر کی یو عجیبه سویسي سړي چي کانستنتین وانس نومیده او ځان یې د پرس انټرناسیونال نماینده معرفي کړي ؤ ، له دغي ډلی نه ؤ. دا ډیر فعال او ښایی د کمینټرن جاسوس ؤ . په دغه وخت کي دلته یو بل جاسوس هم ؤ چي باهیل کوسي نومیده او مستعار نوم یې او یګډور ؤ چي په منځني ختیځ کي یې د کمینټرن ځانګکي ته جاسوسي کوله .

د سوریې- لبنان او عراق د کمونست گوندونو اکثره مشران شوروي اتحاد کي د کمینټرن د کدرونو فلسفي ښونځیوته لیږل شوي وو، په دوي کي یو ډیر مهم ځوان سړي خالد بکداش ؤ ، چي بیا وروسته دده په هکله ډیري کیسي اوریدل کیدي . په ۱۹۲۰ کلونو کي یو شمیر مصریان په مسکو کي د ختیځ د زیارکښانو په پوهنتون کي چي اوس د لومبا پوهنتون نومیږي شامل شوي‌وو.

په ۱۹۳۱ کال کي په مسکو کي کمینټرن یو شمیر داسي اسناد خپاره کړل او د مصر د کمونست گوند سره یې د هغو مذاکراتو نتیجي را ښکاره کړي چي د عربي هیوادونو له پاره د دري پړاوونو په ستراتیژي کار شوي و . په لومړي پړاو کي باید له سیمي نه د ملي آزادي ښبونکو غورځنګونو په زور استعماري قوتونه وایستل شي ، ترڅو دا هیوادونه سیاسي خپلواکی‌ته ورسیږي . عجیبه ده ، کمینټرن په ۱۹۲۲ کال کی د مصر د خپلواکی اعلان (چي د برتانیې حکومت یو طرفه اعلان کړي وه او دمصر د خاوري نیولو ته یې خاتمه ورکړي وه) داسي

تعبیر کړي ؤ چي مصر خپلې سیاسي خپلواکۍ ته رسیدلی دي او دا لومړي پړاو يې تیر کړي دي . په دویم پړاو کي د کمونستو گوندونو وظیفه ده خلک په دي قانع کړي چي سیاسي حاکمیت کافي نه دي ، او په رښتیني خپلواکۍ کي د سیاسي انقلاب سره ټولنیز انقلاب هم حتمي دی ، خلک باید د امپریالیزم د جغ نه دخلاصیدو سره سم د پانگوالۍ او د ځمکه والو له جغ نه هم خلاص شي . په دي وخت کي د گوند کار دا دي چي خلک د زړي بیرو کراسۍ د راپرځولو له پاره راپورته کړي ، بانکونه ، صنعتي موسسي او د اوبو لگولو پروژي ملي کړي او د کارگرانو او بزگرانو حکومت په پښو ودروي . په دریم پړاو کي به کمونست گوند سیاسي قدرت ونیسي او د شوروي او نورو هیوادونو د انقلابي کارگرانو او د هغو زیار کښانو سره چي اوس هم د استعمار د جغ لاندي ژوند کوي ، اتحاد وکړي .

هر چا چي دا پروگرام جوړ کړي ؤ د خوب په نړۍ کي اوسیده . دا هغه وخت ؤ چي شوروي مشرانو په دي برخه کي فیصله نه وه کړي چي د ختیځ د آزادي بښونکو غورځنگونو لکه د کومنتهنگ ، د هند کانگرس او د وفد په وړاندي څه ډول دریځ ونیسي . په ۱۹۲۳ ، ۱۹۲٤ کلونو کي نور دا امیدونه له منځه تللي وو چي ختیځ او اروپايي هیوادونه د انقلاب شپي ته رارسیدلي دي مسکو اوس دي ته تیارۀ چي د ترکیې د اتا ترک او دایران د رضاء شاه غوندي د قوي ملي حکومتونو ملاتړ وکړي ، چي د لویدیځ امپریالیزم سره مخالفت زیږولي وو .

خو تل داسي ویره وه چي بورژوازي د استعمار د نوي شکل د راوستلونه پرته بل څه نه شي کولاي ، دا د امپریالستانو سره مرسته کوي او د هغوي نه په گټه کي برخه اخلي. په مسکو او نوروځایو کي کمونستان په دي فکروو چي یو ځل یو هیواد د امپریالستانو څخه خالي شي ، بیانو د انقلاب په مخکي د ورستي بیروکراسۍ او یو څو کمزورو سیاسي گوندونو پرته نور څه نه پاتي کیږي.هغوي د دي په اهمیت سترگي پټي کړي او په حقیقت کي اوس هم په دي نه پوهیږي چي کوچنۍ او منځنۍ بورژوازي او په دوي باندي د پانگي او دین اغیزه څومره اهمیت لري . هغوي د نو یو ازادو شویو او دخپلواکۍ له پاره ارزو لرونکو هیوادونو ناسیونالستي غوښتني‌هم کم اهمیته گڼلې وي.

د ۱۹۲۰ کلونو په پاي کي د منځني ختیځ کمونست گوندونه د سختي

دا کتاب یې بیانوي .

سره له دې چې په افریقا کې یې ځینې بریالیتوبونه په برخه شوي خو دا په دې واقعیت څه اغیزه نه کوي چې په منځنۍ ختیځ کې د شوروي اتحاد وړاندې تګ له ناکامۍ سره مخامخ شو . نه یواځې دا چې د دوي پرمختګ ودریده بلکې مجبور شول په شا وګرځي . خو دغه ناکام او بې وخته پرمختګ د شوروي اتحاد او عربي نړۍ د اړیکو یواځې یو فصل دي . کیسه لا ختمه نه ده . د دې خبرې پوښتنه راپورته کیږي چې شوروي اتحاد به کله هم په منځنۍ ختیځ کې له حالاتونه ځان جلا وبولي . داسې جلا کیدل به د تاریخي او ستراتیژیکو علتونو له امله غلط ثابت شي . نو ځکه دا کتاب یواځې تیرې شوي کیسې نه څیړي بلکې راتلونکو پیښو ته هم اشارې کوي . هیله کوم چې دا به د یوې ساده کیسې په توګه نه لولئ بلکې د ژوند او مرګ د یو شمیر مهمو اسنادو په توګه به پرې غور وکړئ .

یو ځل بیا د خپل دوست ادوړډ هوډګن نه د موادو د تیارولو له امله د زړه له کومې مننه کوم .

قاهره

جون - ۱۹۷۸

کمزورۍ سره مخامخ شول ، د مصر د کمونستانو له خولې دا د دوي د عمر د ټولو نه یې خونده کلونه وو . د ستالین او د تروتسکي د پلویانو ترمنځ نا ندرۍ رواني وي ، اخبارونه یې تقریباً ورک وو ، د مصر د کمونست ګوند اخبار (روح العصر) خودکشي وکړه ، داسي یو مطلب یې خپور کړ چي مدیری پوهیده اخبار پري بندیږي ، خو په دي خبره یې اعتراف ونه کړ چي د اخبار د چلولو له پاره یې پیسي نه درلودي . د مصر د کمونست ګوند د کمزورۍ او بې کفایتۍ یو ښه ثبوت دا دي ، د هغه وخت کارګري غورځنګ چي دوي ورسره هر ډول مرستي کولې ، یو د خنداوړ کار وکړ ، شهزاده عباس حلیم یې د ټول عمر له پاره د غورځنګ د مشر په توګه مقرر کړ . دا ښایسته سړي د مخالفینو له ډلې نه ؤ ، د محمد علي د کورنۍ د مهمو کسانو څخه ؤ چي د فواد پاچا او فاروق پاچا نمایندګي یې کوله . دي په لومړي نړیوال جنګ کي د جرمني په اردو کي یو زړور منصبدار ؤ، د کارګرانو د فدراسیون پهغونډوکي به یې برخه اخیستله ، چشمي به یې په سترګو وي ، چوکه به یې په لاس کي او یو غټ جرمني درمي سپی به ورسره ملګری ؤ .

د خپلو نژدي ګاونډیانو ترکیې او ایران بر سیره ، مسکو یواځي په سعودي عربستان او یمن کي د ډیرو لږونوښتونو نه کار واخیست . د سعودي سلطنت بنسټ ایښودونکي ابن سعود چي حجاز ونیو ، نو شوروي ورته د مرستي ورکولو پیشنهاد وکړ او غنم یې ورته ولیږل . د هغه زوي فیصل څه موده وروسته په ۱۹۳۱ کال کي مسکو ته لاړ او د شوروي د حکومت سره یې دځینو تړونو نو په هکله خبري وکړي . د یمن امام یحي هم مسکو ته یو هیئت ولیږه خو دا چي څه یې وکړه معلومات په لاس کي نشته .



د ۱۹۳۰ په لسیزه کي د شوروي په پالیسیوکي ډیر بدلون راغي د هتلر قدرت ته رسیدلو، په ایسینیا باندي د ایټالیې تیري، د هسپانیې کورنۍ جګړي او د یو بل نړیوال جنګ ویري د ختیځو هیوادونو او اروپا په وړاندي د شوروي په دریځ باندي ژوره اغیزه وکړه . په اروپا کي د کمینټرن د لارښوونې لاندي د کمونستانو سیاست د ټولنیزي سولې او امنیت او د پراخي ملي جبهې له حکومتونو نه چي ټولې مترقي قواوي لیبرالان، سوسیال د موکراتان اوکمونستان پکي وو ، ملاتړ کاوه . په اسیا کي هم د فاشیزم او د جنګ په وړاندي د مقابلې له پاره د متحد کیدلو غږ کیده ، چي په نتیجه کي کمونستانو یو حل بیا ځانونه سرکونډۍ وهلو ته تیار کړل . په ۱۹۲۸ کال کي د کمینټرن په شپږم

کانگرس کي الف واسیلیف وفد د مصر د کارګرانو او بزرګوانو د لوي دښمن په توګه وغانده ، او په دغو کارګرانو او بزرګرانو یې غږ وکړ چي د دغه دښمن په مقابل کي خپل کتارونه پیاوړي کړي .

په مصر کي هغه کسان چي د ګوند د نویو بنسټیزو اصولو لارښوونه یې کوله ټول بهرني خلک او له نورو هیوادو راغلي وو . په هغوي کي یوه تبرسي شاعر ، تیودوس پریډ اوښځي یې په سکندریه کي ډیر فعالیت کاوه ، او یوه بله جنۍ چي انا کانیکونومید له او په همدغي ښار کي یې په یو یهودي ښونځي کي د تاریخ درس ورکاوه ، دلته په مارکسیزم کي یو ځانګړي کورس پرانیتي ۇ . یوه سویسي سړي جیکوب ډسکومب او یوي ډلې چي ، ډوډۍ او آزادي ، نومیدله د مارسل اسرائیل ترلارښووني لاندي کار کاوه. د ډسکومب پلاریو سویسي ټیکه دار ۇ او په مصر کي یې کار کاوه ، خپل زوي یې جرمني ته د درس د پاره لیږلی ۇ ، هلته دي د جرمني د کمونستانو له خوا جذب شو . ځوان ډسکومب چي له جرمني نه بیرته مصر ته راغي د خپل پلار د ټیکي په کار کي اسوان ته ولیږل شو . هلته د کارګرانو د ژوند خرابو شرایطو په هغه ډیره ژوره اغیزه وکړه ، خو ده د یې وزلو کارګرانو سره خبري نه شواي کولاي. دي چي بیرته قاهري ته راغي ، د اریانتیا خبره ده ، د یوناني کمونستانو له یوي هستي سره یوځاي شو .

مارسل اسرائیل د مصر لومړنی کمونست ۇ چي په نورو عربي هیوادونو کي یې له کمونستانو سره اړیکي ټینګي کړي . د دویم نړیوال جنګ له پیل کیدو نه لږ وړاندي هغه لبنان ته لاړ او د لبنان د کمونست ګوند دوه مشران غړي فـرا جلاهیلو او نیکولا شاوي یې ولیدل. د شاوي سره یې د فرانسي د ګوند یو غړي ولید او بیا یې خالد بکداش او یو ارمینایي کمونست سره هم وپیژندل . ټولو په ګډه مارسل اسرائیل تشویق کړ چي د مصر د کارګرانو او روښان فکرانو په منځ کي خپل ګوندي فعالیت او کار ته زیاته پاملرنه وکړي .

په قاهره کي د تروتسکي د پلویانو یوه ډله هم وه چي نژدي ټول غړي یې مصري عیسویان وو . هنري کوریل د یوي بډاي بانک چلونکي یهودي کورنۍ غړي چي (په ۱۹۷۸ کال کي په پاریس کي د فرانسي دښي اړخ افراطینو له خوا ووژل شو) په ۱۹۳۸ کال کي په قاهره کي د مصطفي کامل په څلور لاري کي د مارکسستي ادبیاتو یو کتابتون پرانیت ، چي بیایې په ۱۹٤۰ کاونو کي د کمونستانو د مرکزي دفتر بڼه ونیوله .

په کمونستي ګوندونو کي د يهودانو ډير مهم رول ، غير کمونست يهودان او غير يهودي کمونستان دواړه په ويره کي اچولي وو . دوي اصلاً دي واقعيت ته رنګ ورکاوه چي کمونيزم يوه وارده شوي عقيده ده . برسيره پردي په فلسطين باندي د صهيوني استعمار سيوري په عربي نړۍ کي غم اوغوصه را پيدا کړي وه. يهودي کمونستانو داسي استدلال کاوه چي د صهيوني مستعمرو اوسيدونکي بې وزلي يهودان دي ، د اروپا بډاي يهودان غواړي له دوي نه ځانونه خلاص کړي ، نو له دي امله بايد د عربو کارګران د دوي سره پيوستون ولري . خو په مصر کي بډاي يهودان په دي ويره کي وو چي د فلسطين پيښې به په ګاونډيو هيوادونوکي د يهودانو پر ضد عمومي نفرت را پيدا کړي ، چي د ١٩٣٩ - ١٩٤٥ د جنګ نه وروسته يې لومړۍ نښه را ښکاره شوه ، يوسف کتاوي پاشا د محصلينو اتحاديې ته ډيري پيسي ورکړي چي د فلسطين د پيښو او د مصر سره د دوي د اړيکو مخنيوي وکړي .

کله چي د جنګ پيل کيدل حتمي شو ، بهرنيو کمونستانو سختي هلې ځلې وکړي چي د مصر اوسيدونکي دي خپل ځاي ونيسي. ښايي د اريانتيا خبره نه وي، دري لومړني کسان چي ګوند ته راوستل شول ټول يهودان وو ، خو د تکتيک په توګه يې لازمه وګڼله چي اسلام ته راواوړي ، نو ښکاره مسلمانان شول .

په سوريه او لبنان کي ګوند له مصر نه ښه ؤ . د سوريې ـ لبنان کمونست ګوند خپله مرکزي کميټه داسي اعلان کړه : خالد بکداش ، احمد زا زا او فوزی زيم له سوريې نه ، رفيق رضا ، فرجالا هيلو ، نيکولا شاوي او فوادکازان د لبنان نه . د فلسطين نماينده تيپرله ميدانه ورک شو . د فرانسوي ژبې اخبار هيومانيتي بند شو او پرځاي يې د عربې ژبې اخبار (سورسباون) خپور شو .

په ١٩٣٦ کال کي د فرانسي د ملي متحدي جبهي د حکومت اقتدار ته رسيدلو نه د سوريې ـ لبنان کمونست ګوند ښه ګټه واخيستله ، دا حکومت د فرانسي د کمونست ګوند له خوانه ملاتړ شو ، که څه هم خپله کمونستانو په حکومت کي برخه نه درلوده. د سوريې ـ لبنان کمونست ګوند اوس ښه ښکاره فعاليت کاوه ، او بکداش ځان دومره قوي کړي ؤ چي حکومتي مقامات يې په دي ډارولي شول چي که دوي يې مخنيوي وکړي ، دي به له پاريس نه مرسته وغواړي . خو دي به کله کله د مسکو د نوي سياست تر اغيزي لاندي ؤ چي له دي امله به دي د سوريې د عامو خلکو د نظرياتو مخالف واقع کيده . نو هغه د فرانسي له لوري ترکيې ته د Sanjak of Alexandretta the Hatay د بيرته

ورکولو ملاتړ په دي بنسټ وکړ، فرانسې دا قرباني ځکه ورکړه چې هغه غواړي په راتلونکي کي د فاشيزم پرضد د مبارزي له پاره د ترکيې ملاتړ ترلاسه کړي. نور سوريايان هم په دي ښه پوهيدل چي ولې دا ملاتړ د سوريې د خاوري په بيه راونيول شي .

بيا د ۱۹۳۹ کال د نازي او شوروي تړون راغئ ، د کمونستانو له پاره د بيرته راګرځيدلو يو بل تکي ، چي بيا د ۱۹٤۱ کال په جون کي جرمني په روسيې بريد وکړ ، دا يې لا بله وه . نو د ۱۹۳۹ کال په اګست کي کمونستانو په وفد باندي افرين ووايه چي مصر يې له جنګه په امن کي وساته ، خو دوه کاله وروسته يې د همدي کار له امله وغانده . د دريځونو دغي پرله پسي بدلون د مشرانو د طبيعت او مزاج سره په ګډه د کمونستانو د وقار او موقف د ښه کولو له پاره څه برياليتوب ترلاسه نه کړ .



دويم نړيوال جنګ ته د شوروي ورشامليدلو د منځني ختيځ په حالاتو باندي ډيره ژوره اغيزه وکړه . د برتانيې اشغالګرو مقاماتو په مصر کي په کيڼو ډلو باندي خپل فشار سست کړ . د مصر د پوليسو د راپورونو څخه معلومه شوه چي دوي حتي د ځينو کمونستي ډلو سره اړيکي هم نيولي او د هغوي نه يې د نازيانو پرضد تبليغاتو کولو کي مرسته وغوښتله . په سيمه کي د متحدينو د پرتو قواوو په منځ کي ډير قوي مارکسستان را پيدا شول . د ۱۹٤٤ کال په لومړيو کي د يونان په سلطنتي قواوو کي د کيڼ اړخ د عسکرو اله ګولې ډيره اغيزه وکړه . خو د برتانيې دي شعار چي (زما د دښمن دښمن زما دوست دي) د يو شمير ډيرو کوچنيو بورژوازانو له پاره چي د نازيانو د تبليغاتو تر اغيزي لاندي راغلي وو يو ښه راغلاست شو ، بيا هم هغه يهودان د نازيانو د ځورونې ښکار شول چي د جنګ په دوران کي يې د مصر د کمونستي ډلو مشرتوب په غاړه درلود .

د هنري کوريل د ملي آزادۍ له پاره د مصر غورځنګ چي شفريې هډيتوؤ ډير بنسټيز او فلسفي نه ؤ ، ډير نرم او د نورو په پرتله په طبيعت کي زيات مصري ؤ . دي غورځنګ د روښان فکرانو په پرتله زيات غړي د کارګر پوړ نه جذب کړي وو او زيات پکي د سوډان کمونست محصلين او چلتار لرونکي را ټول شوي وو . دا لـه دی ځايه وه چی بيا وروسته د سوډان کمونست ګوند د عبدالخالق محجوب تر مشرۍ لاندې جوړشو . د اريانتيا خبره ده چي کله

محجوب د خپلو ملگرو محصلینو عبدو دهاب او شفیع احمد سره د قاهرې نه خرطوم ته راغئ چي هلته د سوډان کمونست گوند جوړ کړي ، یو کوچني جوړ شوي گوند یې تیار وموند. دا د یو برتانوي منصبدار له خوا چي د 'استور' په نامه پیژندل کیده او په سوډان کي یې کار کاوه ، جوړ شوي ؤ .

د لینن د شعلې په نامه اخبار د هلل سکوارز ترلارښوني لاندي لومړي د یهودو د ټولني په خدمت کي ؤ او بیاد مصر د روښان فکرانو او محصلینو . کله چي د سکوارز نه پوښتنه وشوه چي ده ولې کارگرانو ته زیاته پاملرنه ونه کړه ، په جواب کي یې دخپل انقلاب د دري پړاوونو نظر را ښکاره کړ۔ مارکسیزم باید لومړي هغو کسانو ته ورسول شي چي هضمولاي یې شي(یعني بهرني روښان فکران) ۔ بیا به یې دوی د مصر روښان فکرانو ته انتقال کړي او هغوي به یې بیاد مصر کارگرانو ته ورسوي .

د جیکوب ډسکومب د نوي سباون ډلې (دا د هغوي د مفکوري نوم ؤ) فجر الجدیـد هم اعلان وکـړ چي کمونست گوند بایـد ځان د رښتینونا سیونالستي گوندونو نه جلاونه کړي ـ د ۱۹۲۰ کلونو راهیسي لیدل کیږي چي د وفد گوند کله د مسکو په لاره ځي او کله نه .

خو داسي ښکاري چي مقاماتو ته د مصر د کمونست گوند په هکله ډیر معلومات نه ؤ، ترهغه ځایه چي د برتانیې د سفیر لور ډکیلارن د هغه تلگرام نه معلومیږي چي د بهرنیو چارو وزارت ته یې د ۱۹٤٥ع کال په اپریل کي استولی ؤ پکي د کمونیزم د خپریدو په هکله د فاروق پاچا ویره او اندیښنه یاده شوي وه ، دا راپور په لندن کي د مصر د سفیر عمر پاشا له خوا ورکړل شوي ؤ. کیلارن لیکلی ؤ : د سفارت د ختیځو چارو منشي دا مسئله د ملي امنیت د لوي مدیر سره څیړلې ده ، هغه اریان شو ، خو مونږ ته یې ډاډ راکړ چي د کمونستانو د فعالیتونو په باره کي کوم ځانگړي معلومات نه لري . کیلارن په تلگرام کي سپارښتنه کړي وه چي سفارت کي باید یو کارگري آتشه وټاکل شي . ترڅو د کارگري پوړ سره اړیکي وساتي او د کارگرانو له چارو نه خبر وي، که د برتانیې سفارت دا خیال کړي ؤ چي د کمونستانو دغه فعالیتونه لکه چي په مصر کي وو، د کارگرانو په غورځنگ پوري تړلي وو ، دایې د خفگان وړ یوه غلطي وه .

په منځني ختیځ او نورو ځایو کي د کمونستي گوندونو تر ټولو لویه انگیزه د شوروي وسلو د بریالیتوب نه را پیدا شوه ، خو هغو گوندونو چي

ښکاره فعالیت کاوه لکه د سوریې ـ لبنان ګوند له دې نه زیاته چې د ځمکې لاندې په خپلو بریالیتوبونو باندې تکیه وکړي لکه د مصر او عراق ګوندونه ، له دې اسانتیاوونه یې زیاته ګټه پورته کړه . په سوریه ـ لبنان کې یو متحد ګوند اوس په دوه برخو ویشل شوي و ، د ۱۹٤٦ع کال په انتخاباتو کې چې د آزادي نه وروسته لومړني انتخابات وو کمونست کاندیدان ودریدل ځینو یې پوره بري تر لاسه کړ. فرجا لاهیلو د لبنان په غرنۍسیمه کې لس زره رائی ترلاسه کړي او نیکولا شاوي په تریپولي کې اوه‌زره رائی ویوړي ، که څه هم دا د یوه د انتخابیدو له پاره هم بس نه وي . خو په عراق کې خالد بکداش د یوولس زرو رایو په وړلو سره لومړنی انتخاب شوي کمونست ، شورئ ته راغي . د بلې خوا نه په همدې کال کې په مصر کې د صدر اعظم اسماعیل صدقي په امر ډیر کمونستان بندیان شول او په عراق کې غیر قانوني کمونست ګوند د تیلو په سیمه کرکوک او د بصرې په بندر کې د ځان د ځاي کولو په هلو ځلو کې لږ بریالیتوب ترلاسه کړ .

د صدقي په مشرتوب د مصر د کمونستانو پر ضد دا انتقاد ؤ چې دوي د صهیونیزم سره په جوړښت کې وو . دا انتقاد ځکه د باور وړښکاریده چې ځینو یهودانو په یو آواز د صهیونیزم سره د نړیوالي خبري کولې . د دویم نړیوال جنګ نه وروسته دا د مصر د یهودانو د کیڼ اړخ پلویانو ترمنځ ملاتړ د ستونځو سره مخامخ شو .

د دوو نړیوالو جنګونو ترمنځ د مصر د صهیونستانو مهم مرکز د قاهرې د عباسیه په ودانیو کې په ظاهر کې د مکابی کلب و . د کلب یو رسمي مامور یوسف هازان ځوانان غړي نه یواځې په سپورت (د مکابی رسمي فعالیت) کې روزل بلکې د (ځوانو پولیسو) تنظیم ته یې د راکښن کولو له پاره هم تشویقول ، دا یوه فلسطیني مارکسستي ډله وه چې غړي یې د دوه تابعیتونو لرونکي وو . د مصر ځیني کمونستان په دې فکر وو چې د کیڼ اړخ صهیونیزم دوي ته څه ګټه نه شي رسولی ، پرته له تاوان نه ، بیا په ۱۹٤۷ کال کې د صهیونیزم پرضد د جنګیدونکو اتحاد ، جوړ شو. دا تنظیم ډیر وړاندې لاړ (یهودي میندوته یې یوه ابلاغیه) خپره کړه او هغوي ته یې اخطار ورکړ چې دصهیونیزم تبلیغات به د دوي اولادونه فلسطین ته بوځي ، هلته به تري ګرچا پیر دښمنان راتاو وي او د یو مطلقه او نژاد پالونکي حکومت تر اداري لاندې به ژوند کوي . په ابلاغیه کې دا عبارت راغلی ؤ : اې یهودانو سرو اوښځو ، صهیونستان غواړي یهودان

د مصر دزیارکښانو ته جلا کړي . صهیونیزم د یهودانو دښمن دي ! صهیونیزم دي ورک شي ! د عربو او یهودانو ور ورګلوي دي ژوندۍ وي !

په حقیقت کي د عربي کمونستانو لویه غلطي داوه چي نه پوهیدل په فلسطین کي څه پیښیږي . دا یواځي له دي امله نه چي په عربي کمونستو ګوندونو کي له ډیري مودي راهیسي د یهودانو لاس ؤ او د صهیونیزم سره یې دوستي او دښمني نه معلومیدله ، بلکي د دي خبري زیاته ملامتي په شوروي اتحاد راځي چي د دغي حالاتو ډیر غلط تحلیل یې کړي ؤ . کیدي شي ستالین داسي فکر کړي ؤ چي د یهودو د دولت جوړیدل به په شوروي کي د یهودانو د ستونځي د اواري سره مرسته وکړي او هم به په منځنۍ ختیځ کي یو نوي مترقي عنصر ور پیچکاري کړي. دا مفکوره بنایي په اسرائیلو کي دتولنیزوکروند و په هکله د سرسري معلوماتو نه را پیدا شوي وه، له روس نه د یو شمیر راغلیو صهیونستي مشرانو او د ختیځي اروپا په نو یو کمونستو رژیمونو کي د ځیني مهمو یهودانو دا نظر ؤ . مسکو هرڅه د کمونیزم او لویدیځ امپریالیزم ترمنځ په مبارزه کي لیدل . په فلسطین کي یهوداني ډلې د برتانیي پرضد په وسله واله جګړه بوختي وي ، د دي خبري ویل اسان ؤ ، کله چي دلته امپریالیزم وځپل شي ، یهودي او عربي کارګران به اوږه په اوږه د نوي سور سباون په لور مارش کوي .

له ډیري مودي راهیسي په مسکو کي سیاسي مفکرینو ددي ځاي درښتیني حالاتو نه هیڅ خبر نه درلود. د ۱۹٤۸ع کال د مي په ۱۵ مه د اسرائیلو دولت جوړ شو ، یواځي څو ساعته وروسته شوروي اتحاد دویم هیواد ؤ چي په رسمیت یې وپیژاند. د مصر کمونستانو یوه ابلاغیه خپره کړه ، هغه جنګ چي د عربانو اواسرائیلو ترمنځ پیښیږي پر دوي باندی دبرتانوي امپریالیزم له خوا تحمیلیږي عربي بورژوازان غواړي په فلسطین کي وده کونکي کارګري ځواکونه وځپي (کیدي شي ددې نه مطلب اسرائیلي ټولنیز فارمونه وو) . کمونستانو همدارنګه تبلیغات کول چي په یونان او آذر بائیجان کي څه روان دي ، دا د فلسطین د جنګ نه ډیره لیري خبره وه ، په اسیا کي یې د ګاندي ، نهرو او سوکارنو غوندي ناسیونالستي غورځنګونو نومونه هم اخیستل چي دا ټول د اشغالګرو ځواکونو په وړاندي د خپلي خاوري د آزادۍ له پاره په مبارزه لګیا وو ، دوي هم،نیمګړي خپلواکي، مني. دا د اریانتیا خبره نه ده ، عربي کمونستان د بهرنیو

ځواکونو د ډیرو ساده نوکرانو او اجنټانونه زیات څه نه وو او په همدي سترګه ورته کتل کیده .

د دوي د ټولو ناکامیو سره سره تر۱۹٤۸ کال پوري کمونستي غورځنګ په عربي نړۍ کي یوڅه بریالیتوبونو ته رسیدلی ؤ . د سیاسي مباحثو او تبلیغاتو سویه یې لوړه شوي وه ، او د ناسیونالستي غورځنګونو د غړیو ترمنځ یې سوسیالستي نظریات پاشلي وو . خو کمونستان اکثره وخت د پټو تیوریسنانو او ځانته غړیدونکو کوچنیو ډلګیو په شکل کي پاتې شول .



د دویم نړیوال جنګ نه وروسته په عربي نړۍ کي د شوروي لاس و هنه په رسمي حکومتي سویه پیل شوه . په ۱۹٤۱ کال کي چي هتلر په روس برید وکړ ، شوروي د آزادي نړۍ د متحدینو سره یوځاي شو ، برتانیې په عربي حکومتونو زور راوړ چي ورسره دیپلوماتیکي اړیکي ټینګي کړي، اکثرو خلکو په تیره بیا د ښي لاس محافظه کارو او مذهبي رژیمونو د الحاد او سوسیالیزم د خطرونو نه د ناولو او ساري ناروغیو په اندازه ویره درلودله . مصر په ۱۹٤۳ کال کې د شوروي سره د مختار وزیر په سویه نمایندګي پرانیتله او یوکال وروسته بیا عراق، لبنان او سوریې هم ورسره دغسي اړیکي پرانیتل . په مصر کي د دیپلوماتانو مقرري د دربار صلاحیت ؤ ، فاروق پاچا په مسکو کي د لومړي مختار وزیر په توګه د کمال عبدالرحیم مقرري منظور کړه ، د دي سړي ښځه د محمد محمود پاشا لور وه چي یو پخوانی صدر اعظم او د لویو ځمکه والو له یوي کورنۍ څخه و. مخکي له دینه چي رحیم مسکو ته روان شي فاروق پاچا ورته وویل : ستا مقرري د انګریزانو د فشار له امله وشوه ، ستا کار دا نه دي چي د شوروي اتحاد سره د ښو اړیکو د ساتلو هڅه وکړي . بلکې باید په کلکه د دې کار مخنیوی وکړې د هغي خوا نه روسانو قاهري ته د شارژدافیرپه توګه یو مسلمان او عرب پیژندونکي عبدالرحمن سلطانوف راولیږه . سلطانوف چي قاهري ته راورسید لومړی یې د الازهر د پوهنتون د شیخ سره وکتل . څه موده وروسته هغه دعوت شو چي ځوانانو مسلمانو ته خبري وکړي . دده نه د کمونیزم او په شوروي اتحاد کي د ژوند په هکله یو شمیر پوښتني وشوي ، ده داسي ځواب ورکړ : دي ټولو پوښتنو ته زه یواځې یو ځواب لرم ، قرآن شریف ولولئ !

په لومړیو کي روسان د مطبوعاتو په برخه کي ډیر بې تجربې ښکاریدل .

په ۱۹٤٦ ع کال کي يې په عربي ژبه د تاس يوه خپرونه پيل کړه ، بيا وروسته چي زه د الاهرام مدير شوم ماته يې وړاندي کړه . ما ورته وويل ، نه پوهيږم دا به زما په کار شي او که نه ، د هغوي ځواب دا ؤ چي په راتلونکي کي به ښه شي . بيا مي تري د قيمت پوښتنه وکړه ، دوي وويل قيمت نه لري . ما ورته وويل ، په دي صورت کي خير زما د پاره د قبلولو وړنه دي ، ځکه دا نو بيا سوچه تبليغات دي او رښتيني خبري ښه نه لري. هغوي وويل، ډيره ښه ، ته يې مونږ ته د قيمت اندازه معلومه کړه ، بيا يو قيمت وتاکل شو ، تقريباً د هغه قيمت پنځمه برخه ؤ چي مونږ به اسوسيټډ پرس يا يونايټډ پرس ته ورکاوه .

روسانو عربي ميلمنو ډيپلوماتانو سره ډير زيات اخلاص کاوه . که څه هم دا د جنگ د پاي ته رسيدو وروسته نژدي وختونه وو او هلته دهرشي کمبودو، هر ډيپلومات ته په مياشت کي ۷ کيلو پروتين چي پکي د سرو ماهيانو غوښي او هګۍ وي، ورکول کيدي . د اکثرو عربي ډيپلوماتانو له پاره دا لومړي ځل ؤ چي د خوراکي شيانو د نشتوالي سره مخامخ کيدل ، او لکه څنګه چي هغه وخت يخچالونه نه وو ، کله کله به مجبور وو ، د خرابيدونه مخکي يې مصرف کړي چي البته نتيجه به يې بدمرغه وه . کله به چي کميافته سبزي بازارته راغله ، عربي ډيپلوماتانو ته به له خپلې برخي نه زياته ورکول کيدله . بياهم د دوي ژوند هلته ډير ګران و . هلته ميلمستيا ګانې ، رستورانونه او کلبونه نه وو . تياتر او د بليټ نخاوي وي ، خو ډيري کمي . د کمال عبدالرحيم برسيره د هغه کونسل محمد الکوني او دهغوي ښځو دغو شيانو سره علاقه درلودله. داخيستلو له پاره هلته هيڅ شي نه ؤ ، د روسانو سره يوځاي کيدل او د هغوي کورونو ته تګ را تګ له ؤ ، او نه د ځوانانو له پاره د ساعت تيرۍ څه شي و . د ټولو نه خطرناکه خبره خو داوه چي کله به ډيپلومات بيرته وطن ته راغي داسي ګومان به پري‌کيده چي په کمونستي چاپيريال کي په اوسيدلو سره به دی د کمونيزم په چتلۍ ککړ شوي وي او بايد د پوليسو تر نظارت لاندي ونيول شي . د دي ټولو شيانو په نظر کي نيولو سره د مسکو نه د عربي ډيپلوماتانو راليږل شوي راپورونه ډير سخت د شوروي پرضد وو .

څومره چي فکر يې کيدي شي ، هلته هيڅ کار نه ؤ . د مصر د نمايندګۍ کونسل محمد الکوني ، د ايران په هکله څه خبري اتري کړي وي ، مصر هغه وخت د ايران سره يوڅه علاقه درلوده، ځکه يو خو په منځني ختيځ کي پروت ؤ او بل د ايران شاه د فاروق پاچا خور کړي وه . د ۱۹٤٦ کال په وروستيو

کي چي دا وخت الکوني شارزدافير ؤ ، يوه ورځ ورسره د بهرنيو چارو په وزارت کي د منځني ختيځ د چارو مسؤل وکتل او پوښتنه يې تري وکړه چي د برتانيي سره خبري اتري څنګه رواني دي . الکوني داسي فکر وکړ چي روسان په دي ډول اشاره کوي چي مصر دي مسله د امنيت شوري ته وړاندي کړي . دا داسي وخت ؤ چي د امنيت شورئ د شوروي اتحاد پرضد د ايران په شکايت غور کاوه . شوروي اتحاد دآذربائيجان نه د خپلو پوځونو له ايستلونه ډډه کوله . د دوي هدف دا نه ؤ چي شوروي اتحاد د مصر د مسلې سره دومره مينه لري بلکي په دي ډول به پاملرنه د ايران نه وګرځو له شي. کوښښ کوئ چي پرمونږ زور رانه وړئ او مونږ به په برتانيي باندي خپل فشار وساتو ، . د مصر په شارزدافير باندي دي خبرو يو څه اغيزه وکړه ، خو د مصر د بهرنيو چارو وزير احمد لطفي السعيد ورته په تلګرام کي لارښونه وکړه چي په دي موضوع باندي بيا خبري ونه کړي او نه په دي هکله بيا تلګرام راوليږي. تل به شورويانو دا ډول اشاري ورکولې ، په مسکو کي د مصر بل مختار وزير ، کامل بنداري پاشا چي په سور پاشا ، مشهور ؤ ، دا مفکوره د منلو وړ وګڼله . رښتيا هم کله چي په ۱۹٤۷ ع کال کي مصر د برتانيي پرضد خپله دعوي د امنيت شوري ته وړاندي کړه ، شوروي يې يو ډول ملاتړ وکړ . خو اصلي خبره داوه ، شورويان د دي پرځاي چي د مصر پلويان وو اصلاً د برتانيي زښته ډير مخالف وو .



په حقيقت کي د مصر او شوروي اتحاد ترمنځ د علاق وړ نژديوالى نه ؤ. کله چي د ۱۹٤۸ کال په مي کي انګريزانو دفلسطين له خاوري نه خپل پوځونه وايستل او د عربو اسرائيلو لومړني جنګ اور واخيست ، يو د هغو دليلونو څني چي د مصر صدر اعظم نوکراشي پاشا د پارلمان نه د اسرائيلو پرضد دجنګ تصويبول وغوښتل داؤ چي اسرائيل د نړيوال کمونيزم ملاتړ کوونکي دي . هغه د اسرائيلو دټولنيزو فارمونو (کيتبز) غورځنګ ته ګوته ونيوه. په نتيجه کي د پارلمان دواړو کورونو د اسرائيلو پرضد د جنګ له پاره رايي ورکړي چي د عربو له حقوقونه ساتنه وکړي او د کمونستي الحاد او د ديني شته والي ضد مفکوري (نهيليزم) پر ضد مبارزه وکړي . دي تکي ته يو څه ملاتړ له دي امله زيات شو چي شوروي اتحاد د اسرائيلو دولت ژر په رسميت وپيژاند او په لومړني اوربندکي اسرائيلو د چکوسلواکيي وسلې ترلاسه کړي . ددي نه داسي ښکاري

# د ناصر پندونه

هغه سالون چي د شوروي سیاسي بیریو پکي غونډي کوي د کریملین د ماڼۍ د جمهوري ریاست په دویم پوړ کي دی . یوه اوږده کوټه ده ، دوارو خواووته کړکۍ لري ، د مخي کړکۍ يې د باغ په لور دي او د بلې خوا يې د چمن په لور دي . په دي کي د ښایست شیان یواځي د مارکس او لینن تصویرونه ځنګ په ځنګ را ځوړند دي او د غونډي په میز پروت شین بخمل ته ګوري چي د منرالونو او به ، بسکټ ، چاکلیټ او سګرټ پري ایښودل شوي دي . په خوا کي يې په یو کوچني میز بانـدي کتابونه ، پامپلیټونه ، د ډېرو نمونې ، هوایي توغندي او د الوتکو نمونې ځای پرځای شوي دي .

په دې کوټه کي د بهرنیو سیاسي هیئتونو سره خبري کیږي ، د میز دوارو خواووته په نصواري څرمن پوښل شوي چوکۍ پرتې دي . خو نن چي د ۱۹۷۷ کال د دوبي یوه ورځ ده ، دلته بهرني څوک نشته دغي میز ته ناست نهه کسان ټول شورویان دي . دا ډله د نړۍ د دوه سترو قدرتونو څخه د یوه قدرت د ټولونه قوي ډله ده .

د میز سرته د شوروي اتحاد د کمونست ګوند د مرکزي کمیټي عمومي منشي لیونید برژنف چي د تیرجون راهیسي د شوروي اتحاد د رئیسه هیئت صدر هم دي ، ناست دي . د ده خواته په ترتیب سره د وزیرانو د شوری رئیس الکسي کوسیګن ، د ګوند تیوریسن میخایل سوسلوف ، د بهرنیو چارو وزیر اندري ګرومیکو ، د دفاع وزیر دمتري اوستینوف ، ورپسي د شوروي دوه راختونکي ستوري کیریل مازاروف چي په بهر کي د ملي آزادي بښونکو غورځنګونو سره د مرستي مسؤلیت په غاړه لري ، او یوري اندروپوف ، د کا جي بی مشر ، په یوه لاس يې سر تکیه کړی او په بل لاس په کاغذ کرښي وباسي اوبیا يې وروسته څیري کوي، ناست دي . ډله د سوسلوف په د وو مرستیالانو پوره کیږي ، بوریس پوناماریو ، د مرکزي کمیټي د نړیوالو اړیکو مسؤل ، او د . ا . اولیانوفسکي د پوناماریو مرستیال چي د ملي آزادي بښونکو غورځنګونو په هکله را پیدا

چې کيدې شي شوروي اتحاد دا وخت په دې فکرو چې د مرتجع رژيمونو او حکومتونو په دغې سيمه کې به د اسرائيلو حکومت يو مترقي حکومت وي . که داسې وي نو دا د روس يوه ستره غلطي وه .

شوروي د لړکيو حکومتونو ته چې په مصر کې د فلسطين د جنګ دافت نه وروسته دربار جوړ کړي وو د بدګومانۍ په ستر‌ګه کتل . دا د اريانتيا خبره نه وه . ابراهيم عبدالهادي پاشا چې د ۱۹۴۸ کال د دسمبر په ۲۹ مه د نوکراشي د وژل کيدونه وروسته د مصر صدر اعظم شو ، نه يواځې اخوان المسلمين يې وځپل بلکې يو شمير نور افراطيون او کمونيستان يې هم بنديان کړل . د ۱۹۵۰ کال په جنوري کې چې وفد بيا د نهاس پاشا ترمشرۍ لاندې سياسي قدرت ته ورسيد ، د روس له نظره دلته حالات ښه شول ، ځکه نوي حکومت د منځني ختيځ د دفاع له تنظيم سره چې د برتانيې ، امريکې، فرانسي او ترکيې د حکومتونو له خوا جوړ شوي و ، څه کار نه درلود ، او هم يې د کوريا په جنګ کې له برخې اخيستلونه ډډه وکړه .

خو دلته حالات په تيزۍ سره د زړو سياسي ځواکونو د کنترول نه وتل. د پادشاه نه درباري مشاورين راتاو وو او دې يې له هرې خوا نه را ايسارکړی ؤ. د عوامو د ژوند ټولې برخې فساد نيولې وي . د يو شمير بزګرانو ډلو هڅې رواني کړې وې چې د ځينو شخصي او انفرادي خلکو لکه د شهزاده محمد علي په ملکيت ګيډه واچوي . د برتانوي پوځيانو او د مصر د پوليسو ترمنځ د کانال په سيمه کې خونړيو نښتو د ۱۹۵۲ کال د جنوري په ۲۶ مه قاهري ته اور واچاوه . مصر رښتيا هم د يو ډول انقلاب د کمره په غاړه ولاړ ؤ ، او په لوړ رتبه مقاماتو کې يو شمير کسان دې ته تيار وو چې هرځاې کې د کمونيزم لاسونه کار وکړي. (په درباري مانۍ کې يو لوړ رتبه مامور پادشاه ته راپور وړاندې کړ چې د پولنډ سفارت په لاريو لاريو ډيناميټ او چاوديدونکي مواد د ورانکارو پهلاس ورکړي دي ترڅو د قاهري په سيزلوکې تري کاروا‌خلي.)

رښتيا‌هم د جولاي په ۲۳ مه انقلاب وشو ، خو دا هغه انقلاب نه ؤ چې روسانو غوښت يا يې ورته مزه ورکوله . دوي ته دا هم يوه ساده پوځي کودتا ښکاريده لکه د ډګرمن حسني زيم کودتا چې د ۱۹۴۹ کال د مارچ په ۳۰ مه يې دمشق کې وکړه ، او يا د ډګرمن سامي هيناوي کودتا چې څلورنيمې مياشتې وروسته يې زيم له قدرته ليرې کړ يا لکه د لاتيني امريکې هره کودتا ،

د سوریې دادوه کودتا ګانې هم په هماغه شکل وي . هغوي داسي فکر کاوه چي دا کودتا به په منځني ختیځ کي د امریکایانو او انګریزانو د رقابت له امله شوي وي او یا به د امریکایانو یوه شیطاني نقشه وي چي دلته د خلکو ربښتیني انقلاب ترېخیدو د مخه زیانمن کړي .

د شوروي بدګوماني په دي سره زیاته شوه چي آزادو منصبدارانو په چټکه سره نظم او اداره په لاس کي ونیوله . سکندریې ته نژدي په کفر الداور کي د اګست په ۱۳ مه ، ښاي د کمونستانو په لمسون ، کارګرانو د نساجۍ د یوې فابریکي اداره په لاس کي ونیوله . د دي کړې دوه کسه مشران په پوځي محکمه کي په اعدام محکوم شول . د شوروي د ۱۹۵۲ کال په لوي دایرة المعارف کي یواځني شي چي د مصر په هکله موندل شوي داسي دي ، د مرتجع منصبدارانو رژیم چي د امریکي سره تړلی و په کارګرانو باندي د وحشیانه ظلم کولو هڅي وکړي ، د پولنډ د خبر رسولو آژانس په مصر کي د ودي په حال کي امپریالستي ضد غورځنګ د خفه کولو له پاره د یوي فاشستي پوځي دکتاتورۍ دجوړیدو خبري وکړي . د شورویانو او د هغوي د دوستانو له پاره د جولاي انقلاب ښکاره د بورژوازانو کارو .



د شوروي اتحاد د کمونست ګوند نولسم کانګرس چي د ۱۹۵۲ کال د اکتوبر د ٥ - ١٤ پوري وشو ، یو نوي دریځ تصویب کړ ، ټولو کمونستو ګوندونو ته یې لارښونه کوله ، په ملي جبهوکي د هغو د موکراتیکو ګوندونو سره یوځای شي چي د 'دموکراتیکو آزادیو' شعار پورته کوي . د هغو بهرنیو هیئتونو د سلامونو په ځواب کي چي شوروي اتحاد ته یې د خپلو ګوندونو وفاداري اعلان کړي وه ، ستالین وویل : 'پخوا بورژوازان د ملت مشران وو ، د هیواد د خپلواکۍ واک او حقوق یې په لاس کي او دوي ترهرڅه پورته وو . اوس د ملي اصولو له مخي واکي د دوي له لاسه وتلي دي . بورژوازي د یو هیواد حقوق او خپلواکي په ډالرو پلوري . د ملي خپلواکۍ او حاکمیت شعارونه له تختي پریوتي دي . په دي کي شک نشته چي تاسي د کمونستو او دموکراتیکو ګوندونو نماینده ګان به دا شعارونه بیرته راپورته کوئ او وړاندي به یې وړئ ، که تاسي غواړئ د خپل هیواد ربښتیني وطن پالونکي شئ او ارزو لرئ د خپلو خلکو لارښونکي ځواکونه شئ ، بل څوک نشته چي دا بیرغ پورته کړي' .

ځيني عربي کمونستانو په کانګرس کي ګډون وکړ ، خو د هغوي نومونه افشاء نه شول . هغوي ټولو د مصر د آزادو منصبدارانو له لاسه د فاشيزم او ظلم ، خبري وکړي . کانګرس له جنګ وروسته د لومړي ځل له پاره عربي کمونستانو ته موقع برابره کړه چي سره وګوري. هغوي د مرکزي کميټي په تعمير کي په ډيرو غونډو کي برخه واخيستله او په دې ډير خوشاله وو چي نظرياتو ته يې غوږ ونيول شو . په دي افتخار چي د شوروي غوندي يو لوي قدرت يې ترشاولاړ دي ، راتلونکي کي يې قدرت ته د رسيدلو په لور له ارزوګانو سره وړاندي کتل .

په ۱۹۵۳ کال کي د ستالين مرګ کوم لوي بدلون را نه ووست. روسانو په قاهره کي يو کلتوري مرکز پرانيت او د سوداګرۍ يو څوټرونونه وشول ، خو په عربي نړۍ کي ټول کمونستګوندونه د مصر د انقلاب سره په دښمني کي پاتي شول . په ۱۹۵٤ کال کي چي د ناصر او نجيب ترمنځ لانجه پيدا شوه ، د مصر کمونستانو هم د اخوان المسلمين غوندي د نجيب خوا ونيوله .

خو په کراره کراره شوروي اتحاد او مصر يو بل ته په ربښتيني سترګو کتل پيل کړل . د تړونونو سره د ناصر دښمني په تيره بيا د ۱۹۵۵ کال د بغداد تړون ، دي د لويديځ سره په لانجه واړاوه . ډالس ته دده د ځواب نه مسکونا خبره پاتي نه شو : 'شوروي اتحاد هيڅکله زمونږ هيواد نه دي نيولی ، او په منځني ختيځ کي امپرياليستي سابقه نه لري. زه هيڅ دليل نه وينم چي خپل هيواد د هستوي وسلو په پوځي اډه بدل کړم ، ترڅو شوروي وډار شي ، هغوي هيڅکله هم مونږ تهديد کړي نه يو . په مصر کي د کمونستانو شته والی يو خطر شميرل کيدي شي ، خو د ټولنيزو اصلاحاتـو له لاري به دوي سره معامله وشي' .

په ۱۹۵۵ کال کي ناصر باندونګ ته لاړ او د افريقا۔ آسيا د اتحاد غورځنګ وزيرېد . مسکو د ۱۹۵۳ کال د ستالين پر ضد د 'ډاکترانو د رسوا دسيسي' نه وروسته د تل ابيب سره سياسي اړيکي وشکولې ، او لږه موده وروسته مصر په مسکو کي خپله سياسي نمايندګي دسفارت سويې ته لوړه کړه . په منځني ختيځ کي د شوروي اتحاد د لوي بريد د پيل کيدو له پاره لاره ښه روښانه ښکاريده .

# د شوروي دلوی برید پیل

د هستوي وسلو پرمختک شوروي اتحاد مجبور کړ د خپلو جنوبي سرحداتو نه هغي خواته نړۍ باندي نوي کتنه وکړي . په پخوا وختوکي روسان په خپلو ځمکو باندي کلک ناست وو او د هر بې پروا برید کوونکي جزا ورکولو او ځپلوته تیارو . خو اوس هرڅه بدل شوي وو . دوي مجبور وو چي نه یواځي د خپلو نژدي گاونډیانو ترکیي او ایران اندیښنه وکړي بلکي د سوریې ، عراق او آن د ختیځي افریقي اندیښنه هم وکړي . لویدیځ له مصر نه غوښتنه کوله چي د شوروي پر ضد په اتحادیه کي شامل شي ، خو مصر له دینه ډډه کوله ، په دي ډول یې په نړیوال سوړ جنگ کي ستراتیژیکي اهمیت ورځ په ورځ زیاتیده . دا خبره تر یوي اندازي ربښتیا وه چي ناصر به شورویانو ته ویل : 'مخکي له دینه چي تاسي مونږ سره څه وکړئ مونږ تاسي ته خپلې مرستي وړاندي کړي. پخوا تر دي چي تاسي زمونږ پر خوا ودرېږئ مونږستاسي پرخوا ودریدو. مونږله دي نه ډډه وکړه چي مصرکي داسي یوه اډه جوړه کړو چي تاسي وویروي.

د روس مشرانو به چي له کریملین نه نړۍ ته وکتل ، هغوي به د منځني ختیح ورځ په ورځ زیاتیدونکي اهمیت ته اریان شول . اوس ناتو په اروپا کلک لنگر اچولی ؤ ، او د ټرومن دکتورین ناتو د ختیځ په لور تر یونان او ترکیې پوري غزولې وه . د ۱۹۵٤ کال نه وروسته ناتو په لیري ختیځ کیي د سیټو په جوړیدو سره غبرگه شوه. خو د دغو د وولوید یځو اتحادیو ترمنځ یوه خالیگاه وه. که لویدیځ کولاي شواي د منځني ختیځ د دفاع د تنظیم پواسطه په دغي خالیگاه پول وتړي نو د اتحادیو زنځیر به پوره شي ، او شوروي اتحاد نه به د دښمنو هیوادونو کړۍ را چا پیره شي .

خو عربي نړۍ په خپل منځ کي په ژوره توگه ویشل شوي وه . په عراق کي هاشمي کورنۍ د نوري سعید په ملگرتیا چي د هیواد یو تکړه سیاسي سړي و ، د عربو په الهٔ کوله کي د فیصل او لارنس په پلوۍ جنگیدلې وه ، دبرتانویانو په پلوۍ یې خپل سیاستونه روان کړي وو ، په دي عقیده ؤ چي د عربو

د لانجو د اواري له پاره يواځنۍ لاره د لويديځو پوځي اتحادونو سره يوځاي کيدل دي . دوي په دي فکر وو چي دا کار به په سيمه کي د اسرائيلو د پراختيا يي سياست مخه ښه ونيولاي شي ، او د عربو له پاره به د تهواو هغو وسلو برابرول تضمين کړي چي ورته ضرورت لري . خو په مصر او سوريه کي مخالفي نظر يي دودې په حال کي وي .

د باندونګ نه وروسته دناپيپلتوب د ښه والي خبري ډيري اوريدل کيدي. د شوروي دا مفکوره تر هغي خوښيدله چي د ناصر له خواوه ، خو د تيتو له خوا يي د مفکوري نه بدوړل . ناپيپلی ناصر د نړۍ په يوه سيمه کي د لويديځ د قوت لړوالی ښود چي د شوروي د امنيت له پاره ګټور ؤ ، خو ناپيپلي تيتو د کمونستي بلاک د قوت لړوالی ښود . نو د مصر له پاره ناپيپلتوب وطنپالي وه ، خو د يوګوسلاوي له پاره خيانت . البته امريکايانو دا ټول شيان دلته په بل مخ ليدل ، کله به چي زه مسکو ته لاړم او د ګرومیکو خبروته به مې غوږ ونيو ، داسي فکر به مي کاوه چي که سترګي پټي کړم ، ډالس ته مي غوږ نيولی وي . ستر قدرتونه پرنورو باندي خپل ځانګړی منطق مني ، دا وسله تون او ايډيالوژي ته ضرورت لري - د اوږدي فاصلې توغندي او د اوږدي مودې ستراتيژي .



د چکوسلواکيې د وسلو د معاملې ډيره يادونه شوي ده، خو چي څنګه دا معامله عملاً ترتيب شوه کيسه يي ډيره عجيبه ده. ناصر غوښتل باندونګ ته په لاره هند ته رسمي سفر وکړي ، هلته د ۱۹۵۵ کال په اپريل کي د افريقائي - آسيائي هيوادونو لومړي کانفرنس غونډه کوله . څنګه چي هغه په يوه هوايي کرښه هم باورنه درلود (انګريزي او امريکايي حکومتونو دي په هر شکل ډا راوه چي بايد په کانفرنس کي برخه وانخلي) ، د هند د هوايي کرښي يوه الوتکه يي کرايه کړه چي د باندونګ پوري ټول د ټک وراټک سفر وکړي . الوتکه بايد دوه ورځي په ډهلي کي پاتې شي ، د نهرو سره يوځاي رنګون ته لاړه شي ، يوه شپه هلته تيره کړي ، يونو UNU له ځانه سره راواخلي او بيا دري واړه صدر اعظمان باندونګ ته لاړ شي . دا معلومه نه وه چي چاون لاي به دوي نه وړاندي رنګون ته رسيدلی و ، او هغه د يونو سره په ملګرتيا هوايي ميدان ته زمونږ د ښه راغلاست له پاره راغلی و . الوتکه چي په ځمکه کيناستله ناصر له کړکۍ نه بهروکتل اريان شو ، چاون لاي د يونو سره يوځاي د الوتکي خواته

را روان دي . نهرو دوي يو بل ته سره ور وپيژندل ، او د مصر ډله ټوله د ګورنر پخوانۍ بنګلي ته لاړو چي اوس يې درسمي ميلمنو له پاره جوړه کړي وه ، دلته د مصر ، هند او چين هيئتونو ته په بيلو بيلو پوړونو کي ځايونه ورکړل شوي وو . نهرو له ناصر نه پوښتنه وکړه که غواړي دستي د چاون لاي سره ګورو . کتنه ترتيب شوه ، د خبرو په ترڅ کي ناصر يادونه وکړه چي دي د بريدونو تر ويري لاندي دی او د مصر د دفاع له پاره د وسلو په پيدا کولو کي له ستونځو سره مخامخ دي . وي ويل : نه پوهيږم چي شوروي اتحاد به پرمسونږ وسلو خرڅولو ته تياروي که نه ؟ چاون لاي ورته وويل چي دي به په دي هکله د شوروي اتحاد سره وغږيږي . وي ويل : فکر کووم شوروي به دي کار ته هو ځواب ورکړي .

چاون لاي د ناصر سره د خبرو اترو په هکله موتسي تونګ ته راپور ورکړ ، هغه غوښتنه وکړه بايد په پيکنګ کي د شوروي د سفير له لاري مسکو ته راپور وليږل شي ، چي هغوي د ناصر له غوښتني نه خبر شي . راپور د يو سري او د حالاتو يو چټک تحليل دي . ددي يو نقل د چينايي مقاماتو له خوا قاهري ته هغه وخت وليږل شو چي د شورويانو سره يې په دي خبره اختلاف را ښکاره شو ، شوروي په چين ملامتي اچوله چي وايي مرسته بايد يواځي کمونستي هيوادونو ته ورکړه شي ، نه دريمي نړۍ ته .

متن يې په دي ډول ؤ :

۱ ـ ناصر ما سره د خپلو نظرياتو په هکله خبري وکړي ، ما په خپل ذهن کي يوه داسي مفکوره ومونده چي ده زغملای شوه ـ دا د عربي ناسيوناليزم مفکوره وه . زه داسي پوه شوم چي دي نتيجي ته رسيدلی دي چي دا مفکوره دلته داسي قوتونه او ځواکونه را پيدا کولی شي چي د منځني ختيځ په آزادي ښښونکو غورځنګونو به ډيره ژوندۍ اغيزه ولري .

۲ ـ فکر کوم ناصر په ناپييلتوب کلکه عقيده لري ، په اقتصادي ، پوځي او نورو برخوکي ، د اوږدي مودي د ستراتيژي په توګه ، نه د لنډي مودي د تکتيک په شکل ، چي ده ته ګټه رسولی شي. که دده مخالفت له لويديځ سره تکتيکي واي ، نو دي به دغه اوسني ځورته نه واي رارسيدلی .

۳ ـ ناصر له مانه پوښتنه وکړه شوروي اتحاد به په مونږ هغه وسلې خرڅي کړي چي له امريکي نه يې نه شو ترلاسه کولی ، او سخت ضرورت ورته لرو ،

مونږ په سیمه کي د امریکي د انحصار نه ځان خلاصول غواړو ، ترڅو د مصر په سرحداتو باندي د وسلو د هغو بریدونو مقابله وکړو چي ورسره مخامخ یو . زما ځواب هغه ته داؤ ، کیدي شي شوروي اتحاد د دغي ضرورت پوره کولو سره علاقه ولري ، خوزه ددي له پاره مطلق ځواب نه لرم ، مونږ باید د مناسبولارو نه د شوروي اتحاد د مشرتا به نه په دي هکله سم معلومات ترلاسه کړو .

٤ ـ د ناصر سره له خبرونه زه پوه شوم په منځني ختیځ کي د عربي ناسیونالیزم د نویو ځواکونو او د امپریالیزم او ارتجاعي قوتونو ترمنځ نښته حتمي پیښیدونکي ده .

٥ ـ ممکنه نه وه د منځني ختیځ په پیښیدونکو لانجوکي سوسیالست کمپ یواځي د یو ننداره چي په توګه پاتي شي . زه چي وینم ، مونږ باید په دي جګړو کي د دوو دلیلونو له مخي د ملي قوتونو سره مرسته وکړو ، د هغوي بریالیتوب د سوسیالست کمپ په ګټه دي او د لویدیځ امپریالستي کمپ هغه تولي هلي ځلي به تس نس کړي چي دختیځ کمپ د را ایسارولو له پاره یې کوي . زما نتیجه ګیري داده چي تاریخي منطق په منځني ختیځ کي د ملي قوتونو را پیدا کیدلویني ، او مونږ باید له دوي سره د امکان تر اندازي دوستان واوسو . البته په دي کي پوره توپیر شته چي د دوي سره ژر تر ژره نژدي شو او د دوي د اهدافو په لاس ته راوړلو کي ورسره مرسته او لارښونه وکړو او که صبر وکړو او وګوروچي څه کیږي یعني پریږدو مشران یې مبارزه وکړي او کله چي بریالي شي بیا به ورسره نژدي شو . د سوسیالستي کمپ له پاره باید د ژر نژدیوالي ګټي لږي ونه ګڼلې شي .

د ناصر غوښتني ته مسکو ژر ځواب ورنه کړ . شپږ اونۍ وروسته په قاهره کي د شوروي سفیر ډانیل سولوډ د سوډان په نمایندګۍ کي د سوډان د صدر اعظم اسماعیل الازهري له پاره میلمستیا کي ناصر ته را نژدي شو او ورته وي ویل : صدر اعظم صاحب ! ماته لارښونه شوي ستاسي یوي پخوانۍ پوښتني ته ځواب ووایم چي تاسي زما له دوستانو نه کړي وه . ناصر پوه شو او د سبا له پاره یې ورسره د کتلو وخت وټاکه .

د دوي په کتنه کي موافقه وشوه چي یوه کمیټه جوړه شي ، د مصر د وسله والو پوځونو لوي درستیز جنرال حافظ اسماعیل ، د جمهور رئیس

د دفتر لوي مدير علي صبري او دشوروي نظامي اتشه ډګرمن ونيمچينکوبې غړي وي ، دا خبره بايد ډيره زياته پټه وساتله شي ، د اردو په مرکزي دفتر کي د لومړني غونډي نه وروسته فيصله وشوه بايد راتلونکي غونډي په يو غير مهم ځاي کي وشي ، بيا نوري غونډي د قاهري په اطراف کي د معادي په سيمه د علي صبري د خپلوانو په يو کور کي کيدلې . کله چي مذاکرات پرمختللى پړاو ته ورسيدل ، د دواړو هيئتونو سره دوه روسي جنرالان ور زيات شول او د غونډي ځاي پراګ ته بدل شو . په دي وخت کې د روسانو خوښه نه وه داسي کار وکړي چي د ژنيو روحيې ، ته ضرر ورسوي ، (د ۱۹۵۰ کال په جولاي کي په ښه فضاء کې د څلورو ځواکونو د سرمشرانو له غونډي وروسته) پيشنهاد وشو چي را کړه ورکړه بايد د چکوسلواکيې له لاري وشي .

مسکوپه جولاي کي د پراودا مدير ډمتري شيپيلوف قاهري ته وليږه چي ناصر پخپله و ځيري - آيا دي داسي سړي دي چي په بحرانونوکي کلک ودريږي که نه ، او که د امريکي او برتانيي د فشارونو د زياتيدو سره به يي ملا تيټه شي ؟ ناصر او شيپيلوف سره ښه شول ، شيپيلوف مسکوته راپور ورکړ ناصرداسي سړي نه دي چي په کار کي وويريږي او خپل نوي ملګري په پټ ځاي کي پريږدي . د بلې خوانه ناصر هم خپل دريغ ښه روښانه کړ . هغه شيپيلوف ته وويل : زه کمونست نه يم او د مصر دکمونستانو خبره يي ورته وکړه چي ځيني يي محکمو ته راکښل شوي وو . شيپيلوف ورتهوويل : شوروي اتحاد د سيمه يزو کمونستانو سره څه کارنه لري ، ناصر چې د خپلو کمونستانو سره څه کوي دا د دوي خپله کورنۍ خبره ده .

د وسلو معامله رښتياهم دومره پټه ساتل شوي وه چي په شوروي اتحاد کي د مصر نوي مقرر شوي سفير محمد الکوني په دي هکله هيڅ شي نه خبرنه و . سولوډ فکر کاوه چي دي به په موضوع خبر کړل شوي وي ، نو د الکوني سره يي د خبرو په ترڅ کي د وسلو معاملې ته څه نرۍ غوندې اشاره وکړه، هغه ډيرهوښيار ډيپلومات ؤ هغه داسې کومه څرګندونه ونه ښوده چي ګوندي د داسې کوم شي يادونه وشوه چي دي تري خبر نه دي . الکوني چي مسکو ته ورسيد هم په تياره کي و ، د بهرنيو چارو د وزارت معين ولاديمير سيمونوف سره يي وکتل هغه هم ورته د وسلو د معاملې يادونه وکړه ، دا يي ورسره زياته کړه چي که تاريخ ته وکتل شي ليدل کيږي شوروي اتحاد د هر هغه هيواد سره مرسته

کړي ده چي دخپلي خپلواکۍ له پاره جنګيدلي دي . سيمونوف وويل که چيري مصر د شوروي اتحاد سره همکاري وکړي ، شوروي به له ناصر سره هغه څه وکړي چي پخوا يې له اتاترک سره کړي دي . الکوني د خپلو مذاکراتو په هکله راپور په خپل خط په کڅوړه کي قاهري ته وليږه ، په تلګرام يې باورنه و. د امنيتي دلايلو له امله ده ته د دغي پيغام ځواب بيرته ورنه کړل شو .



په دي ټولو کي چاودونه وو . امريکايان څه نا څه په دي پوه شو چي څه روان دي ، په قاهره کي د هغوي د سفارت يو غړي جان اکلبرګر د سپتمبر په ۲۷ مه سهار وختي په دري بجو په تيلفون زه له خو به راويښ کړم چي راته ووايي د هماغي ورځي د ماسپښين په څلو رو بجو کرمټ روز ولټ قاهري ته رارسيدونکي دي او د ناصر له پاره يو پيغام له ځانه سره راوړي . دا پخپله داريانتيا خبره نه وه . کرمټ روزولټ د منځني ختيځ په چاروکي اوږده تجربه درلوده او ډير زيات به قاهري ته راتځ . د ۱۹۵۲ کال د انقلاب نه يواځي دوه مياشتي وروسته د رئيس ټرومن د ځانګړي نماينده په توګه هغه قاهري ته راغلی وچي د انقلاب اهداف ځانته معلوم کړي او د نو يو مشرانو د شخصيتونو په هکله ځان پوه کړي. څو مياشتي وروسته هغه بيا قاهري ته راغي چي د بهرنيو چارو په هکله د نوي وزير جان فوسټر ډالس د سفر له پاره لاره اوازه کړي. که څه هم تر ډيره پوري په قاهره کي څوک په دي نه پوهيدل چي کرمټ روزولټ په دي او وروستو ډيرو ماموريتونوکي د سيا نماينده ؤ .

له انقلاب وروسته په لومړيو کلونو کي ناصر په دي عقيده ؤ چي امريکا کولاي شي په منځني ختيځ کي يو ګټور او جوړونکي رول ولوبوي ، ځکه دا د لويو طاقتونو په کتار کي کولاي شي د خپل نفوذ په زور پيښي په سمه لار رواني کړي . روسيه د نورو ستونځو سره مخامخ وه ، چين ډير ليري پروت ؤ، برتانيه او فرانسه سره د خپلو استعماري بقاياوو په سر اوس هم په جګړو اخته وو . دا خبره د منلو وړښکاريده چي امريکا به له ځينو لارونه د مصر سره مرسته وکړاي شي. څنګه چي ښکاريدل د امريکي حکومت د دوه اړخيزو تړونونو پرتله په سيمه يـزو تړونونو خوشاله و ، کيدي شي په برتانيه باندي زور راوړلوته ولمسول شي څو خپل پوځونه له دي ځايه وباسي . کيدي شي امريکايان دي ته تيار شي چي دلته اقتصادي مرستي وکړي او وسلې را برابري کړي. په حقيقت کي په

برتانیه باندي د امریکي فشار د را پیداکیدو په حال کي ؤ چی له سیمي نه خپل پوځونـه وباسي ، خو د اقتصادي او پوځي مرستو څه اراده یې نه معلومیده . دا وخت ، د ۱۹۵۰ کال په دوبی کي ناصر ییله شکه فکر درلود د امریکي سره په هره سویه خپل اړیکي بیرته سم کړي .

اوس دا خبره ښکاره وه چي کرمټ روزولټ له ځانه سره هر څه راوړي وي د وسلو د معاملې نه به خبر وي، داسي ګومان کیده چي دی بـه هڅه وکړي په هر ډول کولای شي د وسلو د معاملې مخه ونیسي . تردي وخته پوري لا د وسلو یوه کشتۍ هم سکندریې ته نه وه را رسیدلې ، خو د ناصر له پاره یواځي یوه لاره وه چي د وسلو د معاملي اعلان د کرمټ روزولټ تر را رسیدلو وړاندي وکړي ،او هغه ته یې د یو تر سره شوي کار په توګه وړاندي کړي. هغه وویل: زه نه غواړم امریکایان را نه پوښتني وکړي ، او که را نه پوښتني وکړي ، زه باید دروغ ونه وایم . هرڅه چي پیښیږي مونږ د ډیر فشار سره مخامخ کیږو ، او د دي سره د ښي مقابلې کولو له پاره باید مونږ د عربی عوامو عمومي ملاتړ ترلاسه کړو ، ناصر له خپل منشي نه پوښتنه وکړه ،کومه میلمستیا شته چي پکي را ته د خبرو کولو موقع په لاس راشي؟ خو هغه وویل ، نه ، بیا یې په اخبارکي ولیدل چي د اردو د عامه اړیکو څانګي په قاهره کې د عکسونو یو ننداړتون پرانست ، ناصر وویل ، هغـوي باید خبر شي چي زه هلتـه ورتلونکي یم . دننداړتون تیاروونکي خوشاله او اریان شو ، خو د لازمو ترتیباتو نیولو له پاره وخت ډیر کم و . نو ناصر د وسلو د پیرودنې خپل ډراماېي اعلان د ۷۲ کسانو یوي ډلې ته وکړ چي اکثره یې عکاسان وو .

کرمټ روزولټ لا په هوا کې ؤ چي د وسلو د معاملې اعلان وشو . ماله راښکته کیدونه سمدستي وروسته هغه ولید ، راته یې وویل: د ځانه سره یې یو څه راوړي دي چي د اخطار په اندازه دي . دي دا ویره را پیدا کړه چي که چیري مصر د وسلو په پیرودنه ټینګار کوي، د څلورو ټکو تخنیکي او اقتصادي مرستي به بندي شي ، د ډپلوماتیکي اړیکي به خرابې شي او کیدي شي د شوروي د وسلو راوړونکي بیړیو مخه په اوچتو سمندرونو کې ونیوله شي . ما روزولټ ته وویل که ناصر له دغو الفاظو سره مخامخ شي نتیجه به یې یوه غمجنه پیښه وي ، اخطار به د روزولټ په مخ ورواېشتل شي . ورته مې وویل چي تاته دغه وظیفه د وسلو د معاملې د اعلان نه وړاندي درکړل شوي وه ، او اوس دا کار یو

کیدونکو نظریاتي پوښتنو کي تخصص لري .

دا سړي د سیاسي بیرېو اجرائیه‌کمیټه تشکیلوي چي د دفاع ، بهرني سیاست او د امنیت د ټولو چارو سرپرستي کوي . نن د دوي مخي ته د منځني ختیځ مسئله پرته ده ، او دوي د هغي سیمي بیلا بیل هیوادونه ترڅیړني لاندي نیسي چي ورسره په حکومتي سویه اړیکي لري .

دوي د سیمي په څېړنه کي د ځانونو ـ خوشالۍ له پاره ډیر څه نه لري . مصر هغه هیواد دي چي د دوي اړیکي ورسره پخوانۍ او نسبتاً صمیمي وي ، د هغوي دفاعي قواوي‌ېې په عصري توګه وسله والي‌کړي، د دوي انجنیرانو ورته د عصري انجنیرۍ معجزه، لوي بند جوړ کړ، خو اوس ېې اړیکي ډیري خرابې شوي دي‌جمهوررئیس‌ېې هره ورځ په ډیرو بدو او سپکو الفاظو یادوي. سوډان چي یو وخت یو ډیر بریالی او مهم کمونست ګوند جوړ شوي‌ؤ ، نن ورسره په عربي نړۍ‌کي له مصر نه په دښمني کي کم نه دي. سوریه بل هیواد دي چي د شوروي د پوځي او ملکي تخنیکي مرستونه ېې ډیره ګټه اخیستي ده ، نن ېې هم اړیکي ورسره نژدي دي خو، ښي نه دي . عراق چي څو کاله وړاندي ېې غوښتل او خوښ ؤ چي ټول تړونونه د شوروي اتحاد سره وکړي ، اوس هغه هم بل لورته روان دي ، د عراق دولت لویدیځ ته د مرستو په هیله ګوري او غواړي د لویدیځو کمپنیو سره تړونونه وکړي .

د سعودي عربستان نه دوي ته له ژوندۍ دښمنۍ پرته بل امید نشته . شمالی یمن یو وخت د شوروي له پاره په زړه پوري راتلونکي ؤ ، هغه وخت چي لویو انتونوف الوتکو وسلي او خوراکي شیان هلته د یمن د جمهوري اردو له پاره راوړل ، خو اوس په هغه هیواد کي یو شوروي تیکنیشن هم نشته . په سومالیه کي هم ورته پوره امیدونه وو ، خو هغه هم ټول ېې خونده شول ، او د افریقي په ښکر کي هم د شوروي امیدونه د سومالیي او حبشي ترمنځ د جنګ له امله د خاورو سره برابر شوي دي . یواځي فلسطینیان څه نا څه وفادار ښکاري ، خو دا خلک چي خپله خاوره نه لري ، د کوم هدف له پاره ګټور کیدي شي ؟

په دي‌کي شک نشته ، که څه هم هغوي خپله راتلونکي تیاره ویني ، خو هغوي‌ته‌ددي نه زیات‌خپل‌هغه پخواني‌خراب‌وختونه ورپه یاد دي‌چي دناصر سره ېې ډیر نظریاتي اختلاف درلود . هغوي به هیڅکله دا خبره له یاده ونه باسي چي ناصر د لیبیا معمر قذافي تـه څنګه مشوره ورکـړي وه ، چي بایـد وسلې لـه

شوي کار دي ، ښه به داوي چې په دي هکله نوي هدايت واخلي . ما سره په خبرو کې په منځني ختيځ کې د ايزنهاو ورځانګړي نماينده ايريک جانسټن مرسته وکړه ، هغه هم دا وخت په قاهره کې ؤ ، هغه ټينګار وکړ چې ډير احتياط بايد وشي .

ما هغه ته وويل چې ناصر ته څه ورپيښ شوي وو ، هغه پوهيده ددي خبري سوال ته را پيدا کيږي چې روزولټ دي هغه ته اخطار نه وزکوي ، دا به سمه نه وي چې د اخطار د اخيستلو نه په ډډي کولو سره د ده سپکاوي وشي. نو خبره داسې جوړه شوه چې دي به په شخصي توګه د ماښام د ډوډۍ په ترڅ کې زما په کور کې د ناصر سره وګوري ، خو د وسلو دمعاملې په هکله به ورسره خبري نه کوي، ترڅو نوي هدايت له واشنګټن نه را رسيدلی نه وي . همداسې وشول .

د نوي هدايت له پاره د روزولټ غوښتني ډالس ډير په غوصه کړ ، هغه فکر کاوه چې استاذي يې د فشار لاندي راغلی او کمزوري شوي دي . ډالس د روزولټ د قوي کولو له پاره د بهرنيو چارو په وزارت کې د منځني ختيځ د چارو له پاره معين جارج الن قاهري ته راوليږه ، هماغسې ليکلی اخطار يې راوړ چې روزولټ يې ناصر ته د ورکولو نه عاجز پاتې شوي و. کرمټ روزولټ او په قاهره کې د امريکې سفير هنري بيروډ ، د جارج الن د ليدو له پاره هوائي ميدان ته ورغلل او هغه يې خبر کړ چې اخبار چيانو ته څه ونه وايي . وروسته له خبرو يې هغه قانع کړ چې اخطار ورکول ډير خطرناک کار دي ، نو هغه راضي شو او اخطار يې پټ کړ .

په معامله کې ټولو برخه اخيستونکو نه شو کولاي خپل احساسات قابو کړي . په واشنګټن کې د مصر سفير دا وخت په قاهره کې ؤ ، په ناصر يې ډير غالمغال جوړ کړ او په اريانتيا سره يې ورته وويل : ‹‹ګواتيمالا ، ښاغلی جمهور رئيس ! ،ګواتيمالا› ! (د اربين پرضد د سيا په مرسته يواځې دري مياشتې وړاندي هلته کودتا شوي وه) .

روسان دسپتمبر د ٢٧ نې په اعلان سره ډير اريان شوي وو. هغوي خبر نه وو چې ناصر ولې د اسرارو هغه پرده وڅيرله چې دوي ورلاندي پټ په خاطر جمعۍ سره خپل کارونه کول . د دوي د وسلې بار څو کشتۍ لا اوس هم په مديترانه کې وي . که امريکايانو د دغو کشتيو د تګ مخه نيولاي واي ،

څه به پیښیدل ؟ دا دومره د ډاډ خبره نه وه چې ناصر ویل که داسې وشي ، دي به یې له امریکایانو سره دخبرو له لارې حل کړي . ښایې دا خبره په کار وه چې دوي ته مخکې له مخکې خبر ورکړ شواي وای چې ناصر څه ویل غوښتل، خو د دې کار د پاره وخت ډیر کم و .

خبره هغه وخت کړ کیچنه شوه ، چې یو روسي کشتیوان په سکندریه کې دیوې روسي کشتۍ نه سمدستي هغه وخت غیب شو چې روزولټ او الن مصر ته راورسیدل . د هغه د پیداکولو له پاره هر ډول هڅې وشوې ، خو د مصر مقامات د نورو ټولو خلکو په شان هغه وخت اریان شول چې روسي کشتیوان لږ وخت وروسته په امریکا کې ښکاره شو او د سیاسي پناه غوښتنه یې وکړه . داسې ښکاریده چې هغه په پټه په موټر کې د سکندریې نه قاهرې ته ورل شوی و، له هغې ځاې نه د دیپلومات په جامه کې اتن ته تللی اوله هغه ځایه واشنګټن ته.

ګرانه وه روسان دا ومنې چې په مصر کې څوک په دې کار خبر نه وو . په تیره بیا چې دلته د مصر په کمونستانو زور راوړل شو ، په دې کار هم له روسانو نه امریکایان ډیر خوشاله وو . په څینو عربي محافظه کارو هیوادونو کې شور او غوغا پورته شوه چې ناصر د کافرانونه وسلې راونیولې او ځان یې د ملحد کمونست سره ملګري کړ . د دغو تبلیغاتو سره د مقابلې کولو یوه لاره داوه چې د مصر په مطبوعاتو ، اخبارونو او راډیو کې په مصر کې د کمونستانو محاکمه کولو ته زیاته پاملرنه وشي . ناصر په دې خبره ټینګار کاوه چې هغه وسلې راواردي کړي ، نه ایډیالوژي . روسان بالکل نه پوهیدل چې د مصر په مطبوعاتو کې د کمونستانو د محاکمې دومره زیاته یادونه د څه له پاره ده ، او یا د مصر د ایډیالوژي په کمونستي ضد فطرت باندې ټینګار او تکرار څه مطلب لري .



د وسلو معاملې په منځنۍ ختیځ کې حالات بدل کړل . اوس دا سیمه د لویدیځ د نفوذ سیمه نه شواي بلل کیدی ، اوس دا څمکه د یرغلګرو له پاره ممنوعه سیمه وه . د لویدیځ د وسلو د پلورلو د دغه انحصاري بازار ماتولو ټولو عربانو ته لاره خلاصه کړه چې له نورو منابعونه وسلې ترلاسه کړي او ډیر عربان په دې کار خوشاله ښکاریدل . ژر سوریې د شوروي اتحاد سره د وسلو

د پیریدلو له پاره خبري پیل کړي ، او چې کله په ډسمبر کې د برتانیې د اردو لوي درستیز جنرال تمپلر عمان ته راغئ ترڅو د اردن حکومت تشویق کړي د بغداد د تړون غړي شي ، د خلکو د سختو مظاهرو سره مخامخ شو ، مظاهري یواځې هغه وخت تر کنترول لاندي راغلې چې د اردن نوي حکومت خلکوته وعده ورکړه چې اردن به هیڅکله هم د بهرنیو سره تړونونه ونه کړي .

امریکایانو ځانونه د برتانویانو په پرتله زیات نرم وښودل . داسې لوبه یې پیل کړه چې د وسلو د معاملې د غم تداوي وکړي . د ډالس فکر بیرته لوي بند ته را وګرځید . په اسوان کې د یو لوي بند جوړول به په ډیره اندازه شاړې ځمکې تراوبو لاندي راولي او کافي بریښنا به تولید کړي چې د مصر په کرنه او صنعت کې به ډیر مهم رول ولوبوي ، دا د نوي انقلابي دولت له پاره د پاملرنې وړ لومړي درجه کار ؤ . ډالس داسې حساب کړي ؤ چې لویدیځ خو د وسلو د برابرونکي په توګه په مصر کې خپل ځاي بایلود ، کیدي شي دغې لوي پروژي ته په کریډت ورکولو سره دوي د مصر په اقتصاد او مالیه باندي څه ناڅه کنترول وساتلی شي . نو هغه ناصر ته د نړیوال بانک د رئیس ایوجن بلیک له لاري یو پیغام ولیږه : زه غواړم ناصر په دي خبره پوه کړم چې روسان ورته د مرګ له پاره د وسلو مرسته کولاي شي ، خو یواځې مونږ ده ته او دده خلکو ته ژوند ورکولاي شو» .

د لوي بند د مالي امکاناتو د برابرولو په هکله دنړیوال بانک سره خبري د ١٩٥٣ کال راهیسې روانې وې ، او د وسلو د معاملې د کولونه لږ وروسته شیپیلوف ناصر ته یادونه کړي وه چې روس د لویو بندونو په جوړولو کې ډیره تجربه لري ، که ضرورت وي روس دي ته تیار دي چې دا تجربه د مصر په خدمت کې وړاندي کړي ، ناصر له هغه نه مننه کړي وه او ورته یې ویلي ؤ چې غواړي دا کار د لویدیځ په مرسته تر سره کړي او د شوروي اتحاد مرستې په صنعتي پروژوکې ولګوي . د دغې مذاکراتو له مخې شیپیلوف دا خبره ښکاره کړي وه چې شوروي اتحاد به د مصر سره په صنعتي پروژو کې مرسته کوي او د لوړبند د جوړولو سره علاقه نه لري . دغې خبرې ډالس زړه‌ور کړي ؤ چې روسان به په هیڅ‌ډول هم د لوړ بند په جوړولو کې برخه وانخلي - یوه بدمرغه ناپوهي وه - چې ژر ثبوت شوه .

د امریکایانو د غلطي محاسبې یو دلیل هم داؤ چي دوی ځان په دي تکي نه پوهاوه چي مصریانو شوروي اتحاد ته په داسي سترګه کتل چي لاسونه یې په سیمه کې د هر ډول امپریالیستي ناولتوب نه پاک وو. ډالس یو ځل د ناصر پاملرنه په ختیځه اروپاکې د شوروي اتحاد کارونو ته راواړوله. خو ناصر ورته وویل: «هغوی مونږ ځنګه نیوی شي؟ هغوی ختیځې اروپا ته ځکه ننوتل چي ګډ سرحدونه یې ورسره درلودل، هلته یې خپل پوځونه لیږلی شول. خو سور پوځ د مصر نه ډیر لیري پروت دی. زما لانجه د کمونیزم سره یوه کورنۍ شخړه ده. که کورنۍ جبهه د ملي اهدافو ترشا کلکه ولاړه وي، مونږ د هیڅ شي نه ویره نه لرو».



د سویز کال راو رسید. د ۱۹۵٦ کال په لومړیوکې شوروي اتحاد په منځني ختیځ کې د حالاتو په پرمختګ خوشال ښکاریده. خروسچف د شوروي اتحاد د کمونست ګوند په شلم کانګرس کې وویل: «د نړۍ په تاریخ کې هغه نوی دور چي لینن یې اټکل کړي و، را رسیدلی دی، چي د «ختیځ خلک به په نړیوالو فیصلو کې مهم رول ولري او په نړیوالو اړیکوکې به یو مهم عامل شي. که څه هم دا هیوادونه د سوسیالیستي بلاک پوري تړلي نه دي، خو دوی کولای شي د خپل ملي اقتصاد د جوړولو او د خپلو خلکو د ژوند د ښه کولو له پاره د پاملرني وړ بریالیتوبونه ترلاسه کړي، نن هغوی مجبور نه دي د عصري سامان الاتو له پاره خپلو پخوانیو استعمار چیانو ته مخ وروا ړوي. دوی کولای شي ټول شیان د سیاسي او پوځي هر ډول شرایطو پرته له سوسیالیستي هیوادونو نه ترلاسه کړي».

د کانګرس نه وروسته مصر د الف درجي (پوړ) له امتیازاتو نه ګټه پورته کوله. ګالینا اولانوفا یوه اونۍ له قاهري نه لیدنه وکړه، په مسکوکې د مصري فلمونو نندارتون جوړ شو، یوه شپه یوي جنۍ یوفتوسینکو د مصر د کلتور په هکله یو شعر ولوست چي یې پکي د نیل د افتخاراتو ستاینه وکړه. د دووزرونه زیات مصریان په کال کې د یو او بل هیئت د غړیو په توګه شوروي اتحاد ته لاړل، د سوله ییزو اهدافو له پاره د اتومي تولیداتو په هکله له شوروي اتحاد سره یو تړون وشو او مصر لومړنۍ اتومي بټۍ ترلاسه کړه.

په دي وخت کې د شوروي دریځ یوه په زړه پوري ځېرنه جوړوي.

د دوي د پاره لکه چي ویل به یې دلته د پښني د کلکولو څه ضرورت نشته ، ځکه پښنو دوي منځني ختيځ ته راننه ایستل . دا دوي نه وو چي دلته یې لوي برید پیل کړ بلکي مصر دوي دغه کارته مجبور کړل . مصر د دوي وسلوته اړؤ ، د ستایلو وړده چي مصر د خپلو پلانونـوپه رڼا کي د وروسته پاتې سیمو په پرمختګ کي د خپلو خلکو ملاتړ د یو ملي هدف ترشا د یوې محرکې قوي په شکل راکش کړ . د مصر خلک په دي ډیر خوشاله وو چي ناصر د مرستو د ترلاسه کولو د پاره شورویانوته مخ وروارؤه ، په ټوله عربي نړۍ کي د ټولو له پاره د ویاړ یو سمبول شو او په خپل ټول ژوندکې یوه افسانوي څیره شوه .

د لـویـدیځ پـه تیره بیا د برتانیې له پاره د ١٩٥٦ کال پیل پوره ستونځي راوړي . د اردن ځوان پاچا حسین د مارچ په لومړۍ نیټه د اردن د پوځونو برتانوي قوماندان ګلوب پاشا له کاره لیري کړ . دا بدمرغه خبر سم په هغه وخت خپور شو چي د برتانیې د بهرنیو چارو وزیر سلوین لوئیډ په قاهره کې له ناصر سره د ماښامي نه نا امیده راوتلی ؤ هڅه یې کوله د دوو هیوادونو ترمنځ د اړیکو د ښه کولو څه لاري چاري ولټوي . سلوین لوئیډ را ټوپ کړ او ویې ویل د ګلوب لیري کول د ناصر په لارښونه شوي او وخت یې یوه سنجول شوي ترټه ده . د برتانیې د صدر اعظم ، سر انتوني ایډن او د محافظه کارګوند غوصه د پاچا حسین پرځای زیاته ناصر ته را وپاریده . شپږ اونۍ وروسته بلګانین او خروسچف لندن ته لاړل ، خروسچف به هر وخت مونږ ته دا خبره یادوله ، چې ایډن دومره په ذهن کي نا ارامه ؤچي بالکل نه پوهیده په منځني ختیځ کې د را پیدا شویو حالاتو سره د مقابلي له پاره څه وکړي .

د لندن په دې کتنه کي ایډن پیشنهاد وکړ چي منځني ختیځ ته د وسلو د برابرولو یوه ټاکلي اندازه معلومه شي اوهم یې غوښتنه وکړه چي شوروي اتحاد د ١٩٥٠ کال د دري اړخیزه (برتانیې ، فرانسې او امریکې) د هغه اتحاد غړی شي چې په سیمه کې یې د واړو خواووته دوسلو د ورکولو اندازه ټاکلې ده چي د هغې نه باید زیاته نه شي . دي غوښتنو میلمانه اندیښمن کړل چي څه وکړي . دوي لا تراوسه فیصله نه وه کړي چي د عربو ـ اسرائیلو د لانجې په وړاندې څه ډول دریځ ونیسي . دوي پوهیدل چي په منځني ختیځ کې یې نفوذ پیدا کړي دي ، خو اندازه یې نه شوه لګولی ، او په دي نه پوهیدل چي د مصر نـه بهر په نورو هیوادونـو کې ناسیونالیستي غورځنګونه څومره قوي

دي . دوی غوښتل د لویدیځ سره د چنو وهلو په مقابله کې خپل زور وآزموي ، د دې د پاره به ښه وي چې د لویدیځ په ذري اړخیز اتحاد کې ورګډ شي او د هغوي سره د سیمې د برخلیک په ټاکلو کې ځان شریک کړي ، خو همدومره ي د سیمې د جلاجلا حکومتونو سره نیغ په نیغه اړیکې او دریځ هم خوښ ؤ . په قاهره کې داسې مفکوره پیدا وه چې شورویان به دا دویم ډول دریځ ونیسي .

ناصر تراوسه هم پوره باوري نه ؤ چې روسان به دده نه ملاتړ جاري وساتي . ځکه هغه فکر کاوه د لویدیځ سره د روسانو تفاهم په تیره بیا د وسلو د برابرولو په معامله کې تراوسه هم لا د امکان نه وتلی نه ؤ ، ده پریکړه وکړه د ځان تیرولو یوې بلې لارې پیدا کولو ته اړتیا لري . نو په مې کې ي د پیکنګ حکومت په رسمیت وپیژاند . ځنګه چې د چین اصلي هیواد لا تراوسه د ملګرو ملتو د ټولنې غړی نه ؤ ، نوکه اړشي مصر به وکولای شي د شاله دروازې نه د وسلو د برابرولو خبرې پیل کړي . د ناصر دي عمل ډالس دومره خپه کړ لکه د ګلوب بر طرفۍ چې ایډن ځورولی ؤ . داوخت د سویز د توپان وریځې په را ټولیدو وي .



د لوړ بند په هکله د مصر سره د امریکایانو اړیکو شوروي اتحاد په اندیښنه کې اچولی ؤ. د دوی ویره له دې نه وه چې امریکا به د بند په جوړولو کې د پیسو د لګولو له لارې له مصر سره خپلې اړیکې بیرته ښې کړي . هر ځل به چې ایوجین بلیک ، یا رابرټ اندرسن او یا جان مکلوي قاهري ته را ښکاره شو ، د شورویانو بدګوماني به زیاته شوه . دوی غوښتل پوه شي دا سړي څه کوي ؟ د ۱۹۵٦ کال په اوړي کې دوی داسې احساس کړه چې واشنګټن تصمیم نیولی د لوړ بند په جوړولو کې مرسته ونه کړي .

ناصر د ۱۹۵٦ کال د جولای په ۱٦ مه یوګوسلاویې ته دلسو ورځو په رسمي سفر لاړ ، دي د مصر نه له وتلو وړاندي همدغې نتیجې ته رسیدلی ؤ . خو تراوسه هم ده د روسانو سره په دې هکله له خبرو کولو نه ډډه کوله . ده فکر کاوه دا کار به په اخلاقي او عملي لحاظ سم نه وي . امریکایان به فکر وکړي ناصر په دې ډول له دوی نه د رشوت اخیستلو په بڼه د خپل ځان ملاتړ غواړي ، چې بیا به د امریکې د ملاتړ او مرستو ټولې لارې پیخي بندې شي .

په لوړ بندکې د امریکې د مرستو د پیشنهاد د بیرته اخیستلو پریکړه د جولای په ۱۹ مه په واشنګټن کې د مصر سفیر ته ورکړل شوه ، دا په یوګوسلاویا کې د ناصر وروستۍ ورځ وه . ناصر چې بیرته مصر ته راورسید ، د مخه یې لا فیصله کړې وه چې د ده ځواب به دسویز د کانال د کمپنۍ ملي کول وي ، خوبخکې له دې نه چې دا اعلان وکړي ده غوښتل په قبرس ، مالټا ، لیبیا او عدن کې د برتانوي پوځونو د حال نه ځان خبر کړي . ده فکر کاوه که چیرې د برتانیي پوځونه کافي او تیار وي ، کیدي شي دلته ډیر ژر د پوځي مداخلې هڅه وکړي ، خوکه کمزوري وي ، ده ته به د سیاسي عمل د کولو موقع تـرلاسه شي . نـو ده د مکاریوس او ګریواس نه چې د ایوکا د ګوریلایانو د روزلوله امله د مصر پور وړي وو ، پوښتنې وکړي . د جولای تر ۲۳ مې پورې ورته لا دا معلومات نه ؤ رارسیدلی ، دا د انقلاب کلیزه وه ، د مهمو فیصلو د اعلانولوله پاره ښه وخت ؤ خو په مسکو کې د مصر په سفارت کې د انقلاب د کلیزې په مراسمو کې د شوروي اتحاد د سیاسي بیرو ټولو غړیو ګډون کړی ؤ ، شیپیلوف د مصر سفیرته وویل . «تاسې د شوروي اتحاد په دوستۍ حساب کولای شئ» .

دري ورځې وروسته یوه بله ښه موقع هغه وخت وه چې ناصر په سکندریه کې د مصر نه د فاروق پادشاه د تللو په یادګار بیانیه ورکوله . دلته ؤ چې ناصر د دوه نیم سوه زرو خلکو غونډې ته د خپلواکۍ په څلور لاري کې وویل ډیروزیاتو خلکو په راډیو کې دا بیانیه اوریده ، چې مصر به دا لوړبند پخپله جوړ کړي او مصارف به یې د سویز د کانال له عایداتو نه ورکړل شي . «مونږ دا پریکړه کړې ده چې خپلې پخوانۍ تاریخي ویاړنې بیرته ترلاسه کړو ، او د خپل ملي درناوي او حیثیت نه ساتنه وکړو» .

دا بیانیه په مسکوکې په مطلقه چوپتیا سره بدرګه شوه . د جولای په ۲۳ مه ټوله سیاسي بیرو د مصر په سفارت کې وه ، د جولای په ۲٦ مه د سفارت یوه غړي هم د بهرنیو چارو په وزارت کې د دریمې درجې ملکي مامورینو سره اړیکې نه شوای نیولای . دا له دې امله نه چې شورویان په دې خپه وو ناصر ورته د خپلې فیصلې په هکله وړاندې خبر نه ؤ ورکړی ـ د سویز له جنګه څو میاشتې وروسته ، شیپیلوف په مسکوکې د مصر سفارت ته ورسوله ، لږ تر لږه ، تاسې زمونږ دوستانو ، باید مونږ سره مشوره کړای وای' ـ دا همدومره خبره وه ، دوی غوښتل پوه شي چې څه شوي وو . په ۲٤ ساعتونوکې د سیاسي بیرو

ډله پېژو مغزو خپله پرېکړه وکړه . د مصر نه يې تو د ملاتړ وکړ او لويديځ ته يې سخت اخطارونه ورکړل .

که څه هم د قواوو د ترتيب او تنظيم له پاره يوڅه پلانونه پيل شول ، د لانجې د را پيدا کيدو په هکله نظريه داسې وه چې د برتانوي پوځونو له پاره لېترلږه لس اونۍ وخت په کاردی ترڅو د بريد له پاره تياری ونيسي . دا نظريه هم وه چې اونۍ تيرېږي د برتانويانو او فرانسويانو غوصه به سړېږي او د بريد خطر ښايي لږ شي . په دې نظريه کې روسان ، يوګوسلاويان او هنديان هم شريک وو .

اصلي هدف د وخت ترلاسه کول ؤ . د مصر حکومت پام کاوه چې له روسانو نه نظرونه غواړي ، که په دوی بريد وشي دوی به څه کوي ، دا له دې ويري چې کيدی شي د روسانو ځواب دا وي چې که پوځې عمليات به کوي ، د مصر په خاوره کې بايد د هغوی پوځي اډو ورکولوته تياری ونيول شي او د خپلې خوښې عسکر دې را جلب شي او داسې نور . د لندن په لومړي کانفرنس کې چې د اګست په ٦ مه پرانستل شو د مصر هيئت ډير پام کاوه داسې کومه څرګندونه ونه کړي چې ګوندې د دوي او د روسانو دريځونه سره په مرسته کې دي . البته هيڅ ډول همکاري نه وه . داسې هم کيدي شو روسان ناصر ته مشوره ورکړي په شالاړ شي او يادنه منلو يوه پلمه جوړه کړي . که د دغو مرستو او همکاريو په هکله يو کوچنی شک هم ايډن ته پيدا شي دا به د ده هغه تومت پياوړي کړي چې وايي ناصر د نړيوال کمونيزم پيرا دی . د ناصر لومړی نيت داؤ چې خپله کانفرنس ته لاړشي ، او هلته د يو ځارنوال په توګه حاضر شي ، نه د يو تورن په توګه ، خو هغه د اګست په ٨ مه د ايډن د اعلان نه وروسته خپل تصميم بدل کړ ، هغه داجنجال د دوه کسانو ترمنځ لانجه وبلله (زمونږ ناندرۍ د مصر او عربي نړۍ سره نه دي . زمونږ لانجه د ډګرمن ناصر سره ده) .

د لندن د کانفرنس د پای ته رسيدلو وروسته ، د ١٨ هيوادونو ګډې اعلاميې د مينزهيئت ته وظيفه ورکړه قاهري ته لاړشي ، ناصر ته خپل پيشنهاد وړاندې کړي او ورته ووايي : په مسکوکې د مصر سفير د هغې خوا راپور را-ليږلی دي چې د روماني په سفارت کې يې ورسره کتلي وو . په دې موقع خروسچف د برتانيي په سفير سرويليم هيټر باندې سلام ويلی ؤ ، په دې عبارت

'دادی امپریالیست راغئ !' د سرویلیم نه یې پوښتنه وکړه چې برتانیه ولې د مصر په څیر یوکوچني مبارزه کوونکي هیواد بانـدې خپله فرمانروایي تحمیلوي ؟ سرویلیم ځواب ورکړ : 'برتانیه یواځې غواړي د سویز په کانال کې د خپلو ګټوساتنه وکړي' . بیا خروسچف ټینګار وکړ : 'خیر د مصریانو حقوق اوګټې به څنګه شي' ؟ که تاسې هلته څه ګټې هم ولرئ ، آیا دا په دې ارزي چې خپل پوځونه وخوځوئ او د ګټو د ساتلو په پلمه د جنګ د پیل کیدو ویره را پیدا کړئ' ؟ باید له یاده و نه باسئ' که ستاسې له لاسه هلته د جنګ اوربل شي ، زمونږ خوا خوږي به ټوله د مصریانو سره وي . د برتانیې پر ضد به د مصریانو جنګ یو مقدس جنګ وي ، او که زما ځوی له مانه اجازه وغواړي چې په خپله خوښه د برتانیې پرضد جنګ ته ځم ، زه به ورته ووایم چې باید حتماً داسې وکړي .'

د سفیر د راپور له مخې ، په دې وخت کې د خروسچف پام پاکستاني سفیر اختر حسین ته شو چې د سرویلیم هیټر شاته ولاړؤ ویې ویل : 'تراوسه پورې مې امپریالیستانو تـه خبرې کـولې ، راځئ چې نوکـرانوته یې هم څه ووایم' . اختر حسین اریان شو . ویې ویل : 'ښاغلی چیرمین ، نـه پوهیږم د کومو امپریالیستانو په هکله لګیایی' . خروسچف وویل : 'هغه امپریالیستان ښیم چې تاسې یې په لندن کې ملاتړ کوئ' . اختر حسین وویل ، ستاسې مطلب دلندن په کانفرنس کې د پاکستان له پیشنهاد نه دی ، دا خو یواځې یوپیشنهادؤ . خروسچف وویل : 'ته نه وینې دا د مصر د ملي حاکمیت له حدودو نه تیری دی ؟ ته رښتیا ویلی شې حقیقت څه دی' ؟ اختر حسین پوښتنه وکړه ، ښاغلی چیرمین ، حقیقت څه دی ؟ 'حقیقت نسبي دی ، مونږ د حقیقت په لټونې پسې یو ، خو مونږ یې باید و پیژندلی شو . ښاغلیه ، راځئ ، د دې له پاره چې وکولای شو حقیقت و پیژنو ، څه و څکو . خروسچف وویل ، 'نه ، نه غواړم له تاسې سره څه و څکم . مونږ په روسیه کې یومتل لرو وایي ، یو سړی که څه مال ورک کړي ، کولای شي بیرته یې په لاس راوړي ، خوکه څوک رښتینولي ورکه کړي ، هغه د تل له پاره ورکه شوه' . بولګانین فکر وکړ چې خبرې نږدې دي د کنترول نه ووځي ، را وړاندې شو ، ویې ویل ، 'راځئ د پاکستان د خلکو د نیکمرغۍ له پاره څه و څکو' . خروسچف زړه نازړه وویل ، ډیره ښه . 'د پاکستان د خلکو له پاره ! خو زه به یواځې نیم ګیلاس څکم ، داپاتې نیم ګیلاس به هغه وخت ته ساتم څو د پاکستان حکومت خپل ځان د ټولو پوځي

ټرونونو نه و باسي !'.

د دې راپور په څېر نه او تحليل باندې په قاهره کې ډېروخت ونيول شو ، د دې له پاره چې په دې پوه شي د مصر سره د شوروي خوا خوږي ، مقدس جنګ ، د او طلبانه جنګيالي او داسې نور . . . اصلاً څه مفهوم لري .



د سوريې جمهور رئيس ، شکري کواتلي د اکتوبر په ۳۰ مه روسيې ته د يو رسمي او دوستانه مسافرت د کولو په فکر کې ؤ (ناصر په اګست کې هلته د سفر کولو نيت درلود خو د ځينو علتونو له امله يې ونه کړ) . په مصر باندې د اسرائيلو بريد د اکتوبر په ۲۹ مه پيل شو . په هغې ورځ کواتلي ناصر ته ټيلفون وکړ ، که څه شي ته اړتيا لري . ناصر ورته وويل که څه هم حالات خرپړدي خو په قابو کې دي ، که بدترشي ، نو ښه به داوي چې کواتلي مسکو کې وي . نوکواتلي روان شو او تقريباً د انګريزانو او فرانسې د اخطاروسره په يو وخت کې هلته ورسيد .

څنګه چې هلته ورسيد ، کواتلي د شوروي د مشرانو سره د کتلو غوښتنه وکړه ، ډيرژر د بولګانين ، خروسچف او د سياسي بيرو د ځينو نورو غړيو سره د کتنې ترتيبات ونيول شول . خو څنګه چې ده وغوښتل په پوځي حالاتو خبرې وکړي ، مارشال ژوکوف هم راوغوښتل شو . کواتلي ډير احساساتي ښکاريده . هغه ټينګار وکړ چې له مصر سره بايد مرسته وشي .

خروسچف پوښتنه وکړه : 'خو موږ څه کولای شو'؟

کواتلي په لوړ اواز وويل : 'دا زما کاردی چې درته ووايم څه بايد وکړئ' ؟ په مصر باندې بريد شوی دي ، او مصر په دې باور درلود چې تاسې يې مرستې ته ورځئ . که تاسې څه ونه کړئ ستاسې موقف به په عربي نړۍ کې بالکل خراب شي' .

خروسچف ورته بيا وويل ، 'خو موږ څه کولای شو' ؟

کواتلي وويل ، 'ولې د مارشال ژوکوف نه پوښتنه نه کوئ' ؟

بيا ژوکوف د منځنې ختيځ نقشه راوړه او په ميز يې اواره کړه . کواتلي ته يې مخ راواړاوه او ورته وې ويل : 'موږ له کومې لارې د مصر مرستې ته ورتلای شو' ؟ راته ووايه ! موږ خپل پوځونه د ترکيې او ايران له لارې سوريې او عراق نه تيرکړو او اسرائيلو ته ورننوځو او په برتانوي او فرانسوي

لویدځ نه ترلاسه کړي، نه له شوروي نه، او دا مشوره څنګه ومنل شوه او هغه میراج الوتکي راونیوي. همدارنګه یې له بلي خوا په سیمه کي د ډیر سخت کمونیستي ضد هیـواد اردن سره اړیکي ښي شوي نه دي ، دا به څنـګه له یاده وبـاسي چي بیاهم ناصر پاچا حسین ته مشوره ورکـړي وه چي د امریکي نه د وسلي را نیول جاري وساتي او باید له شوروي نه یې را نیولو ته زړه ښه نه کړي . ناصر داسي ویلي ؤ «مونږ باید د عربو او اسرائیلو جنګ د دوو سترو قدرتونو ترمنځ په را ښکیل شوي جنګ بدل نه کړو» ، د هغه دلیل داؤ چي «که عربان یواځي د شوروي اتحاد نه وسلي را نیسي او اسرائیل یې د امریکي نه ، نو دا به خاماخا کیږي» . یو ځل بیا د ناصر مشوري ته غوږ ونیول شو او شوروي سره دمعاملي نه ډډه وشوه .

سړی په حقیقت کي د ۱۹۷۷ کال په دوبي کي له دي واقعیت نه سترګي نشي پټولای چي په ټول منځني ختیځ کي د شوروي اتحاد دریځ بالکل وران ویجاړ ؤ. په ټوله سیمه کي داسي یو هیواد نه ؤ چي دشوروي اتحاد یورښتیني ملګري او د باور وړ ملاتړ وبلل شي . په داسي حال کي چي څو کاله وړاندي په هرځاي کي شوروي اتحاد د عربو خلکو د روا حقوقو ساتونکي ګڼل کیده ، خو نن د ټولو عربي هیوادونو کوڅي د واشنګټن په لور پرانیتي دي . د شوروي په ټپونو به نوره مالګه هغه وخت ودوړوله شي چي په دي پوه شي . دوي اوس په منځني ختیځ کي د تصمیم نیولو په بهیر کي یواځي هغه وخت رول لرلی شي چي امریکا یې دي کار ته راوبولي . امریکایان د ژنیو په کنفرنس کي خپل نفوذ ته سترګي په لاره دي ، که څه هم عربان دا نه کوي .

دا یوه ساده سیاسي غمجنه پیښه نه ده چي په کریملین کي ناست خلک یې ویني . دوي باید دلته د خپلي ناکامۍ تاوان هم حساب کړي . څو کاله وړاندي کوسیګین ویلي ؤ چي په عربي نړۍ کي د شوروي اتحاد د پانګي اندازه تر ۱۵ میلیاردو ډالرو زیاته ده ، په ۱۹۷۷ کال کي به دا اندازه خامخا تر ۲۰ میلیاردو رسیدلي وي او دومره زیات مصرف دوي ته کومه سیاسي، پوځي او یا اقتصادي ګټه ورسوله؟ اوس څوک د اسوان د لوي بند او د مصر کلیوالو سیموته د برق وررسولو خبري کوي ؟

د شوروي مشران چي خواو شاته ګوري ، یواځي یو کارویني چي عربان یې له دوي نه د کولو غوښتنه وکړي ، دا د وسلو د برابرولو کار دي . دا رښتیاده تقریباً ټولي نړۍ د هنري کیسنجر هغه د وکتورین منلی دي چي په

پوځونو برید وکړو ؟

په دې خبره کواتلي نورهم احساساتي شو . چيغه يې کړه ، مارشال ژوکوف ! مارشال ژوکوف ! ته غواړې زه ، يو غريب ملکي سړی ، تالوی مارشال ، د جرمني فاتح ته لاروښيم چې څه بايد وشي، ؟

خروسچف نقشه راټوله کړه او کواتلي ته يې وويل : ، مونږ به وګورو څه کولای شو . اوس دستي نه پوهيږو له مصر سره څنګه مرسته وکړو ، خو مونږ د مسلې د څيړنې له پاره خپلې غونډې جاري ساتو، .



څنګه چې د يوګوچني هيواد او د دوو لويو امپراتوريو د پوځونو ترمنځ جګړه وه ، ناصر د ځان سره د نړيوالو له خواخوږۍ نه ډاډه ؤ . هغه د ترا ـ فالګر په چوک او نورو ځايوکې له مظاهرونه راضي ؤ . بيا هم په هر صورت هغه د روس د مرستو درناوی کاوه ، خو نه يې غوښتل د هغوی سره ګډ پوځي عمليات وکړي . د نومبر په ۲ مه په مسکوکې په يوه ميلمستياکې د مصر سفير الکوني او خروسچف دواړو ګډون وکړ . خروسچف د الکوني سره خبرې وکړې ، ټولو نورو ميلمنو د دوی دواړو مخونوته کتل چې معلومه کړي دوی دواړه سره څه وايي . په حقيقت کې هغه پيغام چې خروسچف الکوني ته ورکاوه ، د خوشالۍ نه ډېر ليري ؤ . ، مونږ ددې خبرې پوره درناوی کوو چې تاسې د يو وسله وال تيري په وړاندې مقاومت کوئ، ، خوله بده مرغه زمونږ له پاره هيڅ لاره نشته تاسې سره پوځي مرسته وکړو . بياهم مونږ دنړيوال عامه ذهنيت د راپارلو هڅه کوو. الکوني لګياؤ ځان له هغې‌نه‌ډېر خوشاله وښيي چې ده يې احساس کاوه . هغه د خروسچف سره د خبرو او د سياسي بيرو سره د کواتلي د مذاکراتو تلګرام قاهرې ته وليږه .

د نومبر په ٦ مه ماسپښين وختي الکوني ته ټيلفون وشو چې د شيپيلوف سره د خبرو له پاره د بهرنيو چارو وزارت ته راشي . هغه ته د وزارت په دروازه کې د وزير مرستيال سيمينوف ولاړ ؤ . دا ډير د اريانتيا وخت ؤ چې پيښې د خطر د اوچت پړاو په لور رواني وې . دا وخت برتانوي او فرانسوي پوځونه په مصر کې را ښکته شوي وو ، په ټوله نړۍ کې د بريد پرضد خوابدي راپورته کيدله ، او چين ډير سخت دريځ نيولی ؤ . په همدې وخت کې روسي پوځونه هنګري ته د بغاوت د ځپلو له پاره خوځيدلي وو . خلک خبر وو چې د سياسي بيرو پرله پسې غونډې رواني دي .

سیمینوف، الکوني ته وویل : 'د وزیر صاحب په خبرو به ته خوشاله شي'.
الکوني چي د وزیر شیپیلوف دفتر ته ورسید ، د روس د هغو دوو اخطارونو نقل ورته ورکړل شو چي برتانیې او فرانسې ته یې ورکړي وو . هغه وویل ، 'سفیر صاحب ، مونږ ډیر سخت دریغ نیولی دی ، او مونږ به د تیري د ماتولو له پاره ستاسې تر څنګ ودریږو' .

په همدې ورځ بیا وروسته الکوني د خروسچف لیدلوته راوغوښتل شو ، ده ورته هم د هغو اخطارونو متن ولوست او ویې ویل چې 'دا به د هغوی مخنیوی وکړي' .

الکوني ورته وویل : چیرمین صاحب ، ته پوهیږې ، څلور ورځې وړاندې تا په هغه میلمستیا کې زما زړه نژدې مات کړی ؤ .

خروسچف ورته وویل ، زما مطلب داؤ تاته یو غولوونکی پیغام درکړم ، څکه زه پوهیدم چې ته يې په تلګراف کې قاهرې ته مخابره کوي . مونږ فکر کوو امریکایانو او انګریزانو زمونږ تلګراف کشف کړی دی ، مونږ غوښتل هغوی ته داسې مفکوره پیدا شي چي مونږ هلته لاس وهنه نه کوو ، نو مونږ وغوښتل په دغې غولونه کې له تا نه د یوې وسیلې په توګه کار واخلو . لطفاً ما وبښه .

رښتیاهم په مسکو کې دیپلوماتان ډیر په سوچ کې وو چې څه به کیږي . روس به له پورټ سعید او مالټا نه په یرغلګرو پوځونو باندې د راکټونو برید وکړي ؟ خپله په برتانیه بالدې خو د برید کولو کار له کیدونه لیري ښکاري، خوکیدي شي په مدیترانه کې د برتانیې او فرانسې په سمندري قواوو برید وکړي . اوکه د مقابلې په شکل به په ایران باندې د روس له خوا برید وشي ؟ په څه شي چې د خلکو نظریه یو ډول وه داوه چې که شوروي تشې د خولې لاپې کوي او عملاً څه ونه کړي په دریمه نړۍ کې به لېرتر لږه تزلسو کالو پورې د دوی درناوی له منځه لاړ شي . که څه هم د برتانیې ، فرانسې او اسرائیلي قواوو د وړاندې تګ مخنیوی د امریکا د فشار له مخې ؤ ، نه د روس له امله ، خو بیا هم د روس دریغ د وروستۍ پریکړې د نتیجو سره مرسته وکړه . کله چي برتانوي او فرانسوي پوځونه په دې پوه شول چې د سترو قدرتونو نه یوه ته باید حتماً تسلیم شي ، دوی امریکا خوښه کړه .

تراوسه هم لا د مصر اړیکي د شوروي سره سم نه وو . اوس هم د دې

اړتیاوه چې بالکل باید په دوی پورې و نه تړل شي. نو په هغه وخت کې په مسکوکې په سلګونو خلک دې ته تشویق کېدل د مصر سفارت ته ټیلفون وکړي چې دوی تیار دي په داو طلبانه توګه او خپله خوښه د مصر جنګ ته لاړشي ، په ملګرو ملتو کې پریکړه لیک را وړاندې شو چې په هنګري کې د شوروي مداخله و غندي، د مصر هیئت ته لارښوونه وشوه چې له رایې ورکولونه ډډه وکړي . دا پریکړه ډېره ګرانه وه ، سره له دې چې شوروي د مصر په تصمیم ډېر خوریدلی ؤ خو ښکاره یې په رسمي ډول څه اعتراض ونه کړ.

د مصر او روس د واده د لومړۍ میاشتې د خوږو خاطرو ترټولو خوږه شپه د نومبر په ۷ مه د اکتوبر د انقلاب د کلیزې د نمانځنې د مراسمو وه. په دې موقع د مهمو شعارونو په منځ کې یو داؤ : 'د مصر پر خلکو دې تاوده سلامونه وي چې په پوره زړه ورتوب سره د خپلې خاورې ، ملي حاکمیت او استقلال نه ساتنه کوي ! په هغې ورځ خروسچف د مصر سفیر ته وویل : 'تاسې د برتانیې د زمري لکۍ غوڅه کړه ، او مونږ یې غاښونه راوایستل ! اوس نه هغه غوریدی شي او نه خوله لګولی شي . مصر اوس په شوروي اتحاد کې یوه افسانه وه او داسې یو شی ؤ چې ډېر ژریې عملي ګټې لاس ته راوړي . ناصر ته وعده ورکړل شوه هغه ټولې وسلې به ورته بیرته پوره کړي چې د سویز په جنګ کې له منځه تللې دي ـ د الوتکو کرایه به ورپیا وي او نور هر څه به د اصلي بیې په نیمایي وي.



ډېر ژر نویوستونځو د دوی سرونه راپورته کړل . بې له شکه روسانو د دې له پاره چې په هنګري کې په خپل ناوړه عمل پرده واچوي، دې تبلیغاتو ته زور ورکړ ، دا د دوی اخطارونه وو چې د برتانیې، فرانسې او اسرائیلي پوځونو د وړاندې تګ مخنیوی یې وکړ ، په داسې حال کې چې په مصر کې خلک بالکل په دې پوهیدل که چیرې دوی د برید د پیل نه وروسته د شوروي د اخطارونو پورې د یوولسو ورځو په موده کې تسلیم شوي وای ، هر څه به یې له لاسه ورکړي وای ، او روس یا بل چا بیا هغه وخت هیڅ نه شوای کولای. د مصر کمونستانو هم غوښتل په تاوده تناره خپلې پتیرې پورې کړي . د تیري د برید نه وړاندې لا د ملکي داو طلبانو ملي ګارډ جوړ شو او په پورټ سعید کې یې د مقاومت په کار کې ډېر مهم رول ولو باوه . یو شمیر کمونستان دلیکوالانو او روښان فکرانو په ګډون په دې ګارډ کې ورننوتي وو او

هغه یې کوله دې ته مارکسیستي رنګ ورکړي . د ملي ګارډ کمونستو غړیو به په پورټ سعید کې هر ځای د شوروي د کونسل پیره کوله . د اردو په خلکو کې دا اندیښنه را پیدا شوه چې ملي ګارډ ځان داسې ښیې چې ګوندې د هیواد رښتیني ساتونکي پوځ دا دی . بیانو داسې پریکړه وشوه چې ملي ګارډ باید بیرته وران شي .

کمونستانو د ملي ګارډ د ورانیدلو پرضد ابلاغیې خپرې کړې ، ټینګار یې کاوه چې ملي ګارډ باید د یرغلګرو ځواکونو په وړاندې د ښه مقاومت له پاره د عوامو د تنظیمولو له لارې د یوې اغیز منې وسلې په توګه په کاروا چول شي. څوکسه کمونستان ونیول شول . دې کار روسان ناراضه کړل ، خو هیڅ ډول ګیله یې ونه کړه. کله چې خروسچف زمونږ سفیر سره وکتل ورته وېې ویل : 'زه تا سره په رسمي ډول خبرې نه کوم ، خو د یو انسان په توګه د بل سره، دا خلک چې تاسې بندیان کړي دي ، په ملي مقاومت کې یې فعاله برخه اخیستې ده . تاسې ولې د دوی سره داسې معامله کوئ ؟

نوري ناخوالې هم وې . د سویز کانال کندو کپرې پاکې او د کشتیو پرمخ پرانیتل شو . روسانو دعوئ وکړه چې د دوي د ځانګړي موقف له امله دوی د دې مستحق دي داسې امتیازات ورکړل شي ترڅو د دوی له کشتیونه د مصر په اسعاروکې مالیه واخیستله شي ، خو ورته وویل شول چې د نورو ټولو خارجیانو په څیر به دوی هم په بهرنیو اسعارو کې مالیه ورکوي . بیا دوی په قاهره کې د فلمونو یو نندارتون پرانیت ، اوهلته یې د فلمونو یوه مجموعه راولیږله چې د کمونستي تبلیغاتو پرته پکې بل هیڅ شی نه ؤ . نوځینې فلمونه سانسور شول . د کلتور وزیر نیکولای میخایلوف قاهرې ته راولیږل شو چې دا خفګان لیرې کړي ، خو هغه دا کارونه کړای شو .

په همدې وخت کې د مصر حکومت غوښتل د امریکې سره خپلې اړیکې بیرته سمې کړي ، داد هغه اثر او رسوخ له امله چې دوی د بهرني تیري په مخنیوي کې په کار اچولی ؤ . دا یو داسې شی ؤ چې روسان پرې ښه خبر وو ، او هیڅ خوښه یې نه وه . کله چې د امریکې حکومت د ایزنهاورد ډوکتورین فورمول جوړکړ ، دا د 'نړیوال کمونیزم' پر ضد د مرستو په پلمه ، اصلاً په منځني ختیځ کې د برتانیې او فرانسې د ځای د نیولو له پاره د امریکې بر بنده هڅه وه ، په عربي نړۍ باندې یې د دغه ډوکتورین د منلو زور راوړ ، مصر ورسره مخالفت

وکړ ، خو په داسې یو سلوك چې د مخامخ ناندریونه یې ځان وساته . امریکایان اوس هم په دې هڅوکې وو چې د سینا او غزې د سیمونه اسرائیلیان وباسي (دا ځایونه د ۱۹۵۷ کال ترمارچه پورې تخلیه نه شول) ، خو دوی همدارنګه په مصر باندې زور راوړ . هغوی د لومړنیو ښونځیو شاګردانو ته د خوراکي موادو د برابرولو او هم د اقتصادي او تخنیکي مرستو پروګرامو نه بندکړل ، هغوی د مصر په منجمد شوو ډالرو باندې د دوا پیریدلو له پاره د مصر غوښتنه ونه منله ، اوهم یې په مصر باندې د غنمولو خرڅولونه ډډه وکړه . خو دې فشارته د مصر ځواب له هغه څه نه ډیر ګونګ ؤ چې د روسانو خوښ شوی وای .

حقیقت دا ؤ چې سویز په عربي نړۍ او افریقا کې ډیر زیات اهمیت درلود ، او روس دانه شو زغملای په مصر باندې اعتراض وکړي . برسیره پردې هغوی بخپله هم د سویز په معاملو باندې راضي ښکاریدل او هڅه یې کوله تحلیل کړي چې رښتیا څه شوي دي . لکه چې دوی ولیدل د لویدیځ نفوذ په دغې مهمه ستراتیژیکه سیمه کې په ښکاره ډول د غیر کمونستانو ترمشرۍ لاندې د ملي آزادي ښبونکو غورځنګونو په لاس درې ورې شوي دي . بولګانین د مصر سفیر ته وویل : تاسې باید اوس خپل ځان قوي کړئ . هر څه چې امپیر یالیستان وکړي، اوس درېمه نړۍ په اسانۍ سره آزادیدونکې ده . که یو سویز د نړۍ د قدرت په انډول کې دومره توپیر راوړای شي ، نو د ملي آزادي ښبونکو غورځنګونو د پرمختګ د پاره ډیر وخت سپماکیدي شي . د بولګانین دا نظریه په حقیقت کې د کمونستي بنستونونه انحراف ؤ . شوروریان له هغه څه سره چې دوی «ماجرا جویان» بلل دښمنان وو ، خودوی مجبور وو داومني چې یو «ماجرا جوی» د منځني ختیځ څیره ور بدله کړې ده ، چې دا یواځې او یواځې انقلابي شمیرل کیدي شي ، اونه بل څه .

د ملي آزادي ښبونکو غور ځنګونو په هکله د شوروي په افکاروکې دغسې ځیني بدلونونه د ګوند د تیوریسن ، اولیانوفسکي د ۱۹۵۶ کال په فبروري کې د شوروي اتحاد د کمونست ګوند شلم کانګرس ته په بیانیه کې را ښکاره شوي وو . هغه راپور ورکړی ؤ چې تر ډیرې اندازې به د نړۍ انقلابي پروسه په هغو لارو چارو پورې تړلې پاتې شي چې څنګه درېمه نړۍ هغه ټولنیزې او اقتصادي ستونځې حلوي چې ورسره لاس وګریوان ده . زمونږ په زمانه کې هغه هیوادونه چې د لینن د خولې د استعمار چیانو له لاسه له پیړیو راهیسې د تاریخ

نه بهر پاتې شوي دي ، اوس نه يواځې د هغه شکل نه راوتلي دي چې د شيانو په توګه به د نورو د پاليسيو د جوړولو له پاره ګکاريدل بلکې پخپله اوس د پاليسۍ جوړولو فعال برخه اخيستونکي دي . په دغو هيوادونو کې د سوسياليستي نظرياتو او عملي کولو مفکوره په چالاکۍ سره وده کوي .

خو څرنګه چې روسانو باندې يې له شکه د ملي انقلابي غورځنګونو د عمل برياليتوب ډيره اغيزه کړې وه ، او هر چيرې يې بنه هر کلي شوی ؤ ، ځکې يې خطرونه هم ليدل . دوی ته هر شی د يوه سري پورې تړلی ښکاريده ، او دا د هغوی د اکثرو مقدسو عقايدو خلاف کارؤ . نو دوی علاقه درلوده نصيحت ورته وکړي . دوی د هغه څه په ضرورت باندې ټينګار کاوه چې يې ورته 'د ټولو ملي ځواکونو اتحاد وايه (البته دې کار کمونستان بيرته د اهميت وړ ځای ته راوستل) ، تل بايد دوی تيارسۍ وي ، دوی ويل : عوام بايد تنظيم شي ، محرکه قوه شي ، او وسله وال شي . دې ته د مصر ځواب داسې ؤ، هغوی ته به يې وريا دول چې تروتسکي زيات باور په مليشه کړی ؤ او تزاري جنرالان يې بيرته راوستي وو او د سور پوځ اداره يې ورته سپارلې وه . بيانو شورويانو د مصر پاملرنه دې تکي ته را اړوله چې د نويو امپرياليستانو سره خوسره چې کيدي شي لږ اړيکي وساتي ، د دوی په فکر هغوی د مصر په کورنيو چارو کې لاس وهنه کول غواړي ، هغوی بيرته پخوانۍ بيروکراسي را ژوندۍ کوي ، د دې نه د دوی مطلب په لويديځ کې روزل شوي ملکي مامورين وو چې په استعماري چاپيريال کې رالوي شوي وو ، په داسې کسانو باندې دوی ډير بدګومانه وو . دوی په خپلو مشورو کې ډېر سخيان وو .

# په عراق کې توپان

د ۱۹۵۷ کال په لومړيو کې عربي نړۍ د دوو بيخي بيلابيلو سياسي نظرياتو په کمپونو ويشل شوې وه. يوې خواته مرتجع حکمرانان وو چې د امريکې د متحده ايالاتو سره يې ځانونه نژدې کړي او اړيکې يې ورسره ټينګې کړې وې. په دوی کې يولبنان و، دا په عربي هيوادونو کې يواځنی حکومت وچې د سويز د شخړې په نتيجه کې يې د برتانيې او فرانسې سره ډيپلوماتيکي اړيکي ونه شلولې، د اردن او عراق هاشمي سلطنتونو اوس د سعودي عربستان سره روغه جوړه کړې وه. د سعودي عربستان پادشاه سعود واشنګټن ته لاړ، هلته يې د اسلام د پاپ کيدلو پيشنهاد ډير خوښ شو، اولړو ډير د ايزنهاورد دوکتورين د منلو سره بيرته راوګرځيد. په بله خوا کې د ناسيوناليزم راپورته کيدونکي ځوا کونه وو چې په دې وروستيو وختوکې يې د ناصر په شان يو ارزښتناک قهرمان موندلی و.

سوريه د دغو دووکمپونو ترمنځ د ميدان په څيروه. يوځل بيا نړۍ د سوريې په سر د مصر او عراق د تاريخي شخړې ننداره کوله. دا شخړه د اسلام د لومړۍ پيړۍ نه لاهم پخوانۍ ده. سورياييان رښتيا په غوصه وو. شمال ته ترکيه څه ناڅه دښمنه، ختيځ ته عراق، د ترکيې په څير د بغداد د تړون غړی و، او جنوب ته اسرائيل او اردن وو. د سوريې د سمندري سرحد نه بهر نژدې د امريکې شپږم لمبر سمندري ځواک ګرځيده. د سوريې کورنی حالت په ډيره بده بڼه کمزوری و. که څه هم د مصر په مرسته شکري کواتلي د جمهوري رياست چوکۍ ته رسول شوی و، خو ملي واک او قدرت د منصبدارانو د يوې کوچنۍ ډلې په لاس کې و، تقريباً دوی ټولو ناصر ته ډير احترام درلود خو په خپلو منځو کې سره تل په نانددريو وو. اوس پر دوی بانديې له هرې خوانه فشار راوړل کيده. روس سوريې ته وسلې برابرې کړې وې، او په نتيجه کې يې څه رسوخ ترلاسه کړی و. امريکايانو دعویٰ کوله چې دا وسلې د سوريې د دفاع له اړتيا نه زياتې دي، نوځکه کيدی شي دوی نيت ولري د عراق او اردن پرضدې

په کارواچوي . د امریکا بدګومانۍ ته هغه وخت لږ څه رنګ ورکړل شو چې د سوریې د دفاع وزیر خالد الاعظم د اګست په ٦ مه په مسکوکې یوستر تړون لاس لیک کړ چې پکې د وسلو بـرسیره اقتصادي او تخنیکي مرستې هم وې . یوه اونۍ وروسته د امریکې د دمشق په سفارت کې دري کسه غیر مطلوب اعلان شول . د اګست په ۱۷ مه یو پیژندل شوی کمونست جنرال عفیف البزري د لوی درستیز په توګه مقرر شو او د لوړ رتبه پوځي منصبدارانو تصفیه پیل شوه ، دوی اکثره د عراق او اردن سره د نژدې اړیکو د ساتلو پلویان وو . دا خبره پټه پاتې نه شوه ، هر څوک چې هغه وخت د پوځي استخباراتو د مدیر ډګرمن عبدالحمید سراج چې د هیواد د مهمو او د قدرت د خاوندانو د ډلې نه ؤ ، دفتر تـه تللی وي ، خامخا به یې د هغه پرمیز د ناصر یوه کوچنۍ مجسمه لیدلې وي .

د امریکې ویره زیاته شوه ، او څرګندونې یې د تاو تریخوالي د زیاتوالي سره مرسته وکړه . په واشنګټن کې داسې اوازې وې چې د منځني ختیځ په چاروکې د بهرنیو چارو د وزارت یو متخصص لویْ هنډرسن د واقعیتونو د معلومولو په یو ماموریت د اګست په ۲٤ مه هلته تلونکی ؤ . د هغه پروګرام داسې ؤ چې لومړی انقرې ته لاړشي ، هلته د عراق او اردن پادشاهان او صدر۔ اعظم عدنان مندریس و ګوري ، او بیا بیروت ته لاړشي . په واشنګټن کې د مصر د سفیر له خوا یو پیغام را لیږل شوی ؤ پکې ویل شوي وو چې لوی هنډرسن که د ربښتیاوو د معلومولو له پاره هلته در روان وي . کیدي شي هغه دمشق ته هم لاړشي . خو د هغه په سفر کې هلته د تللو پلان نه ؤ او کله چې بیرته راوګرځید (دسپتمبر په ٥ مه) اعلان وشو چې اردن ، عراق او لبنان ته دې فوراً په الوتکو کې وسلې ولیږل شي .

خو په حقیقت کې د «کمونستانو له خوا د سوریې نیول» په لویدیځو مطبوعاتو کې تر اندازې زیات یاد شول ، شوروي مشران اریان وو په دې هکله څه ډول دریځ ونیسي . زړه نازړه وو چې تولې‌مالي مرستې ناسیونالیستي قوتونو ته‌ورکړي ، په تیره بیا چې دوی داسې معلومیدل د سیمه ییزو کمونستانو سره په یوه کشتۍ کې ناست دي . خو دا نه شوه کیدي چې دوی د لویدیځو ځواکونو سره مرسته وکړي ، د سپتمبر په ۳ مه مسکو بیا پیشنهاد وکړ ، دوه ځلې یې وړاندې هم په همدي کال کې کړی ؤ ، د څلورو قوتونو یوه پریکړه چې په

منځني ختیځ کې د پوځونو د په کار اچولو غندنه وکړي . دا پیشنهاد یوځل بیا د لویدیځ له خوا ونه منل شو .

ناصر خپل ځان د ستونځو سره مخامخ ولید . د ترکیې او عراق په سرحدونو کې د پوځونو ځای په ځای کیدو وښودله چې په سوریه باندې د تیري ویره رښتیا وه ، خپله یې دې ته ورته تجربه درلوده ، ترکومه ځایه چې د کمونستانو له خوا د سوریې نیول ، او دا چې سوریه د کمونستانو د تهدید لاندې ده ، دا ټول یواځې ساړه تبلیغات دي اوبس . خو لا تراوسه دی نه پوهیده د هغې غوصې په هکله څه وکړي چې سوریه یې راپاروله وه ، او هغه په دې باور درلود چې که د مصر خلکو او د عربي نړۍ په نورو ځایونو کې خلکو چې اوس یې سوریه د مصر اصلي ملګرې بلله ، په دې اندیښنه شي چې سوریه کمونست کیدلو خوا ته روانه ده ، نو په ده به ډیره ملامتي واچوي . نوده پریکړه وکړه ملي منصبدارانو او د بعث سیاستمدارانو ته چې ده ورسره تماس درلود د مصر دوه غونډه پوځ د سوریې د لتاکیا بندرته ورولیږي . دا کار ده د روسانو له مشورې پرته وکړ ، چې هغوی پري بیخي خوشاله نه وو .

د جولای په ۳ مه مسکو د ګوندي ضد ډلې د پاککارۍ اعلان وکړ . شیپیلوف چې د ۱۹۵۵ کال د وسلو معامله سمه کړې وه او مصریانو خپل دوست باله ، د مالوتوف ، مالینکوف او کاګانوویچ سره یوځای له میدان نه وایستل شو . د اکتوبر په پای کې مارشال ژوکوف د هغه سړي پر ځای رامنځ ته شو چې په مصر باندې به د بهرني تیري په صورت کې د مصر پر ځای منځګړیتوب کوي . دغو بدلونونو او په سوریه کې پرله پسې ګډوډیو ناصر مجبور کړ د شوروي مشرانو سره مخامخ مشوره وکړي . د ده له پاره ممکنه نه وه خپله لاړشي ، نو ده د مصر د وسله والو پوځونو لوی درستیز فیلډ مارشال عبدالحکیم عامر د اکتوبر د انقلاب په څلویښتمه کلیزه کې چې د نومبر په میاشت کې نمانځل کیدله د برخې اخیستلو له پاره د خپل ځانګړي استازي په توګه وټاکه . په هیئت کې ډیر نور لوړ رتبه مامورین هم وو ، او په وروستۍ شیبه کې ناصر پریکړه وکړه زه هم باید ورسره لاړشم، ترڅو د ده د خولې 'ژورنالیستی' حساب ورته راوړم . هغه به ویل چې عامر نه شي کولای سمه کیسه وکړي : که د ده نه پوښتنه وکړي چې د یوسف علیه السلام کیسه څنګه وه دی به درته ووایي «هغه یو هلک ؤ چې ورک شو او بیا پیدا شو» . ناصر د شوروي اتحاد په هکله ډیر بدل بدل رابورونه اوریدل ـ د دوی اصلي نیت د عربي نړۍ په وړاندې څه

دی ـ ده غوښتل د یو دوست شاهد په سترګو دا حال معلوم کړي . هغه پوره جزئیات غوښتل ، نه د یوسف علیه السلام غوندې د عامر د خولې بې مزې کیسه . روسان د هیئت سره زما په یو ځای کیدلو پوره اریان وو .



شوروي اتحاد ته دا زما لومړنی تګ ؤ ، او زما له پاره ډیره خوندوره تجربه وه . الوتکه چې د وینوکوفو په هوايي میدان کې راښکته شوه یوځوان سړی مې نظرته راغئ چې زما په نامه غږکوي ، زه ورغلم هغه راته په انګریزي وویل ، یوځای به څلورم لمبرموټر ته ځو . د هوايي میدان نه د مسکو د ښارتر منځه پوری خورا اوږده لاروه ، سړک د بې شماره ساختماني پروژو ترخواتیر شوی ؤ او ټوله ځمکه په واورو پټه وه . د موټر د کړکۍ نه مې بهر وکتل او په اریانتیا سره مې په عربي وویل ، غوښتل مې معلومه کړم زما ملګری په عربي پوهیږي که نه : نو دا مسکو دی ـ آه ، ډیر عجیبه ، ډیر ښه . . . ځواب په عربي راغی : 'نوستا مسکو خوښ شو ؟' ورته مې وویل هو ، او پوښتنه مې تری وکړه دی څوک دی او عربي یې څنګه زده کړې ده . ده راته وویل چې نوم یې ستیپانوفسکی دی ، او د بهرنیو چارو په وزارت کې کارکوي ، او د یوې لنډې مودې عربي کورس یې نیولی ؤ . بیا راته ژر معلومه شوه چې په ۱۹۵۵ کال کې د پوځ او د بهرنیو چارو د وزارت د ۵۰۰ په شاوخوا کې مامورین د مسکود علومو په اکادمی کې د عربي ژبې په زده کولوبوخت وو . د هغه عربي مې چې واوریده ، ډیره عجیبه وه ، هغه ته د ګرامر ښه درس ورکړل شوی ؤ خو د لهجې نه یې داسې ښکاریده چې ده ته د شفاهي ژبې درس د عراق کردي مهاجرینو ورکړی ؤ .

د مسکو د سیند په غاړه د یوکرانیا هوټل ته لاړو . د راپور تیارولو وظیفې چې ناصر راته سپارلې وه په اندیښنه کې اچولی وم ، داسې پریکړه مې وکړه چې په یو ډول باید ځان ستړی وښیم . نو خپل لارښوونکي ملګري ته مې په پوره اعتماد وویل : 'ښاغلی ستیپانوفسکی ، زه یوه ستونځه لرم . شوروي اتحاد تـه دا زما لـومړی راتګ دی ، زه د پوځي هیئت غړی نه یم . فکر کوم زه په خپل ټول ژوندکی د روس او کمونیزم پرضد د امریکایانو د تبلیغاتو سره مخامخ وم ، زما ځیرنه ، زما زده کړه او هر څه داسې وو . غواړم شوروي اتحاد ښه وپیژنم . لـه تا غواړم چې ما پسې هـر چیری رانه شي . که ته ما سره هر

یوه مرکه کې یې ماته ووې : «روسان تاسې ته یواځې او یواځې وسلې درکولای شي او مونږ امریکایان درته سوله درکولای شو» .

خو دغو د وسلو برابرولو کار هم په عربو کې ستونځې را پیدا کړې دي او د شوروي اتحاد نه خوشاله نه دي . دا یو داسې کار هم نه دی چې شوروي پرې ډیر خوښ وي . دوې پوهیږي چې چین ددې کار له امله پردوي باندې ډیر بد وایي. «د نړۍ لومړني سوسیالیستي هیواد باندې څه وشول»؟ دا پوښتنه له مانه په ۱۹۷۳ کال کې چوئن لاي وکړه «دا بل څه شي نه شو ، یواځې د وسلو تیاروونکي ، تاسې د دغو وسلو د پیریدلو له امله په هغه سود چې دوې ته یې ورکوئ ، په خپل هیواد کې نور څه نه شئ تولیدولای» .

دا خبره وه چې د مصر د بهرنیو چارو وزیر اسماعیل فهمي د ۱۹۷۵ع کال په نومبر کې د اندري ګرومیکو سره وکتل او ده ته یو غیر مترقبه د نه ځواب ورکړ شو . داسې ګومان کیده ګرومیکو ته یې یو ښه پیغام ور وړې وُ ، ورته یې وویل ، ډیر ژربه کویټیان د وسلو د پیریدلو له پاره مسکو ته راشي ، او دوه سوه میلونه امریکائی ډالر به نغدله ځانه سره راوړي ، ګرومیکو په اریانتیا سره وویل «ښاغلی وزیر» ته رښتیا په دې باور لرې ؟ نو بیا به چینایان زمونږ په هکله څه وائی ؟

په کراره کراره روسانو خپله ولیدل چې په منځني ختیځ کې د دوې سیاست زیات نه زیات د وسلو د خرڅولو او نه خرڅولو له لارې عملي کیږي دلته یې د وسلو د برابرولو د سوداګر بڼه ونیوله او په ډیر خفګان سره یې خپل دغه دریځ رداوه . یوځل بیا اسماعیل فهمي په ۱۹۷۷ کال کې په مسکو کې د برژنف سره له کتلو وروسته دا خبر له ځانه سره کورته راوړ . هغه د ځینو پرزو او وسلو یادونه وکړه چې مصر ته یې د برابرولو وعده ورکړل شوې وه خو ورته تراوسه نه وې سپارل شوې ، شک نشته ، چې د بیروکراسي د ځینو ستونځو له امله به وي ، ښاغلی رئیس خیر دې تاسې به بریالی شئ . برژنف هغه ته وکتل او وې ویل : دا د بیروکراسي له امله نه وُ ، دا د یو سیاسي تصمیم نتیجه وه . اسماعیل فهمي پوښتنه وکړه «دا تصمیم چا ونیو» ، برژنف وویل 'ما' ددې تصمیم نیول البته ستاسې د حکومت له خوا تشویق شو چې په هیڅ ډول مصر جنګ کولو ته تیار نه دي . نو په دې صورت کې تاسې وسلې د څه له پاره رانیسئ ؟ په کریملین کې د اوږد میز شاته د ناستو سړو را تلونکې خرڅ ښکاري . د وسلو د برابرولو په کار کې پر دوې بد وویل شول ، د

وخت یوځای اوسي ، نو حتماً به داسی احساس وکړم چی ته ما پسی جاسوس یې. نه غواړم په دې هوټل کی د هیئت سره یوځای واوسېږم ، ځکه دا کار به زما آزادي لږه کړي ـ کیدي شي حتی زما د هوټل کوټه کی هم د اواز د ثبت الې ایښودل شوي وي . اوهم نه غواړم ستاسې د حکومت رسمي میلمه واوسم ، ځکه دا په یو شکل سره رشوت بلل کیږي . زه د خپل هوټل مصرف پخپله ورکوم او رسمي موټر نه غواړم .

د ستیپانوفسکی خوارکي رنګ تک ژیړ شو . ترننه پوری راته د هغه وارخطاء مخ اوژیړه څیره سترګو ته کیږي . هغه په ژړغوني اواز وویل : 'لطفاً ماته داسې خبرې مه کوه . ډګرمن چوولسکي د هئیت د سرپرستی مسؤل سړی دی . او ته که څه هم پوځي سړی نه یې خود هیئت پوری تړلی یې . ته مجبور ی هغه ته ووایې' . مونږ لا تراوسه د هوټل د انتظار په کوټه کی ولاړ وو ، د مدیر دفتر ته ورننژدي شو ، د ډګرمن ځای هم دلته دی . هغه رانه پوښتنه وکړه : 'څه خبره ده ؟

ما ورته وویل : ډګرمن چوولسکي ، زه یوه انساني ستونځه لرم . زه د امریکا یې تبلیغاتو قرباني شوی یم . په دې اعتراف کوم . زه غواړم هر څه په خپلو سترګو وګورم . بیا مې ورته هغه څه وویل چی ستیپانوفسکی خوارکي ته مې ویلي وو .

چوولسکی رابرګ شو . 'دا بالکل نه شي کیدي ! بیا مو د نیم ساعت په اندازه خبرې وکړي ، پـه پای کې چوولسکی وویل ، د لوړ مقام سره به ځان پوه کړي . نور هیئت هم اریان ؤ چی څه روان دي . حال می ورته ووي ، ځینو توکه وګڼله ، خو د ځینو اندیښنه شوه چی دوی ته به څه بدګوماني ورپیداشي . په پای کی یو ډول سازش ته ورسیدو . چوولسکی قسم وخوړ چی دا وخت د ټول مسکو په یو هوټل کی هم خالي کوټه نشته ، له دې امله زه مجبور شوم همدلته واوسیږم او باید پریږدم چی حکومت زما مصرف ورکړي ، که څه هم ستیپانوفسکی او حکومتي موټر به ماته ټوله ورځ تیار ولاړوي . خو زه مجبورنه وم له دوی نه خانخا کارواخلم

په دی شپه مونږ د دفاع د وزارت په سالون کی د ماښام له خوا میلمانه وو . مـارشال مالینوفسکی د کوربـه ډلې مشرؤ او د شوروي اتحاد نور ټول مارشالان ـ ګریچکو ،.سوکولوفسکی ، روکوسوفسکی ، تیماشینکو او رودینکو حاضر وو . ډیره په زړه پورې صحنه وه ، زه د هوایي پوځونو د مارشال رودینکو

تر خواکیناستم . په خوړلو پیل وشو . یوه وړکا مې راواخیستله خو ډیر ژررا باندې څه تکلیف راغئ لکه چي مرکیږم . روډینکو کر چاپیر کتل ، په خوړو لګیا ؤ او ویل یې ،دادنا ! ماتر هغې صبروکړ چي د ده راته شا شوه ، یوګیلاس می د اوبونه ډک کړ او مارشال باندې مې غبروکړ - دادنا ! مونږ دوه دري وارې سره خوراکونه بدل کړل، دده مخ د خوشالۍ‌نه ځلیده. خو بیایې زما د اوبو ګیلاس ولید . او به یې واړولې ، یو بل پاک ګیلاس یې راوړ ، دوړکا نه یې ډک کړ ، او په انګریزي یې په سخته لهجه وویل وڅکه! ما ورته وویل : وبښه زه یې نشم څکلئ . روډینکو میز په سوک وواهه او په ډیره غوصه یې وویل . زه ویریدم د نورو خلکو به را پام شي او ما به ملامته کړي ، خو ټول په مزوکې ډوب وو ماته د چا پام نه شو .

په دا بله ورځ سهاروختي د هوټل د انتظار کوټې ته ورښکته شوم ، ستیپانوفسکي مې ولید ، راته منتظر ناست ؤ . پوښتنه مې تري وکړه که مې چیرته کومې خواته بوځي . هغه وویل په سترګو ، خو چیرته تلل غواړې . ورته ومې ویل غواړم د سانسور دفتر ته لاړشم . ستیپانوفسکی بیا وارخطا شو . وې ویل : ’د سانسور دفتر خونشته . بل چل مې وکړ . ډیره ښه . خویو بل کار به ونه کړي ؟ چې یوه پیاله چای راته راکړې ؟ ستیپانوفسکی وویل : هو ، ولې نه . خوستا په خپل کور کې ؟ ستیپانوفسکی وویل ، دا خو بالکل کیدي نه شي . ما ورته وویل چي په مسکوکې د خلکو د کورونو حال دومره خراب دی لکه د امریکې د تبلیغاتونه چې ښکاري . هغه ټینګار وکړ داسې نه ده . را ته وې ویل : مونږ دوه کوټه ییز کور لرو . زه او ښځه می د دوه ما شومانو سره په یوه کوټه کې اوسیږو ، او زما خوانبې او د هغې زوي په دا بله کوټه کې ژوند کوي . ما ورته وویل ، داسې ژوند خوراته دومره خوندور معلوم نه شو . ستیپانوفسکی را نه بیا پوښتنه وکړه : تاسې په مصر کې څنګه ژوند کوئ ؟ ما ورته خپل حال ووې . خو ستیپانوفسکی په اریانتیا سره بیا پوښتنه وکړه ، خو آیا تاسې پانګه وال یاستئ ؟ ما ورته وویل ، زه سرمایه دارنه یم بلکې یو کارګریم . ستیپانوفسکی ته خبرو ډیر خوند ورکړ اوغوښتل یې کیسې اوږدې کړي . بیا تري ما پوښتنه وکړه چې ستا غوښتنې څه دي : ’آیا د خپل کور او موټر د لرلو خوبونه وینې‘ ؟ هغه زما مخ ته ټیغ راوکتل او وې ویل : زما رتبه ډیره ټیټه ده ، زه د موټر خاوند کیدي نه شم . خو زه پلان لرم یو موټر سیکل راونیسم ، او یوه ورځ به زه د یوموټر سیکل خاوند شم . ’ته

د موټر د خاوند کیدلو خوب لانه ویني ؟' 'نه ، زما د رتبې سره موټر سیکل بس دی' . ستېپانوفسکی را ته په ځواب کې وویل . بیا مې ترې پوښتنه وکړه 'دا څه ډول نظام دی چې د خپلو خلکو په آرزوګانو او خوبونوهم جیره لګوي؟' تقریباً په خبرو کی پرې ویره ناسته وه مخ یې را واړاوه : 'ولې ما سره داسې خبرې کوې؟' طبیعت یې ډیر خراب او غږیې ژړغونی شو .

نن شپه په سپین سالون کی د روس د انقلاب د څلویښتمې کلیزې د نمانځلو په ویاړ یوه لویه میلمستیا شوې وه . ډیر میلمانه راغوښتل شوي وو ، موتسي - تونګ هم په دې کې برخه درلوده ، مسکو ته دا د موتسي تونګ وروستی ورتګ ؤ . د مصر هیئت هم دلته ؤ ، چې تقریباً د خلکو د پاملرنې مرکزیت یې جوړ کړی ؤ . د روس په دغسې میلمستیاګانو کی ډیر اعلیٰ خواړه او شراب راوړل کیږي . د بهرنیو چارو په وزارت کی د منځني ختیځ د څانګی آمر ګریګوری زیتسف د مصر د هیئت دریم سړی جنرال حافظ اسماعیل کونج ته کړی ؤ ، او د مصر د سیاستونو په هکله یې پری په توندۍ سره اعتراضونه وکړل : 'ستاسی د ناپیلتوب دا ټولې خبرې بالکل چټیات دي . تاسې یا له موږ سره یاستئ او یا د امریکایانو سره .' که تاسې د امپریالستانو پر خوا کیدي نه شئ ، بیا تاسی خامخا له موږ سره یاستئ.موږ سره ملګري شئ، او موږ تاسې ته هر څه چی وغواړئ در کولای شو . زما مطلب د لنډې یا اوږدې مودې پوز نه دئ . نه . مصر به زموږ د هیواد په څیر یو هیواد شي ، اوهر شی به تاسې ته وړیا درکول کیږي صنعتي کیدل ، پرمختیایي پروژې ، بندونه ، کرنه اوهر شی !'

حافظ اسماعیل ورته هیڅ ونه ویل خو د دغو خبرواترو راپور یې د هیئت مشرته ورکړ . عامر بیا دا خبره د خروسچف سره راپورته کړه او پوښتنه یې تري وکړه چی که د روس رښتیني پالیسي همداوي . خروسچف ورته وویل داسې نه ده او زیاته یې کړه چی په دې هکله به رسمي څیړنه وشي، که زیتسف رښتیا داسې خبرې کړې وي ، جزا به ورکړه شي . د ده جزا سخته نه وه ، ځکه دی د عراق د ۱۹۵۸ کال تر انقلاب وروسته په بغداد کې سفیر شو .

د هغه ځانګړي درناوي د نښې په توګه چی د مصر د هیئت وشو ، خروسچف له عامر نه غوښتنه وکړه ذی غواړي له ده سره د داسی یو شي په هکله خبرې وکړي چی روسان یې په عادي حالاتوکي نه کوي . خو په حقیقت کی خروسچف پخپله ټول ترتیبات ونیول ـ هیئت به سیاسي چارې د بولګانین ، ګرومیکو او خپله خروسچف سره څیړي ، سوداګري به د میکیان او پرویخین

سره چې د بهرنیو مرستو مسؤل دی ، پوځي چارې به د دفاع د وزیر مارشال مالینوفسکی او د هغه د معین سوکولوفسکی سره څیړي .

د مصر هیئت د خپل پنځه کلن پراختیایي پلان د تطبیق له پاره له شوروي نه مرسته غوښتله، د خبرو اترو په ترځ کې موافقه وشوه چې دشوروي حکومت به ددی پلان دیوې برخې په توګه مصر ته ۱۵۰ میلونه ډالر ورکړي . یوه کوچنۍ پیښه وشوه ، سړی له دینه معلومات کولای شي د شوروي نظام څنګه چلیږي . د پور په هکله تر موافقې وروسته عامر په تیلفون له ناصر سره خبرې وکړي ، په دا بله ورځ چې خروسچف ولید ، ورته یې وویل 'تاپرون د کسپودین ناصر سره خبرې وکړي . عامر وویل هو ، ناصر له مانه وغوښتل له تاسي نه د پور د را کولو له امله مننه وکړم . خروسچف ورته وویل . 'خو ته په دې هکله ډیر خوشاله نه ښکارې ؟' فکر کوم ناصر به هم دومره خوشاله نه وي' . عامر تینګار وکړ . 'ناصر ډیر زیات خوشاله شو .' خروسچف زیاته کړه . 'کیدي شي هغه زیاته توقع درلوده ؟' ښه ، خیر ، خو مونږ پریکړه وکړه دا پور ۲۰۰ میلونو ډالرو ته زیات کړو .' همداسې وشول. ناصر چې په تیلفون له عامر سره خبرې کولې ، یادونه یې وکړه چې پور لږ ؤ . د دې خبرې یواځنۍ نتیجه دا کیدي شي چې د تیلفون خبرې په ډیر غور سره ثبت شوي وي .

خروسچف په دې خبرو اترو کې ډیر وخت په امریکې باندې په بد ویلو ونیو . امریکایان یواځې داسې ظالم او دکتاتوري حکومتو ته غواړي چې په خپلو خلکو هر ډول تیری او بې رحمي کوي او خپل ټول طبیعي منابع خارجیانو ته په لاس ورکوي . د بلې خوانه ، شوروي اتحاد تل غواړي داسې حکومتو نه وویني چې د خپلو خلکو د ارادو او ارزوګانو نماینده وي او خپل ټول منابع د خپلو خلکو په ګټه په کار واچوي . هغه په کلکه د سویز په جنګ کې د امریکې رول وغانده ، دا داسې یوشی ؤ چې روسان یې تل اریان کړي دي . هغه ادعا وکړه چې په دې جنګ کې به برتانیې او فرانسې هیڅکله هم داسې عمل نه وای کړای که امریکې ورته د کولو اشاره نه وای ورکړای ، خو امریکې د برتانیې او فرانسې د عمل نتیجې هغه وخت نه شوای لیدای . هغه وویل : 'مونږ مداخله وکړه او تاسې مقاومت وکړ .' 'دې کار د دوی نقشه ور خرابه کړه ، او بیا ډیرناوخته شوی ؤ چې امریکا برتانیه له دې جنجاله وژغوري . خو امریکې د یرغلګرو هاغسې مرسته وکړه لکه رسۍ چې یې په دار باندې د ځوړند سړي سره کوي' .

خروسچف د امریکې په هغو ټولو خبرو وخندل چې په منځني ختیځ کې یې د 'خالیګا' په هکله کوي . ویې ویل : 'خالیګا چیرته ده ؟' دا هر څه د دوی په لاس کې دي . منځنی ختیځ د نړۍ د مدنیتونو ځانګوده ، خو په دغه سیمه کې د روانو مبارزو او مقابلو نه د تیلوبوي راځي . امریکا سوریه ډاروي . د اردن او عراق نه غواړي چې په سوریه تیری وکړی ـ موږ ددې خبرې د ثبوت اسناد لرو . یواځې شي چې دوی تري ویریدل دا ؤ کیدی شي د اردن او عراق پـه اردو کې ملي منصبداران مقابله وکړي . نو دوی ترکیې ته مخه کړه . خو موږ ترکیې تـه اخطار ولیږه . موږ د سویز نه عبرت اخیستی ؤ ، نو صبر موونه وکړ چې ترکان برید پیل کړي سمد ستي مو ورته اخطار ورکړ .'

لږ وړاندې له دې چې زموږ هیئت مسکو ته ورسیږي ، انیورین بیوان وروسته له دې چې خروسچف یې په مسکو کې او ایزنهاوریې په واشنګټن کې لیدلی ؤ ، د منځني ختیځ له پاره د څلورو قدرتونو د کانفرنس نظریه را وړاندې کړه . دې کارته د ناصر بدګوماني را پیدا شوه ، دده ویره داوه چې لوی قدرتونه به د مصر تر شا په منځني ختیځ کې د خپلو ګټو له پاره ترتیبات ونیسي ، نو عامر ته یې لاربښوونه وکړه د خروسچف نه د بیوان د پیشنهاد په هکله توضیحات وغواړي . خروسچف اعتراف وکړ ، ده بیوان ته ویلي دي چې شوروي اتحاد په دغسې کانفرنس کې برخې اخیستلوته تیار دی . عامر وویل 'په منځني ختیځ کې خلک دغې مفکورې ته د یوې بلې یلتیا په سترګه ګوري .' خروسچف ورته وویل سودا مه کوه . 'دا ښه ده چې موږ له هغوی سره څنګ په څنګ لاړ شو ، کیدي شي دا کار په سیمه کې د تاوتریخوالي د کمولو سره مرسته وکړي . ته پوهیږې هغوی یواځې غواړي موږ وغولوي . موږ بیخي خبر یو هغوی نه غواړي موږ دې هم په منځني ختیځ یا د بل ځای په دغسې کارونو کې څه لاس ولرو ـ ترڅو موږ بالکل خپل پوستکی بدل نه کړو ، او دا به هغه ورځ وي چې موږ نوروونه لیدي شي ، لکه یو سړی چې خپل غوږونه نهویني .



ماله خروسچف سره د یوې مرکې غوښتنه کړې وه ، خو دا مرکه په مسکو کې زموږ د وروستۍ ورځې نه وړاندې ونه شوه . ما ته وویل شول چې پوښتنې باید جوړې کړم ، خو ما ددې پرځای پنځه ټکي د خبرو له پاره وټاکل او غوښتل مې زموږ خبرې باید په ډیرې ازادۍ سره وشي . زه د میکزیم ګورکي د کوڅې شماته د مرکزي کمیټې دفتر ته ورغلم . هلته د هغه ډګرمن سره مخامخ شوم

چې د لفټ ګانې کونجي يې په لاس کې وي او ميلمه برابر د لومړي منشي دفتر ته بيائي ، هغه دفتر چې يو وخت پکې لينن کيناست . خروسچف خپل ميزته نه بلکې د لينن ميزته ناست ؤ ـ هغه تل په ډير وياړ د دې خبرې يادونه کوله ـ په ميز د شوروي بيرغ ولاړ او د ١٥٤ Tu جيټ الوتکې نمونه ايښې وه ، چې دا وخت د جوړيدو ترکار لاندې وه . په يو ميز باندې چاکليټ اونور دخوړلوشيان پراته وو . په کوټه کې د يوې سکرترې او يو روسي ـ انګريزي ترجمان نه پرته بل څوک نه وو .

مونږ ټول کيناستو . خروسچف په روسي ټايپ شو يو کاغذونو کې ګوتې وهلې ، سر يې راپورته کړ ، ويې ويل 'پوښتنې دې سمې نه دي' ماورته وويل ، هو ، 'دايوازې د بحث له پاره موضوعګانې دي' . بيامې د ده په لاس کې کاغذوته ګوته ونيوله او پو ښتنه مې تري وکړه ، دا ټول زما د پوښتنو په هکله دي ؟ خروسچف وويل ، نه ، 'دا ستا په باره کې معلومات دي' . ما ويل ، خدايه ، 'دا به زما په هکله څه وي ؟' خروسچف وويل ، دا وايې چې ته د ناصر ملګرى يې ، او د ناصر هر ملګرى زما دوست دى' . ما ويل ، ډيره ښه ، خو دا معلومات ټول په دري کرښو کې ځائيږي ، دا نور څه وايې' ؟ خروسچف وويل ، 'دا وايې چې کمونستان ستا خوښ نه دي' . ما مخالفت وکړ اوومې ويل ، د ارښتيانه دي ، چيرمين صاحب ! زه کيدي شي د کمونستانو سره د نظر مخالفت ولرم خو زما هغوى بدنه ايسي . زما ډير ملګري کمونستان دي' . خروسچف بيا وويل : نوته ولې کمونستان نه خوښوې ؟ بيا مې بله لاره ونيوه . اجازه مې تري وغوښتله ، کولاى شم آزادانه خبرې وکړم ؟ د موافقې نه وروسته مې ورته د ستيپانوفسکي کيسه وکړه . ورته ومې ويل : 'په دې مې سرنه خلاصيږي څنګه يو هيواد د خپلو خلکو په ارزوګانو بنديز لګولى شي' . خروسچف وويل : 'ته بالکل زمونږ په کارونه پوهيږې' . ته دلته راغلې ، هر شى دې په يو نظر وليد. خوتانه هير شول چې مونږ په جنګ کې شل مليونه خلک له لاسه ورکړې. تا نه هير شول چې زمونږ کورونه ټول وران وو، د از مونږ خلک وو ، زمونږ اردو وه چې جنګ يې وکړ او ويې ګاټه ، دا د امريکې مرسته نه وه . مونږ په کارونو کې د ځينو له پاره د لومړيتوب حق ورکړى چې بايد وشي . که ته زمونږ د هيواد په هکله ښه قضاوت وکړې ، تا ته به در معلومه شي مونږ له جنګ نه وروسته څومره کار کړى دى' .

د مرکې نه وړاندې ما د سکرتړو څخلو اجازه غوښتې وه ، اوس مې سيګار

ځکاوه . خروسچف ناځا په مخ را واړاوه او پوښتنه یې را نه وکړه : 'ته سرمایه‌داری' ؟ ته ولې سیګارڅکې ؟ ما ورته وویل 'زما خوښ دي'. خو خروسچف زما سیګار واخیست او په سګرټ دانۍ کې یې مات کړ . ما مخالفت وکړ 'سیګار د سرمایه دارانو شي دی ؟'، خروسچف وویل ، 'ته سرمایه دار نه یې ، ځکه ته د ناصر ملګری یې ، سمه ده . اوس وایه' .

بل ځل چې ما د خروسچف سره په ۱۹۵۸ کال کې مرکه کوله ، سیګار می بهر پریښودل . خروسچف را نه پوښتنه وکړه 'سیګار دې څه شول ، غواړم بیا یې مات کړم' . خو چې زه په ۱۹۶۳ کال کې مسکو ته لاړم ، خروسچف راته یوه ورځ د سیګارویو ډیر ښه ډبلی را کړ . ما ورته وویل : ښاغلی چیرمین ، 'زه اریان شوم ، ستا په یاد نه دي تا زما په سیګار هغه بل ځلې څه وکړه ؟ ته ولې بدل شوی یې' ؟ خروسچف وویل : 'زه نه یم بدل شوی ، سیګار بدل شوي دي . په کیوبا کی د انقلاب راهیسې سیګار هم مارکسستان ـ لیننستان شویدي' .

زما د لومړۍ مرکې مطالب چې په الاهرام کی خپاره شول ، په ما باندې په پراوډا کی په ډیره غوصه حملې وشوې ـ خپله د مرکې په مطالبو دوی په غوصه نه وو بلکی هغه څه ځورولي وو چې ما په سریزه کې ویلي وو . هلته ما خروسچف د 'سورتزار' په نامه بللی ؤ . زه پوهیږم دا کار لږه بې نزاکتي وه . او ځکه خو یې د شورویانو د غوصې کړۍ زما پرسر را ښکته کړه .



د عامر په ماموریت کی یوه پیښه وشوه ، کیدي شوای ډیره بده اغیزه یې کړای وای ، خو له نیکه مرغه داسې ونه شوه . د ټولونه بد شی وډکا ؤ چی شوروي اتحاد ته د ډیرو عربي هیئتونو د خرابوالي سبب شوی دی . په ټول وخت کی یواځې د میلمستیا په دویمه ورځ د هیئت له نیاېې نه زیات شمیر غړي د وډکا په بې اندازې څکلو او د ماهیانو د هګیو په خوړلو سره له خپل کنترول نه ووتل . دا وخت زمونږ هیئت د سیل له پاره د شوروي اتحاد بیلابیلو ځایونو ته بیول کیده ، او کله چې د کیف په میلمستون کی زمونږ له پاره میلمستیا برابره شوې وه ، زمونږ میز بهر د سرک په غاړه جوړ شوی ؤ . د شوروي د تور سمندر کې د سمندري پوځ قوماندان هم دلته ؤ ، دا د مصر د سمندري پوځونو د لوی درستیز سلیمان عزت تر څنګه ناست ؤ . دواړو قوماندانانو په ځان خوراک زیات کړی ؤ ، خو عزت ځان له خپل کور به انډیوال نه زیات د روند کړی ؤ . په مسکو کې دی د مارشال تیماشینکو سره د څکلو په مسابقه کې

بريالى شوى وُ ـ هغه ۲۷ بوتلو نه تش كړل ، يو وينښته پري لازيږنه شو ، هماغسي د ډبرې په څير كلك وُ ، لكه د څكلو د مخه چي څنګه وُ .

د خبرو په ترڅ كى روسي سمندري جنرال عزت ته داسى وويل ، 'ستاسې په هيئت كى راته يو سړى د امريكا جاسوس ښكاري، څكه امريكايانو ته معلومات دى چي د شوروي او بتـل وختي د سكنـدرې بندرتـه رسيدلى دى . مـونږ خبر وو چي روسان په دې پوه شول معلوماتو نه په پر له پسې توګه امريكايانو ته وركول كيږي ، مونږ ته په دې هكله اخطارونه را رسيدل چې پاملرنه وكـړو ، څوك دا كار كوي ، او د دې كار مسؤليت د چادى .

عزت فكر وكړ په داسې ويلو سره د ده سپكاوى وشو . ودريد او روسي جنرال يې څان پسې د ميلمستون د ګډا سالون ته راښكود . مونږ نه پوهيدو څه خبره ده ، يو ناڅاپه غالمغال شو او روسى جنرال مخ په څټ په څمكه را ګوزار شو . عزت په خپله سپينه دريشي كې پاك ورته په سر ولاړ وُ . مونږ تري ګر چاپير را تا وشو ، څه كيسه ده . عزت وويل ، دى وايى 'زمونږ يو منصبدار جاسوس دى ، زه د دې خبرې اجازه نه وركوم' .

ژر بيا يو بل روسى سمندري‌جنرال او يو تورن را غلل او د تور سمندرګې‌د پوځ قوماندان يې له دې څايه ويوست. ميلمستيا روانه وه خو چاپيريال‌ډير بې مزې وُ.



د عامر د ما موريت سره سره د سوريې لـه امله د مصر او شوروي ترمنځ اړيكى خطرناكې پاتې شوي او سوريه د دوى د اختلاف اصلي سر چينه وه . په عربې نړۍ‌كى د سوريې كمونست ګوند تر ټولو قوى وُ ، په پارلمان كى يې غړي درلودل ، په رسميت پيژندل شوى وُ ، او پوخ كمونست خالد بكداش يې مشر وُ چې د ډير درناوي خاوند وُ . نور ګوندونه ، شعاب ، كوتله د ستوري او بعث ټول د وسله والو پوځونو د منصبدارانو نه جوړ وو . دوى ټول په دې پوهيدل چې د پوځې كودتا له لارې قدرت ته رسيدل څومره آسان دي ـ په نيمه شپه كى يو څو ټانكو نه د دمشق لاسونه بدلولاى شي .

د قاهرى نه داسى ښكاريده چې‌كمونستان د حالاتو نه په ګټه پورته كولو كى سخت لګيا وو ، او داسې ګومان كيده روسان سوريې ته د دفاع د دويمى كرښې په توګه ګوري ، په هغه صورت كى چې په مصر خپل باور له لاسه وركړي . نو ناصر د سوريې جمهور رئيس كواتلي او د هغه د استخباراتو رئيس ډګرمن سراج ته اخطار وليږه او د هغې بې مسؤليته ګوزارې له امله يې چې د سوريې

کمونست ګوندنیولې وه هغوی تـه د خطرناکو نتیجو په هکله خبرداری ورکړ. هغه ولیکل که عربي عوام په دې پوه شي چې ملي غورځنګ د کمونستانو له خوا له پښو غورځول کیږي ، نو دی به د عـربو خواخـوږي له لاسه ورکړي . خو دمشق ته د ناصر د پیغام رسیدلوهم څه اغیزه ونه کړه .

په قاهره کی داسې یو احساس را پیدا شو چې د امریکایانو سره بیا نوې اړیکې ونیول شي . زه چې د مسکو نه بیرته راغلم ، ناصر راته وویل چې د امریکې سفیروګورم . د هغه له پاره ما ته داسې پیغام راکړل شو : 'په سوریه کی د کمونستانو د قدرت نیولو په هکله ستاسی اخطار د مبالغې ډک ؤ او دا ټچپله د اوسنیو بدګومانیو یو عامل دی . تاسی د سوریې پرضد د ترکیې او عراق له لاری په تهدیدونو سره حالات دلته نورهم خرابوئ . په هر حال دا زمونږ مسؤ لیت دی ، لطفاً خپل لاسونه در ټول کړی'!، (دا اخطار ډیر ضروري ؤ ځکه د سیا په شمول د امریکې ځینې موسسو په سیمه یزو د سیسو کی لاس درلود . همدارنګه هغوی سعود پادشاه تشویق کړی ؤ د ناوړه عمل له پاره د سوریې ځینو زړو سیاستمدارانو ته رشوت ورکړي .) دغه پیغام ډیره اغیزه وکړه ، د امریکایانو لاس وهنه پوره کمه شوه .

د عربو د اتحاد له پاره جذبه په تیره بیا په سوریه کی زیاته وه ، سړی ویلای شي دا د دغې مفکورې د زیږیدو ځای ؤ ، او ناصر چې د اتحاد ډیر فعال غوښتونکی ؤ پوهیده د عملي قدم اخیستلو له پاره اوس لارې په پرانیتو دي . د سویز د کانال د شخړې په وخت کی د سوریې پارلمان د مصر سره د اتحاد له پاره یو پریکړه لیک تصویب کړی ؤ . ناصر ته یې یو هیئت رالیږلی ؤ خو ده ورته ویلي ؤ چې په دې پیشنهاد باید ژور غور وشي . اوس ، یو کال وروسته ، د سوریې پارلمان پیشنهاد وکړ چې د یو ځای کیدو خبرې باید ډیرې ژر پیل شي. د سوریې په اردو کی د منصبدارانو له پاره شرایط د زغم نه وتلي وو . د دمشق سره د دواړو کمپونو له خوا اړیکې نیول شوې وې او په اردو کی په بیلابیلو سیاسي ډلو پوري تړلو منصبدارانو یو بل ته د بدګومانۍ په سترګوکتل . ځینو یې بیخي خوب نه کاوه ، له دې ویرې چې که دوی ویده شي ، رقیبه ډله به سیاسي قدرت ونیسي . نو د ډیرو له پاره د ستونځې اواری په دې کې ؤ چې ناصر را وړاندې کړي ، د منصبدارانو د استازو په یوه غونډه کی همداسې پریکړه وشوه . بې لـه دې چې جمهور رئیس او ډکـرمن سراج خبر کړي ، منصبداران په الوتکه کې قاهرې ته لاړل ، او هلته یې د ناصر سره ولیدل . د هغه خوښه

د یو فدراسیون په حق کې وه ، خو منصبدارانو ټینګار کاوه چې د پوره یووالي او یو نوي شکل حکومت له تشکیل نه پرته به دلته ټولې ګډوډیې په خپل حال پاتې شي .

ناصر د دوی په خبرو تشویق شو خو دري شرطونه یې وړاندې کړل ـ د سوریې اردو باید بیخي له سیاست نه لاس واخلي ، هغه منصبداران چې تراوسه په اردو کې په سیاسي کارونو مشغول دي باید له پوځ نه استعفا وکړي ، او ټول سیاسی ګوندونه باید ړنګ شي . د ناصر د شرطونو په قبلولو سره د سوریې منصبداران دمشق ته راوګرځېدل . د ۱۹۵۸ کال د فبروري په لومړۍ نېټه یووالی اعلان شو .



هر څوک په یووالي خوشاله نه ؤ . د بعث ګوند وویشل شو . د اضطراري حالاتو او د کودتا د کیدو له ویرې ، د بعث ډېر غړي په تیره بیا صلاح بیطار چې د ګوند د مؤسسینو له ډلې نه ؤ ، د فدراسیون د مفکورې پلوی ؤ . خو میشل عفلق د ګوند تیوریسن په دې فکرؤ چې یووالی یو ابتکاردی او کولای شي ډېرې ستونځې اوارې کړي . کمونست ګوند د ۱۹۵۷ کال په پای کې له دې امله د یووالي پلوي کوله چې د دوی په عقیده دا یو داسې شی ؤ چې ناصر به ورسره هیڅکله هم موافقه ونه کړي ، اوس د یووالي پرضد راپورته شو . خالد بکداش احساس وکړ د یووالي پرضد رایه ورکول به یو غیر سیاسي عمل وبلل شي ، نو د فبروري په ٤ مه له سوریې نه د ختیځې اروپا په نیت روان شو .

هغه روسان ډېر وارخطاء ولیدل . هغوي په سوریه کې د کمونست ګوند پرمختګ ته د ډېر اهمیت په سترګه کتل ، او اوس ګوند ړنګ شو ، مشر یې بل هیواد ته تللی او پرځای یې په دمشق کې ناصر ځای نیولی دی . یو حل بیا دوی د عربي ناسیونالیزم په حساب کې غلطي وکړه . دوی د عربي متحد جمهوریت جوړښت د مصر د پراختیایي سیاست په مفهوم تعبیر کړ . د دوی له پاره رښتینی یووالی تل د کارګرې طبقې یووالی دی اوبس . دوی د ملي دولتونو په هکله فکر نه کوي بلکې د خلکو او ملیتونو خبرې کوي . دوی ته د یو هیواد په توګه سیاسي یووالي ته د رسیدلو له پاره د عربو مبارزه بې معنا ښکاري .

خو دا نه شوه کیدي روسان په هغه څه سترګې پټې کړي چې دلته څه پیښې شوې وو ، رښتیا او د اهمیت وړ وو . دوی هغه بې اندازې خوشالي او

ناوړه ګمتي پورته کولو هڅه یې وکړه ، سترګې یې پرېپټې کړې ، په پوروړوبې زور و اچاوه خپل پورونه تري واخلي. خود تړو نونو مطابق یې پورونه راونه وتل.

داسي ښکاري چي شوروي مشرانو ته څه له وي پاتې . ښائی برژنف له خپلو ملګرونه دا پوښتنه وکړي چي حالات څنګه ښه کیدي شي ، خو هغوي څه ډول تسلي ورکولای شي؟ هغوي ټول سودائي او اندیښمن خلک دي . ګرومیکو پوهیږي په منځني ختیځ کي د شوروي د سیاست ناکامي د امریکي د متحده آیالاتو سره د دیتانت او سالټSALT په راتلونکو خبرو اتروکي‌دده موقف څومره کمزوري کړي دي . اوستینوف ښه پوهیږي چي د روس په جنوب کي د دفاع او امنیت د دبنسټونو دښه‌کولو له پاره دمارشالانو او سمندري پوځونو دقوماندانانو ترفشار لاندي دي . اندروپوف دا خبره کولای شي ووائي دا ټول کارونه د امریکي او سعودي عربستان د شیطاني پلانونو نتیجه ده ، خوکه دا رښتیا هم وي دومره دډاډ وړ تسلي نه ده . په هر صورت منځني ختیځ داسي یو میدان دي چي شوروي پکي په ګرځیدو له زیات خطر سره مخامخ دي . دا د یو داسي بم مثال لري چي د دوي په لاسو کي چاودلی وي . استعاري او کنایي به بدلې شي ، خو حقیقت به ثابت پاتې شي .



دغه غونډه چي ما یې شکل ترسیم کړ تاریخ یې راته معلوم نه دي ، او البته د دي غونډي خبري هم د ګومان له مخي بیان شوي دي ، که څه هم په دي هکله به اټکل کول له واقعیت نه ډیر لیري نه وي . دا اجرائیه کمیټه چي په کومو موضوعګانو خبري کوي ، ټولو ته معلومي وي ، په دي ورځو کي دوي په منظمه توګه د منځني ختیځ په هکله خبرېږي او خبري کوي . د مثال په توګه دا خبره هرچاته څرګنده ده په ۱۹۷۲ کال کي چي سادات له مصر نه شوروي تخنیکران ایستلي دي ، دوي لږ تر لږه په دي هکله شپږ ځلې غونډه کړي ده .

ګومان کیږي د منځني ختیځ په هکله په خبروکي دوي ډیر زیات غم او غوصه ښکاره کړي ، خو دا د ډیري اریانتیاوړنه ده . په منځني ختیځ کي د ۱۹۷۷ کال په دوبي کي د شوروي اتحاد د هغو امیدونو سره چي ۲۲ کاله وړاندي د مصر او چکوسلواکیي دوسلو معاملې دوي په دغه سیمه‌کي را ښکیل کړل، ډیر توپیر درلود .

هغه وخت داسي ګومان کیده دښه هرڅه د دوي په ګټه روان دي . دویم نړیوال جنګ د نړیې په انحصار کي د نسلونو راهیسي د دووسترو قدرتونو

احساسات ولیدل چې خلکو د فبروري په وروستیوکې دمشق ته د ناصر د راتلو په وخت ښکاره کړل ، دوی هغه ټول هیئتو نه ولیدل چې د عربي هیوادونو نه دمشق ته راغلي وو ، او ټوله عربي نړۍ د خوشالۍ په څپوکې ډوبه وه . ناصر هم په دومره زیاتو خوشالیو او احساساتو اریان شو . هر ځای ، د ښار ګر چاپیر غونډې او ټول ځایونه د ښه را غلاست له پاره د خلکو نه ډک وو . ناصر د برنډې نه د خلکو د احساساتو د قدردانۍ کولو له پاره راووت ، ماته یې مخ را واړاوه او وې ویل ، 'یاره ، ته څه فکر کوې؟، ما ورته وویل ، 'رئیس صاحب ، 'زه د دوه شیانو فکر کووم : لومړی ، کیدي شي زه تا سره داسې یم لکه چې یو مشاور به د روم د امپراتور سره ؤ ، او در په یاد کړم چې ته یو انسان یې . دویم ، زه اریان یم چې د دې ټولو آخر به څه وي .' که څه هم زه تل په دې عقیده وم چې د عربو له پاره یووالي ډیر ضروري شی دی ، زما سودا وه چې د لنډې مودې هغه عوامل چې د فبروري په تصمیم یې اغیزه کړې ده لوی تاریخي پلان به هم اغیز من کړي .

روسانو دا پرمختګونه لیدل ، که څه هم په دې نه پوهیدل ، خو په دې باندې یې د اغیزې کولو یا ورسره د مخالفت کولو هم څه نه شو کولای . نو دوی مجبور وو ، یووالي ته خپل زړه نازړه ملاتړ وښیي ، سره له دې چې په سوریه او مصر دواړو کې د کمونستانو نیول پیل شول . نو شی ښکاره ؤ - دا ډیر مهم وخت ؤ ددې له پاره چې ناصر او شوروي مشران سره مخامخ وګوري . نو شوروي اتحاد ته د ده د لومړي سفر د نیولو تیاری ونیول شو .



عادي خبره وه ، امریکایان چې خبر شول ، غوښتل یې د دې سفر مخه ونیسي . هغوی قاهرې ته تلګرام ولیږه او داسې یې وښوده چې دوی اوس هم د لوړ بند د جوړولو سره علاقه لري او دا کار د لویدیځ الهان له لارې د کیدو دی . خو په دې یې بې ځایه خپل وخت ضایع کړ . شوروي ته د ناصر سفر د ۱۹۵۸ کال د اپریل په ۲۸ پیل شو ، او درې اونۍ یې ونیوې ، پکې لیننګراد ، باکو ، کیف ، ستالینګراد ، سوردلوفسک او (د شوروي اتحاد د مسلمانانو د اوسیدنې سیمې) تاشکند او قزاقستان هم شامل وو . که سړی ووایي شورویانو د ناصر یو ځانګړی د وروړګلوۍ او صمیمانه استقبال وکړ ، دا به لږه وي . دا د دریمې نړۍ د نوي نسل د مشرانو نه لومړی سړی ؤ داسې استقبال یې وشو چې ترډې نور ښه نه شو کیدي . د مشر تا به ټول غړي په هوائي میدان کې

د ښه را غلاست له پاره حاضر وو ، د صدر اعظم مرستيال کوسيګين د ټول وخت له پاره کوربه ؤ ، او ناصر د مي د ورځې په مراسمو کې چې په کريملين کې وشول د ټولو نه لوړ افتخاري ميلمه ؤ ، په بالشوي تياتر کې د ده له پاره د خاچا تورين د ځواني بالټ ګډا او سپارتا کوس مخصوص پروګرامو نه ترتيب شوي وو ، او په کريملين کې هره شپه دی د خاصو فلمونو ليدلو ته دعوت ؤ چې ميلمانه د پوځي مانورونو، اتومي چاودنو ، د ميزايلود بريدونو او د خپلو جنګي کشتيو د معلوماتو له لارې تر اغيزې لاندې راولي .

روسانو غوښتل ناصر د شوروي اتحاد په وروسته پاتې سيمو کې د خلکو پرمختګونه وګوري ، د شوروي په صنعت او تکنالوژۍ کې وړاندې تګ او د دوی پوځي قوت وګوري . دوی غوښتل ده ته وښيي په دې ټولو کې دوی د امريکې سره سيالي کولای شي . همدارنګه دوی غوښتل دی په دې خبره وپوهوي چې دوی دين او مذهب نه مني . (دوی اوس هم د دين په هکله اريان وو . يوه ورځ د خروسچف په کورکې لګياوو خبرې موکولې ، ناصر خپل ساعت ته وکتل او وې ويل ، 'د جمعې د لمانځه وخت دی' . خروسچف ورته وويل ، 'خير دی ، مونږ ملاته ويلي دي ستاتر تياريد وپورې صبر وکړي' . خو ناصر ورته وويل 'د جمعې د لمانځه وخت تماکلی دی' . بيا ناصر 'ژرداودس کولو له پاره تشناب ته لاړ . چې راووت خروسچف ورته يو پاک دستپاک په لاس کې نيولی ولاړدی ، په مخ يې د اريانتيا يوه معما خپره ده .)

څه شي چې روسانو غوښتل له ناصر نه زده کړي، داؤ چې د ده ټولنيز پروګرامو نه څه دي او د امريکايانو سره يې اړيکې څنګه دي . دوی همدارنګه غوښتل دده نظر د عربي اتحاد او د عربو ، اسرائيلو د لانجې په هکله ځان ته معلوم کړي . دوی په عربي متحد جمهوريت کې د کمونستانو د بنديانولو خبره راپورته نه کړه ، ناصر را ياده کړه . ناصر خروسچف ته وويل تاسې بايد د خالد بکداش غوندې خلکو په خبرو باور ونه کړئ . 'هغوی تاسې په جنجال کې اچوي ، ځکه هغوی غلطه لارنيسي' . خروسچف وويل ، 'دا ييخي ستاسې خپل کاردی ، مونږ نه غواړو په دې کې لاس وهنه وکړو' .

دا يوه د پيژند ګلوی کتنه وه ، هره خوا په دې هڅه کې وه بله خوا ځانته معلومه کړي . يواځې يوه لانجه پکې را پيدا شوه ، د خروسچف په کور کې ديوې غير رسمي ميلمستيا په ترڅ کې ناصر ناڅاپه د شيپيلوف پوښتنه وکړه . وې ويل ، 'دی چيرته دی ؟ کيدي شي هغه ووينم ؟ ما د هغه سره د وسلو

معامله کړې وه». خروسچف ورته نیغ ځواب ورنه کړ ، خو په مقابل کې یې له جنګ وروسته دروس د مشرتابه په هکله اوږدې خبرې وکړې . کیدې شي دده نیت داؤ ناصر په دې پوه کړي چې کریملین کې کارونه په څه ډول کیږي ، او هغه قانع کړي. سره له دې چې خروسچف د شیپیلوف په هکله ناصر ته څه ځواب ورنه کړه خو څه یې د ناصر له پټه هم نه کړل . د دې نه ځکې ماښام خروسچف له ناصر نه غوښتنه وکړه باید دوی د واړه یو بل ته ډیر رښتیني وي . اوس ده له خپلې خوانه رښتینولي ښودله .

خروسچف وویل چې : 'په شوروي اتحاد کې اشخاص ارزښت نه لري'. دلته په ډله یزه توګه یوه ثابته پالیسي چلیږي او د افرادو تلل را تلل یې اغیزې دي ، ناصر وویل : 'خو د ستالین د وخت شوروي اتحاد ستا د وخت نه ډیر توپیر درلود' . خروسچف وویل ، 'نه ، دا رښتیا ده مونږ په پالیسیو کې بدلون را ووست ، خو دا د یوه سړي غوښتنه نه وه ، دا یو داسې بدلون ؤ چې نویو شرایطو یې غوښتنه کوله . حتی اوس هم زړه پالیسي ملاتړ کوونکي لري . د ستالین نه وروسته مونږ د ډیر خطرناک حالت سره مخامخ شو . جنګ ډیر شیان بدل کړي وو ، تردې چې ګوند یې هم بدل کړی ؤ . شوروي اتحاد شل میلونه خلک دلاسه ورکړي وو . نه پوهیږی په راتلونکو څوکالو کې به مونږ دصنعت او کرنې په برخه کې د څومره ستونځو سره مخامخ شو ، هغه نسل مو دلاسه ورکړ چې هیڅکله بیا ونه زیږید ، ځکه هغوي چې باید پلرونه شوي وای یا مړه وو اویا په اردو کې وو ؟

د ستالین د ځای د نیولو د پاره مالینکوف یو ښه انتخاب نه ؤ . هغه د ستالین ټولې چوکۍ ونیولې خو مرکزي کمیټې ته یې اعتراف وکړ چې دی د دومره مسؤلیتونو د اخیستلو له پاره جوړ نه دی . ځینې نور لکه بیریا په دې نه پوهیدل چې جنګ څومره شیان بدل کړي وو . جنګ بالکل د کورني امنیت موضوع بل ډول کړې وه . سړی نه شي کولای د هغو خلکو سره چې د انقلاب ګوند او هیواد نه یې د نازیانو په وړاندې ساتنه کړې وه ، د بهرني تیري د تهدید په شرایطو کې هم هماغسې ګوزاره وکړي . انقلاب ښه قوي او جنګ لا مضبوط کړي ؤ . مونږ بیریا را وغوښت ، هغه مو محاکمه کړ ، او هغه ته مو د ده ټولې خطاګانې ورپه ګوته کړې . د هغه ځینې سهوې د هیواد پرضد لوی سپکاوی ؤ .

خروسچف وړاندې لاړ ، د مسکو د غونډ قوماندان جنرال کیریل

مسکالینکو ته یې ګوته ونیوله ، ‹دا جنرال وینې›؟ بیریا هڅه وکړه زمونږ سره مقابله وکړي ، مونږ پریکړه وکړه هغه بندي وساتو . خو ده د خپلو ځینو پلویانو سره اړیکې ونیولې څو دده په ملاتړ عمل وکړي ، خو جنرال مسکالینکو پرې د مخه شو او هغه یې بندي کړ .

‹مونږ له ستالین وروسته یو ښه چانس ته ضرورت درلود ، خو د چانس د اندازې ټاکل ګران ؤ . تاسې وړاندې د شیپیلوف نوم واخیست . ته پوهیږې ځینو دغسې خلکو نیت درلود ماله منځه یوسي ؟ تیره جولای کی زه د مسکو نه بهر تللی وم . دا خلک را غونډ شوي وو ـ مالوتوف ، کاګانوویچ اوتر شیپیلوف پورې چې ما خپل دوست ګانه . زه چې بیرته مسکو ته را ورسیدم ، د ریل په سټیشن کې راته پیغام را ورسید څو نیغ د سیاسي بیرو ناڅاپي مجلس ته ورشم . اریان شوم ، د سیاسي بیرو ټول غړي هلته راغلي وو . لومړی مالوتوف خبرې وکړې وې ویل : «ملګریه خروسچف ، رئیسه هیئت په اکثریت سره پریکړه کړې ده ، ته د لومړي منشیتوب دچوکۍ له پاره مناسب نه یې» . ما وویل : «کولای شم پوه شم ، ولې» ؟ دوی را ته وویل ، ته د مارکسستي ، لنینیستي لارې نه وتلی یې . مالوتوف بیا خبرې پیل کړې ، چې تا د مرکزي پلان جوړولو د مرکزي ادارې جوړښت ویجاړ کړی دی . ما ورته وویل : «ملګرو ! شوروي اتحاد اوس له دوه سوه زرونه زیات صنعتي واحدونه لري ، دا ټول د مسکو نه اداره کیدي نه شي» . مالوتوف وویل مرکزیت ډیر مهم دی ، دا د لینن د کار سلوک و ، څو په دې ډول د بیلا بیلو اقلیتونو او میلیتونو ترمنځ بیلوالی له منځه یوسي . خو ته چې خلک د نه مرکزیت سیاست ته رابولې ، ته په حقیقت کی سیمه یز حکومتو نه جوړول غواړې او په دې ډول خلک شیونستي ناسیونالیزم ته تشویقوې» . مالوتوف ته مې وویل ، زمانه بدله شوې ده ، شوروي اتحاد ټول د مسکو نه اداره کیدي نه شي . «مونږ د اتوم په زمانه کی ژوندکوو ، ما ورته وویل ، فرضاً مسکو له منځه لاړشي ؟ بیا به څه کیږي» ؟

‹مالوتوف همدارنګه په ما باندې په بهرنې سیاست کې د غلطۍ کولو له امله ملامتي واچوله . د هغه په فکر مونږ باید بیرته خپل زوړ سیاست ته وګرځو . لومړی ، باید مونږ په اروپا کې یوه کرښه راو کاږو چې د هغې نه بیرته په شا هیڅکله رانه شو . دویم ، د هر ډول داسې مذاکراتو نه ډډه وکړو چې د دغې کرښې نه دې خوا زمونږ په پلویانو هیوادونو باندې اغیزه کوي . دریم

مونږ باید دده په خو له د «ماجرا جوئی» نه ډډه وکړو ، دده مطلب ستاسي په ګاونډ کی زمونږ له ګټو څخه دی ، رئیس صاحب . ما مالوتوف ته وویل زمونږ له پاره به اروپا کی سوچه دفاعي سیاست نیول غلطي وي ، ځکه په اروپا کی ډیرې څپې رواني دي ، او په لویدیځه اروپا کی سوسیالستي غورځنګ ورځ په ورځ ډیر اهمیت پیدا کوي . تیری د دفاع د ټولو نه ښه شکل دی . ما ورته وویل ، مونږ یوې نوې او فعالې د پلوماسۍ ته ضرورت لرو ، د هستوي جنګ نه امکان زمونږ او د پانګوالو ترمنځ مبارزې ته یو نوی شکل ورکوي . ما ورته داسې وویل : 'زه ماجراجو نه یم ، خو مونږ باید د ملي ازادي ښځونکو غورځنګونو سره مرسته وکړو ، اوکه د منځني ختیځ غونډې سیمې بیرته د امپریالیزم تر نفوذ لاندی راشي ، ملي ازادي ښځونکي غورځنګونه به وټکوي او ارتجاعي ځواکونـه بـه هلته بیرته سیاسي قدرت ته ورسوي ، چې د امریکې سره د روس نه د را ګرځیدو په پالیسۍ کې مهمه برخه واخلي .

'له بده مرغـه ، مالوتوف داسی فکر وکړ ، دا زما پالیسي وه چی په هنګري کی یې ستونځې را پیدا کـړي . هنګري د نـه مرکزیت د پالیسۍ او د نویو ازادیو سره مخامخ وه . مالوتوف فکرولکاوه ستا د ملګري تیټو په هکله زما زغم د هنګري خلک راوپارول . خو ما ورته وویل ، دا نه شوه کیدای چی د ختیځې اروپا سوسیالستي ټولنه دې د لویدیځی اروپا د سوسیالستي ځواکونو نه جلا وساتله شي ، او هم دې د ملي ازادي ښځونکو غورځنګونو نده لیري پاتې شي . مونږ باید د هغوی سره په نیابې لاره کی مخامخ شو . زه په دې خبره افسوس کوم ، مونږ مجبور شو په هنګري کې د روانو حالاتو مخه ونیسو ، خو رښتیا چی مونږ بله لاره نه درلوده .

'مالوتوف له مونږ نه وغوښتل په درندو صنایعو تکیه وکړو . ما ورته وویل ، دا یوه زړه مفکوره ده ، او د جنګ نه وروستـه مونـږ باید خپله پاملرنه استهلاکي شیانو ته واړوو ځکه هغه کسان چی د ګوند ، هیواد او انقلاب نه یې ساتنه کړې ده باید دا شیان په کافي اندازه ترلاسه کړای شي .

شیپیلوف ډیر تیټ ؤ . ته پوهیږې هغه د سیاسي بیرو په غونډه کی څه وویل ؟ هغه وویل ، زما سلوک ډیـر غیر دپلوماتیک ؤ . هغه وویل ، چی د فنلنډ د جمهور رئیس سره په غونډه کی ما خپل تحرکونه داسې ګرول لکه د ورېږو پوځ چی را باندې یرغل کړی وي ، او دا خبره ده چی زه باید د شوروي اتحاد د کمونست ګوند لومړی منشي نه شم .

'په پای کی می ورته وویل، زه د رئیسه هیئت پریکړه نه شم منلای ، مرکزي کمیټې زه د لومړي منشي په توګه ټاکلی یم، او دا یواځې ټولنه ده چې د تصمیم نیولو واک لري . مرکزي کمیټې غونډه وکړه او ټولو زما ملاتړ وکړ .

'ژوکوف یو ښه عسکرؤ . سړی له دې نه منکر کیدای نه شي چې هغه په جنګ کی ډیر کار وکړ . خو جنجال دا ؤ چې هغه به تل په خپله خبره ټینګ ولاړ ؤ . سړبي را وګرځید ، د ځان نه یې د یو ډیر مهم سیاستمدار طمع کیدله ، په تیره بیا له هغه وخته راهیسې چې په ژنیوکې یې له ایزنهاور سره یواځې غونډې پیل کړي . ژوکوف په خپلو سهوو پوه شو ، هغه په خپلو تیروتنو اعتراف وکړ ، او ویې ویل ، له دې وروسته به دی د ګوند عمومي لاره ونیسي .

مونږ د می تر پایه پورې په شوروي اتحاد کی پاتې شو . د اقتصادي مرستو ځینې معاملې اوارې شوې ، خو د دغو کارونو بنسټ اصلاً له مصر نه د ناصر تر روانیدو وړاندې اینښودل شوی ؤ . هغه نه غوښتل له ځانه سره ځانګړې غوښتنې راوړي - ده غوښتل په دغو غونډو کی د سیاسي مسئلو په هکله خبرې وکړي او نه د وسلو دبرابرولو یا د صنعتي مرستو په هکله. خو خروسچف غوښتل ناصر تهووا یې څه شیان ده پخپله برابرکړي دي ، لکه یو مشربي چې بل مشرته تیاروي ، او دا ټول بیروکراسۍ ته نه پریږدي .



د عربي متحد جمهوریت تر جوړیدو سمدستي وروسته یوه پیښه وشوه ، هغه وخت ورته چا دومره پاملرنه ونه کړه خو بیا وروسته معلومه شوه چې دا د ډیرولویو پیښو پیل ؤ . دوو عراقي منصبدارانو په پټه د سوریې د ملي امنیت رئیس ډګرمن سراج سره په دیرا کې وکتل ، هغه ته یې وویل چې دوی د عراق په اردو کی لګیا دي د آزادو منصبدارانو یو غورځنګ جوړوي . هغوی وویل «مونږ غواړو داسی کار وکړو لکه تاسی چې وکړ ، مونږ غواړو د عربي یووالي سره یو ځای شو او د هاشمیانو نه ځان خلاص کړو . مونږ څنګه ځانو نه تنظیم کړو ؟ مونږ څه ډول د یوې کودتا ترتیبات ونیسو ؟ که مونږ انقلاب پیل کړو ، عربي متحد جمهوریت مونږ ته څه ډول تضمین برابرولی شئ، ؟

سراج دا پوښتنې ناصر ته وړاندې کړي ، هغه دا ټولې ناوړه وبللې ، هغه

فکر وکړ کیدي شي دا د کومې لمسونکې شیطاني اجنسۍ نه را پیدا شوي وي . هغه سراج ته وویل چې دوی وویني او ورته ووایي د دوی د بریالیتوب رمز په دې کې دی چې خپله نقشه ډیره پټه وساتي، او دا د انقلابیونو له پاره غوره صفت نه دی چې په تضمینونو سره کار پیل کړي . که دوی په خپل مرام ټینګه عقیده لري ، نوټولو خطرونو ته دې ځان تیار کړي . له دې وروسته په دې هکله څه وانه وریدل شول او پیښه هیره شوه . د دغو دوو منصبدارانو نومونه عبدالکریم قاسم اوعبدالسلام عارف وو .

د ۱۹۵۸ کال د جولای په ۱٤ مه ناصر په بریوني کې ؤ . هغه د جولای په دویمه د یوګوسلاویې د مارشال تیتو په بلنه هلته تللی ؤ ، او ټاکل شوې وه د جولای په ۱٤ مه د مازیګر په څلورو بجو بیرته د قاهرې په لور روان شي . د دوو مصري تخریبوونکو کشتیو په بدرګه د هوریا په نامه رسمي کشتۍ کې یې د تللونیت کړی ؤ . فکر کیده د هوا په پرتله د سمندرلارې د ده له پاره محفوظه وه ، ځکه داسې اوازې وې چې د سویز د شخړې په ماښام اسرائیلو د پټو وسلو پواسطه د مدیترانې په سر یوه الوتکه را غورځولې وه .

خو د جولای د ۱٤ مې په سهار د هوریا مخابراتي مرکز ته د قاهرې له لارې له دمشق نه پیغامو نه را رسیدل پیل شول ، د بغداد او دمشق د هوایي ډګرونو مخابراتي مرکزونو ترمنځ پیغامونه تبادله کیږي ، په بغداد کې څه نوې پیښه روانه ده ـ ټانکونه راوتلي دي او داسې ښکاري کودتا شوې ده . هیچا نه غوښتل ناصر ته دا حال ووایي ، ځکه هیڅوک ډاډه نه ؤ. خو چې کله ما د بي بي سي لومړي نړیوال سرویس ته غوږونیو ، هغوی تائید کړه چې هلته کودتا شوې ده ، د بریوني مانۍ ته ورغلم ، ناصر می راویښ کړ ، او دواړو خبرونو ته یو ځای غوږ ونیو ، اوس د قاهری له لارې د بغداد نه هم راپورونه را رسیدل پیل شول. د اته، نهو بجو په خواوشا کی څرګنده شوه چی د ډګروا ل عبدالکریم قاسم په مشرۍ د عراق اردو سیاسي قدرت نیولی دی .

ډیر خطرناک حالات وو. داسی ګومان کیده د بغداد ترون رنګ شوی دی او په منځني ختیځ کی پرځمکنیو لارو ، د سویز د کانال نه په تیرو شویو سمندري لارو او هم د عراق په تیلو د عربي ناسیونالیزم ځواکونو کنترول ترلاسه کړی دی . مونږ خبر شو امریکایانو په ټوله مدیترانه کی د تیارسۍ قومانده ورکړې ده . خو اسرائیل به څه کوي ؟

ناصر غوښتل څومره ژر کیدای شي قاهرې ته لاړ شي . په هوریاکې به هلته رسیدل درې ورځې نیسي . یوه وسکوټ الوتکه وه خو دې د مدیترانې نه په تیریدلواته ساعته نیول . دا ډیر اوږد او خطرناک وخت ؤ . په څلور بجې ناصر پریکړه وکړه چې په سمندر کې لاړ شي . تیتو ورته د دوونورو یوګوسلاویا-یې محربو کشتیو د بدرګې وعده ورکړه ، دا به نه یواځې د جمهور رئیس کشتۍ د یوګوسلاویې په سمندري سرحد کې بدرګه کړي بلکې تر سکندرې پورې به ورسره وي . په همدې وخت کې ناصر د عراق د انقلاب نه د ملاتړ رسمي اعلامیه خپره کړه . هغه قاسم ته یو شخصي تلګرام هم ولیږه . د شپې پورې مونږ داسې اوازې واوریدې چې په بیروت کې امریکائي هوایي پوځونه او په عمان کې برتانوي هوایي پوځونه راښکته کیږي .

هوریا لا تراوسه روانه شوې نه وه ، د دې او د محربوکشتیو څراغونه هغه وخت یو ناڅاپه مړه شول چې ناصر ته د تیتوله خوا یو پیغام راورسید : ‹غوښته کووم ، سفر وځنډوئ : د یو مهم پیغام سره بله کشتۍ درلیږم › . ډیر ژر یوه بله کشتۍ را ښکاره شوه او یو سمندري پوځي راوخوت . د هغه پیغام داسې ؤ ، تیتو مشوره نه ورکوي ناصر دې د سمندر له لارې سفر وکړي ، د هغه په فکر حالات له اندازې زیات خطرناک وو. هغه سپارښتنه کړې وه ناصر دې د تولو نه نژدې یوګوسلاویا یې سمندري بندرته ځان ورسوي ، دوی به یوه تیزتګه الوتکه پیدا کړي چې دی ژر کورته ورسوي . له دې نه سمدستي وروسته د تیتو له خوا بل پیغام را ورسید ، ویل یې ، چې ده لازم ترتیبات نیولي دي - الوتکه به د پولا په هوایي ډګر درته ولاړه وي . هغه سپارښتنه کړې وه چې د تیزوالي له پاره ناصر باید په محربه کشتۍ کې بریوني ته روان شي . تیتو زیاته کړې وه ددې له پاره چې ستاتګ آسان شي ، ما دوو سمندري الوتکو ته وظیفه ورکړې ده ستا په واک کې حاضرې شي . دوی به ستا د کشتۍ او د مخربې کشتۍ د مخابراتي مرکزونو ترمنځ اړیکې تینګې کړای شي› .

ناصر د بهرنیو چارو وزیر ډاکتر محمود فوزي او زه خپلې کوټې ته راو غوښتو . وی ویل چې دی په هوا کې د یو کوچني تکر احساس کوي (دا د سویز د شخړې نه څه کم دوه کاله وروسته وه) . مونږ بیا وروسته خبر شو چې دا وخت برتانوي الوتکو د اسرائیلو په اسمان کې الوتنې کولې ، د اسرائیلو په خوښه ، الوتکې عمان ته روانې وې . په لبنان کې د امریکا یې الوتکو را ښکته

کیدل کیدي شي د کوم لوی عمل له پاره تیاری وي ، خو څه به وي ؟ مونږ له ترکیې نه د څه کار کولو توقع کولای شو؟ (باید هیرنه کړو د بغداد د تړون جرګه په انقره‌کې روانه وه ، ولیعهد عبدالله او نوري سعید دلته تر را روانیدو لږ وړاندې وژل شوي وو .) د دې ټولو شرایطو په نظر کې نیولو سره ناصر دې نتیجې ته رسیدلی ؤ چې شخصاً یو ځل د خروسچف سره وګوري. خو لومړی یې زمونږ نظر معلومول غوښتل . مونږ نیم ساعت وخت وغوښت چې فکر وکړو ، بیا مو ورته خپل نظریات ښکاره کړل . د پیشنهاد په پلوی‌او پرضد نظریات سره ښایسته په انډول‌کې وو ، نو وروستی تصمیم خپله ده ته پاتې شو . بیا یې وویل ، ډیره ښه ، زه ځم، . بیا قاهرې ته پیغام ولیږل شو چې په ډیر باوري تلګرام‌کې خروسچف ته دا خبر ورسوي : ‹قاهرې ته له تللو وړاندې غواړم له تاسي سره هر ځای کی چې اسان وي یو ځل وګورم . زه اوس بریوني ته په لاره یم . امید دی هلته به ستاسې پیغام ما ته راشي› .

مخربه‌کشتۍ چې د پولا سمندري بندر ته را ورسیده ، هلته د یوګوسلاویې د بهرنیو چارو وزیر پاپوویک په یوه کوچنۍ‌کشتۍ‌کې د خروسچف د ځواب سره منتظر ؤ . هغه وویل خروسچف غواړي له ناصر سره په مسکو کی وګوري ، که دا درته مناسب ځای ښکاری ، که نه هر ځای چې ناصر وغواړي دی به هلته لاړ شي . مونږ ټول د ټیټو دفتر ته ورغلو ، دده ټول لوړ رتبه مشاورین را ټول وو ـ رانکوویک ، کاردلژ ، دجنګ وزیر ګوشنیاک ، پاپوویک او نور . ټولو دا ویل چې حالات ډیر خطرناک دي . بیا ناصر ورته خپل دلایل وویل چې دی ولې غواړي له خروسچف سره وګوري .

د خروسچف له خوا را لیږل شوی ٤ . ١ ـ Tu موډل الوتکه د هوایي ډګر په لیري یو کونج کی ولاړه وه ، لویه بادي یې په تیاره‌کی له ورایه ځلیده . مونږ یوه هم تردې وخته پورې دومره لویه الوتکه نه وه لیدلې . یواځې مونږ پنځه کسه الوتکې ته ورختلو ـ ناصر ، ډاکتر محمود فوزي ، د ناصر سکرتر حسن صبري الخولي ، د ناصر یو بادي ګارډ ، او زه خپله . زمونږ د ډلې نور غړي چې زمونږ ښځې هم پکې وې په هوریا کې پاتې شول ، نه پوهیدل چې مونږ څه شو .

روسي پیلوټ ناصر ته راوړاندې شو ، سلامي یې وکړه ، او په انګریزي یې وویل : ‹ستاسې امر صاحب› ؟ ناصر ورته وویل مسکو ته به ځو . زما په فکر پیلوټ د قاهرې په فکر کې ؤ او په بدلون باندې اریان شو .

الوتي يواځې دوه نيم ساعته ونيول ، مونږ بيا د وينوكوفو په هوايي ډګر کې را ښکته شو . د هوايي ډګر د لارې ترپايه په تکسي کې لاړو ، يوه زينه را ښکته شوو او وسو ليدل دري زيم موټرو نـه مونږ ته منتظر ولاړ وو . په دغو کې کوسيګين ، ميکويان ، د هغې وخت د پوځي استخباراتو مدير جنرال سيروف او د خروسچف ځانګړې عربي ترجمان سوبوليف ناست وو . مونږ مسکو تـه نژدې په کلي کې کيچوا نـوسې مانۍ ته لاړو . چې هلته ورسيدو ، ميکويان خپل ساعت ته وکتل وي ويل : اوس شپږ بجې دي . لږه د مه وکړئ ، بيا به خبرې پيل کوو . خروسچف به هم دلته راشي . دا ځای د امنيت له پلوه باوري دی . لس بجې به د خبرو د پيل کولو له پاره سمې وي' ؟

په دې پريکړه وشوه . خو اوس لږه د مسخرو ډکه ستونځه را روانه وه . په کار ؤ چې اوس مونږ په مسکو کې له خپل سفير سره احوال اخيستي واي ځکه په قاهره کې د مارشال عامر په شمول ډير لږ خلک خبر وو مونږ چيرې يو ، هغوی ته ويل شوي وو مونږ سره په مسکو کې د مصر د سفارت له لارې احوال ونيسئ ، لـه ډير باوري تلګرام نـه کار واخلئ ، دا تلګرافو نـه يواځې حسن صبري الخولي لوستل . د بهرنيو چارو وزارت د سهار په شپږ نيمو بجو زمونږ سفير الکوني ته تيلفون وکړ چې وزارت ته دده ژر راتلل په کار دي . ځنګه چې دا وخت د سفارت موټـر تيار نـه دي ، د وزيـر ځانګړی موټـر به درته د سفارت نه بهر پـه پنځه دقيقوکې تيار شي - الکوني فکر کاوه کومه ډيره خطرناکه پيښه شوي ده - ښايي لويديځ کوم اخطار ورکړی وي . په چالاکۍ سره يې ځه کالي واغوستل ، په موټر کې وخوت ، خو اريان شو چې موټر د وزارت په لور نه ځي - رښتيا موټر خو دی له مسکو نه بهر بيوه . الکوني ډريور ته هغه ښيښه ټک ټک کړه چې ډريور يې له ده نه جلا کړی ؤ - ډريور ورتـه اشاره وکړه خو ځواب يې ورنـه کړ . الکـوني ګومان وکړ لکـه چې دی وتښتول شو ، خو نه پوهيده دا کار څوک کوي ، او ولې ! موټر ډير تيز روان ؤ ، او له ډريور سره بيخي په خبره پوه نـه شو . پـه پای کې موټـر د کيچووا د مانۍ انګړ ته راننوت او هلته يې محمود فوزي او زه پـه چکر وليدو ، چې په خبروکې ډوب وو . د موټر نه راکوز شو مونز ته راغئ او وي ويل ، 'يا زه ليونی يم ، يا روسان ليوني دي' . ما زياته کړه : 'يا مونږ ليوني يو' . بيا ژر ناصر هم راووت الکوني په خپل ژوند کې د بل هر وخت نه زيات وارخطاء شوی ؤ .

نفوذ ختم کړي ؤ . فرانسي ماته خوړلی وه ، برتانیه ستړی شوې وه او د سخت اقتصادي بحران سره مخامخ وه . شوروي اتحاد له جنګ نه د زیات پوځي قوت سره بریالی راوتلی ؤ ، پرستیژيې د خپل یواځني رقیب امریکي نه که زیات نه ؤ ، نو ورسره برابر ، خو ؤ . په عربی نړۍ کي نوي نظریې تاویدي را تاویدي ، او د بدلون بادونه را الوتل . ځواني حکومتونه چي د جنګ نه وروسته په سیاسي قدرت کي پاتې وو ، له دغو بادونونه ښه خبر وو ، خو دا پوهه او زړه يې نه درلود چي له دغو حالاتو سره ځانونه برابر کړي .

په عربی هیوا دونو کي نوي مشران راپورته شول ، د راډیو او هوائي سفرونو په برکت د نړۍ نورو هغو هیوادونو سره هم په تماس کي وو چي تر هغي وخته پوري يې امکان نه درلود ، هلته خودکاره وسلو ، سوړ جنګ ، او په بیلو بیلو پیښو کي د ملکرو ملتونو ټولني د ښه نیت رښتینوالی داسي په نښه کړي ؤ چي نني نړۍ يې د ۱۹۳۹ کال څخه ډیره بدله کړي وه . په دي ورځ په ورځ بدلیدونکي نړۍ کي د شوروي اتحاد انقلابی زور په ځرګنده توګه مهم رول لوبولای شو .

په عربی هیوادونو کي یواځي پوځ په نسبي ډول یو ځه نظم درلود چي دغو عصري او ښو تنظیمونو په دي وروسته پاتې هیوادونو کي نوي رهبران راپیدا کولای‌شول. په عربی هیوادونوکي یو په بل پسي په سوریه، مصر ، عراق یمن ، الجزایر ، سوډان او لیبیا کي پوځیانو سیاسي قدرت ونیو . د دوي دځینو انګیزی او غوښتني د دوي شخصي غرور ؤ ، یواځي د قدرت نیولو خبره وه ، خو ځیني نور يې بیا د اوږدو او شاربل شوو پلانونو له مخي چي د ټولنیزو اصلاحاتو له پاره يې درلودل ، سیاسي قدرت ته ورسیدل ترڅو هغه عملي کړي .

نه د قدرت د شوقیانو او نه د نظریاتي مشرانو لاره آسانه وه . دا د سوړ جنګ زمانه وه ، هغه وخت دو وسترو طاقتونو یو د بل سره ځانونه مخامخ لیدل خو د هستوي جنګ له ویري مجبور شول د مبارزي له پاره نوري لاري ولټوي. دا د تبلیغاتي او روحي جنګ د ټولونه ښه وخت ؤ ، په تیره بیا د سیا او کا جي بی د جاسوسۍ د ټولنو د اغیزمن کار زمانه وه . د دریمي نړۍ هیوادونه د دوو وسله والو نظریاتي سترو قدرتونو دښکاره او پټي‌سیالۍ د پاره ښه میدان‌ؤ. پانګه والو او کمونستانو ، اوس د اروپایانو د ساده پراختیائي سیالۍ ځای‌نیولی‌ؤ

په دي توده ځمکه باندي عربی مشران د ډول ډول فشارونو سره مخامخ‌وو. دوي د لویدیځو هیوادونو سره بلدوو ، زیات وختونه به د دوي کینه د لویدیځو

# ابوالهول او کمیسار

پـه منځني ختيځ کې دشوروي ورانديې تګ اوماتې

ليکوال
محمّد حسنين هيکل

پښتو ژباړه
محمّد آصف اکرام



دآزادافغانستان دليکوالوټولنه (وفا)
ګڼه : ۲۲-۳۴

# ابوالهول او کمیسار

په منځنی ختیځ کې د شوروي ورانډې تګ او ماتې


لیکوال

**محمد حسنین هیکل**

پښتو ژباړه

**محمد آصف اکرام**





ګڼه: ۳۲-۳۴

۱۳۶۷ کال

د آزاد افغانستان د لیکوالو ټولنه (وفا)

# فهرست

بسم الله الرحمن الرحیم

# د ژباړن سریزه

د ابوالهوال او کمیسار کتاب د اسلامي نړۍ او منځني ختیځ پیاوړي لیکوال او د مصر د ډیرې مهمې ورځپاڼې الاهرام پخواني مدیر محمد حسنین هیکل په ډیره خوږه ژبه لیکلی دی . په دې کې د ۱۹۵۵ نه تر ۱۹۷۵ کال پورې په منځني ختیځ کې د شوروي اتحاد سیاسي او پوځي وړاندې تګ په هراړخیزه توګه څیړل شوی دی . په هغو تکویېهم رڼا اچولې ده چې څنګه او ولې دلته د شوروي وړاندې تګ د ستونځو سره مخامخ او ناکام شو .

دا کتاب لـه یوې خوا نـه لوستونکی د منځني ختیځ د تاریخ د هغي برخي سره بلدوي چې په سیمـه کې د کمونستي نظریاتو پلـویان او ډلې را پیدا شوي . په دې ټولو کې د شوروي د دولت او یهودانـو د لاس وهنې او اوږدې مودې په هدفونو باندې د پوهیدلو وړ داسې سندونه وړاندې کوي چې لوستونکي ته یې د نه منلو د پاره څـه نـه پاتې کیږي . او د بلې خوا نه د شوروي د کمـونستي دولت د مشرانو پـه ذهنیت او نورو هیوادونو پـه تیره بیا د دریمې نـړۍ سره د دوی په ګوزاره لیکوال د خپلو لیدنو او تجربو له مخې داسې باوري او روښانه غږیـدلی چې هر څوک یې رښتینوالي تـه غاړه ږدي . برسیره پردې په ټوله نړۍ او په تیره بیا په منځني ختیځ کې د سترو قدرتونو روس او امریکې په سیالـۍ ، یو د بـل سره پـه تفاهم ، سازش او ګـډو سنجول شویو پلانونو داسې څیړنه کوي چې بل چا بـه تراوسه داسې لیکنـه نـه وي کړې .

شوروي اتحاد په تیرو شپیتو کالو کې افغانستان سره د دوستـۍ دعوئ کوله او د تیرولسو کالو راهیسې یې د افغانستان د لاندې کولو د پاره هر ډول پوځي او سیاسي هڅې وکړې . د ۱۹۷۹ کال په ډسمبر کې یې دلتـه د پوځونو پـه را وستلـو سره د دې هیواد خپلواکي ، د ځمکې تمامیت او ملـي حاکمیت بانـدې د ټولـو نړیوالـو منل شو یـو معیارونـو سره پښې کیښودلې . زمونږ د هیواد اسلامي ، ناپیلي او خپلواک حیثیت ته یې سپکاوی وکړ او د داسې یو اوږد جنګ اور

یې بل کړ چې زمونږ د مسلمان مات ټولې مادي او معنوي شتمنۍ، بشري طاقت ، طبيعي زيرمې ، د ټولنې عقيدوي بنسټونه ، د هيواد والو تاريخي پوخ شوی ځانګړی کلتور ، د پيړيو زوړ تمدن او نور هر څه يې د پوځې او نظرياتي پراختيا غوښتنې د ګواښونو سره مخامخ کړل .

خوله نيکه مرغه د روس پوځ په خپل ټول زور سره ونه شو کولای د افغانستان د ولس اسلامي عقيده او د آزادۍ احساس له منځه يو سي ، مجبور شول خپله ماته ومني . نو د ښهود سپکولو د پاره يې د ۱۹۸۸ کال د اپريل په ۱٤ مه د ژنيو تړون لاس ليک کړ . دا چې د ژنيو د تړون حقوقي ارزښت څومره دی ، يا د منلو وړ دی که نه ؟ جلا خبره ده . خو شوروي د خپلو پوځونو د ايستلو د پاره يوه لاره ومونده . د پوهيدو وړ مهمه خبره داده چې شوروي اتحاد هلته په مصر او منځني ختيځ کی مات او له هغه ځايه وشړل شو او دلته په افغانستان کې هم ناکام شو ترڅو يې د بيرته تګ لاره ونيوله . شوروي اتحاد زمونږ ګاونډی دی ، په کارده چې د دوی خلک ، دولت ، سياسي او ټولنيز نظام په هر اړخيزه توګه وپيژنو . دا کتاب به د دغې هيواد په پيژندنه او د هغوی د هدفونو په پوهيدنه کې پوره مرسته وکړي .

بايد زياته کړله شي چې نه روسان او نه نور څوک د نورو هيوادونو د آبادولو د پاره کار کوي او نه بايد څوک د چانه دبې قيده او شرطه مرستو په تمه شي ـ هر څوک ځانګړي هدفونه لري او د هغو د لاس ته راوړلو د پاره کار کوي . د افغانستان مسلمان ملت تر هغې چې خپله په ګډه د خپل هيواد د آزادۍ او آبادۍ د پاره کار ونه کړي ، بله هيڅ لاره نشته .

د دې ژباړې د متن په اصلاح کولو کې د پرله پسې کتنې او لوستنې له امله د ښاغلی محمد انعام واک له هڅو څخه د زړه له کومي مننه کوم .

محمد آصف اکرام

۱۲ فروري ـ ۱۹۸۹

پيښور